فَسْئَلُوا أَهْلَ الذِّكْرِ إِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُونَ

فتاویٰ دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاویٰ فریدیہ

افادات

محدث کبیر فقیہ العصر مفتی اعظم عارف باللہ مولانا مفتی محمد فرید رحمہ اللہ

جامعہ دارالعلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک

تخریج و ترتیب

مفتی محمد وہاب منگلوری مدرس دارالعلوم صدیقیہ زروبی

مکتبہ رشیدیہ

جی ٹی روڈ سردار پلازہ اکوڑہ خٹک

بسم اللہ الرحمن الرحیم

فَاسْئَلُوْٓا اَهْلَ الذِّكْرِ اِنْ كُنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ○

# فتاوی دیوبند پاکستان

المعروف بہ

# فتاوی فریدیہ

څلورم جلد

| | |
|---|---|
| افادات | محدث کبیر فقیہ العصر مفتی اعظم عارف باللہ<br>مولانا مفتی **محمد فرید** رحمۃ اللہ علیہ<br>جامعہ دار العلوم حقانیہ اکوڑہ خٹک |
| تخریج وترتیب | مفتی محمد وہاب منگلوری<br>مدرس دار العلوم صدیقیہ زروبی |
| ترجمہ وکمپوزنگ | **دار الترجمہ وکمپوزنگ سنٹر**<br>عبد الغنی پلازہ محلہ جنگی پشاور |
| زیر سرپرستی | مولانا حافظ **حسین احمد صدیقی** نقشبندی<br>مہتمم دار العلوم صدیقیہ زروبی ضلع صوابی |
| ناشر | مکتبہ رشیدیہ اکوڑہ خٹک |

**دکتاب نوم:** فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (څلورم جلد)

**افادات:** محدث کبیر فقیه العصر مفتی اعظم عارف بالله مولانا
مفتی محمد فرید مجددی زروبوی رحمه الله
شیخ الحدیث وصدر دارالافتاء جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک

**ترتیب و تخریج:** مولانا مفتی محمد وهاب منګلوری نقشبندی
دارالافتاء دارالعلوم صدیقیه

**معاون:** مولانا مفتی عصمت الله حقانی

**مترجمین:** مولانا محمد منظر مردانی فاضل جامعه امداد العلوم صدر
برهان الدین صدیقی فاضل جامعه دارالعلوم کراچی
ایم اے پشاور یونیورستی (فون: ۰۳۴۴_۹۱۲۹۰۲۳)

**مصحح:** مولانا لطف الرحمن صاحب مدرس ونګران قاسم العلوم شبقدر

**کمپوزنګ:** دارالترجمه وکمپوزنګ سنټر عبدالغنی پلازه محله جنګی پشاور

**ضخامت:** ۵۲۳ صفحات

**لومړی چاپ:** اکتوبر ۲۰۱۱ء ............ شوال ۱۴۳۲ھ

**زیر سرپرستی:** مولانا حافظ حسین احمد صدیقی نقشبندی
مهتمم دارالعلوم صدیقیه زروبی ضلع صوابی (پاکستان)

**ناشر:** مکتبه رشیدیه سردار پلازه اکوړه خټک نوشهره

رابطه نمبر: ۰۳۴۴-۹۰۸۴۶۹۳



# فهرست مضامین

| مضمون | صفحه |
|---|---|

## کتاب الصوم

## باب رؤية الهلال واختلاف المطالع

## باب تعریف الصوم وانواعه

## باب مایفسد الصوم ومالایفسده

## باب ماتجب به القضاء والکفارة

| صفحه | مضمون |
|---|---|

## باب العوارض المبيحة للفطر





| صفحه | مضمون |
|---|---|



## باب الفدية



## باب الاعتكاف

# کتاب الحج

## باب تفسیر الحج وشرائطه وارکانه

| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## مسائل منثوره





| مضمون | صفحه |
| --- | --- |



## فصل فی الاحرام

| صفحه | مضمون |
|---|---|



## باب القران والتمتع



.........



| صفحه | مضمون |
|---|---|

## باب الحج عن الغیر

## باب العمرة







## باب الجنايات



.........

## باب زیارة قبر النبی ﷺ







# کتاب النکاح

## باب رسم النکاح وشرائطه وآدابه

## باب ما یجوز تزویجها وما لا یجوز (المحرمات)

## مسائل شتی

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

## فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه (څلورم جلد)

الحمد لله القدیم المنعم العظیم وصلی الله تعالی علی سیدنا محمد عبده الحلیم و رسوله الکریم وعلی آله واصحابه اجمعین، اما بعد!

د ارباب علم وفضل، فقهاء ومشائخ، علماء وطلباء او د عامو مسلمانانو په خدمت کښې فتاوی دیوبند پاکستان المعروف بفتاوی فریدیه څلورم جلد پیش کولې شی، فقیر مرتب د الله تعالی ډیر زیات شکر ګذار دې چه زما په شان بې وسه او ګناهګار ته ئې ددې علمی او دینی خدمت تفیق ورکړو. الحمد لله حمدا کثیرا علی ذالک

د فتاوی په ابتدائی جلدونو کښې د جلد دوم او سوم درې ایډیشن وتلی دی، او د ړومبی جلد تراوسه پورې څلور ایډیشن وتلی دی، ددې نه معلومیږی چه الله تعالی په خواصو او عوامو کښې دا سلسله قبوله ګرځولې ده، او امت مسلمه برابر ددې ته استفاده کوی، یقیناً دا هرڅه د خانواده حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم دینی، علمی او اصلاحی جلیله خدمات او د دارالعلوم حقانیه د فیضان نتیجه ده، په دې (څلورم) جلد کښې کتاب الصوم، کتاب الحج (کامل) او د کتاب النکاح بعضې ابواب شامل کړې شوی دی، د تیرځل په شان ددې جلد ترتیب او تخریج او په بحث او تزئین کښې هم دغه شرائطو او لوازماتو پوره پوره لحاظ ساتلې شوې دې، کوم چه په ړومبو جلدونو کښې مونږ اختیارکړی وو، بلکه په دې کښې دغې نه هم د زیات محنت او کوشش نه کار اخستلې شوې دې، کامیابی د الله تعالی په لاس کښې ده.

هرباب او فصل تیاریدو سره به فوراً رئیس دارالافتاء (جامعه حقانیه) حضرت مولانا مفتی سیف الله حقانی مدظله العالی په خدمت کښې پیش کولې شو، هغوی به ډیر ژور نظر سره کتلو، او په بعضې ځایونو کښې به چه چرته هغوی به اضافه محسوسوله، دهغوی په حوالې سره دې کښې درج کړې شوی دی، چه د چا دا



خطره پاتې نه شی چه شاید په دې کښې څه زیاتوالې کړې شوې دې، مونږ پوره کوشش کړې دې چه د حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم فتاوی په خپل اصل شکل کښې نقل شی، او د حضرت مفتی صاحب شاګردان او مریدان او متعلقین دا فیصله پخپله هم کولې شی چه یقیناً دا فتاوی په خپل اصلی شکل کښې منقول ده.

زه په دې هم د الله تعالی ډیر زیات شکر ګذار یم چه د ړومبو جلدونو په شان دا جلد هم یو یو باب حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم په خدمت اقدس کښې پیش کړې شو او د سختې کمزورئ، تکلیف او د بیمارئ باوجود ئې اوکتلو او د خوشحالئ اظهار ئې اوکړو، الله تعالیٰ ته لاس په دعا یم، چه راتلونکی جلدونه هم دغسې د دوی تصدیق او تصویب سره شائع شی.

په ترتیب، حذف مکررات، تخریج وتحقیق کښې په تلاش او لټون کښې، د کمپوزنګ په نګرانئ او پروف کښې فقیر هیڅ کوتاهی نه ده کړې، بهرحال د شپاړسو میاشتو د شپې ورځې محنت او د مسلسل کوشش نه پس مونږ ددې نه فائده اخلو، د محدود وسائلو او د کم صلاحیتونو په وجه ددې عظیم علمی او فقهی ذخیرې د پاره چه مونږ څومره هم د خپلې طالب علمانه قابلیت ترحده پورې خپل کوششونه په کار راوستلې شو ددې نتیجه ستاسو په وړاندې ده.

شادم از زندگی خویش که کارے کردم

فقیر ته د کم علمئ، تقصیر، او محتاجئ پوره اعتراف دې لیکن د خپل شیخ او مربی زینة المحدثین فقیه النفس زبدة العارفین حضرت مولانا مفتی محمد فرید صاحب دامت برکاتهم او د استاذانو او مورپلار په دعاګانو سره دا فقیر ددې علمی خدمت لائق جوړ شوې دې، الله تعالی دې د دوی ټولو د مهربانئ سورې په مونږ باندې همیشه د پاره قائم ساتی، او په علمی او دینی کارونو کښې دې اخلاص او پوره سکون سره مشغول اوساتی، فقیر مرتب یو ادنی طالب علم او د خپلو اکابر او مشائخو او د علماء اسلام خادم دې، ځکه چه چرته هم د تیندک خوړلو او غلطی کولو نه انسان تختیدلې نه

شی، په دې وجه د کتونکو او علماؤ په خدمت کښې عرض دې چه چرته هم څه غلطی په نظر راشی بغیر تامل دې اطلاع راکړی چه په راروان ایډیشن کښې دهغې تصحیح اوکړې شی.

په آخر کښې دهغې ټولو حضراتو شکریه اداکول ضروری ګڼړم (من لم یشکر الناس لم یشکر الله) چه هغوی په څه درجه کښې هم په دې کار کښې مونږ سره شریک شوی دی، اګرچه صرف دعاګانې کول اود حوصلې راکولو کلمات وئیل ولې نه وی، بالخصوص مولانا محمد اسحاق حقانی چه تخصص فی الفقه طالب علم دې په تخریج کښې ډیر معاونت کړې دې دغسې حافظ ولی الرحمن صدیقی (لوند خوړ) چه دوی د کمپوزنګ کار ډیر په صحیح طریقه پوره کړو، اودې سره جناب سلطان فریدی صاحب چه دوی د پروف او اردو محاورې په تصحیح کښې د کامل کوشش او مشقت نه کار واخستلو، الله تعالی دې زمونږ د ټولو دا محنتونه قبول اوګرځوی، اود دنیا او آخرت کامیابئ دې رانصیب کړی، د قارئین او ناظرینونه استدعا او التجاء ده چه مونږ دې په دعائې خیر کښې یاد ساتی.

ولله الحمد اولاً وآخراً وبه التوفیق وهو المستعان وعلیه التکلان ربنا لا تؤاخذنا ان نسینا او اخطانا ربنا ولا تحمل علینا اصرا کما حملته علی الذین من قبلنا ربنا ولا تحملنا ما لا طاقة لنا به واعف عنا واغفرلنا وارحمنا. آمین یا رب العالمین

طالب دعا:

فقیر محمد وهاب منګلوری عفی عنه

۲۰۰۷/۱۰/۲۰ء



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه څلورم جلد

# کتاب الصوم

## باب رؤیة الهلال واختلاف المطالع

قال الله تعالی:

شَهۡرُ رَمَضَانَ الَّذِیۡۤ اُنۡزِلَ فِیۡهِ الۡقُرۡاٰنُ هُدًی لِّلنَّاسِ وَبَیِّنٰتٍ مِّنَ الۡهُدٰی وَالۡفُرۡقَانِ ۚ فَمَنۡ شَهِدَ مِنۡکُمُ الشَّهۡرَ فَلۡیَصُمۡهُ ؕ

(البقره: ۱۸۵)



بسم الله الرحمن الرحیم

# کتاب الصوم

## باب رؤیة الهلال واختلاف المطالع

### روژه او اختر په شرعی ثبوت باندې دې په مفروضو باندې نه

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه دَمردان والا هر کال دوه درې ورځې مخکښې محض په مفروضو او په حساب کتاب باندې روژه نیسی، او هم داسې اختر هم کوی. او دَ نورو علاقو او دَحکومتی کمیټې اعلان روستو کیږی. په دې وجه باندې مادَیو جمات دَامامت نه استعفی هم ورکړه. او زما خلاف پروپیګنډې هم کیږی. او س څه او کړم؟ بینوا توجروا

المستفتی: خلیل الرحمٰن مردان

**الجواب:** دَسلام نه روستو دې واضحه وی چه تاسو دَشرعی ثبوت نه بغیر مه روژه نیسې او مه اختر کوئ. ﴿۱﴾. که چرې تاسو په امامت کولو باندې مجبور یئ، نو ظاهری طور باندې اختر او کړئ او روژه ما توئ، حقیقت دا دې چه دَ

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: وبیان ما یعرف به وقته فان کانت السماء مصحیة یعرف برؤیة الهلال وان کانت متغیمة یعرف باکمال شعبان ثلاثین یوماً...... وکذلک ان غم علی الناس هلال شوال اکملوا عدة رمضان ثلاثین یوما لان الاصل بقاء الشهر وکماله فلا یترک هذا الاصل الا بیقین علی الاصل المعهود ان ما ثبت بیقین لا یزول الا بیقین مثله فان کانت السماء مصحیة ورأی الناس الهلال صاموا وان شهد واحد برؤیة الهلال لا تقبل شهادته مالم تشهد جماعة یقع العلم للقاضی بشهادتهم فی ظاهر الروایة ولم یقدر فی ذلک تقدیراً. (بدائع الصنائع ۲: ۲۲۰ قبیل اختلاف المطالع)

مردان خلق احتیاط نه کوی، الله تعالی دې دوی ته توفیق ورکړی. وهوالموفق

## دَ اختر او روژې حکم په شرعی ثبوت باندې دې په حساب کتاب باندې نه

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې، چه په دې کال دَورځو په حساب سره به اختردَجمعې په ورځ راځی، دَشپې یولس (۱۱) بجې ریډیو هم دَ اختراعلان اوکړو. اوس بعضې خلق وائی چه روژې مکمل شوې، اوبعضې خلق وائی چه روژې پوره نه شوې. په ډائرې کښې هم یو ورځ کمه ده. ځکه چه په دې کښې دیرش روژې حساب کړې شوې دی. لهذا دَدې یوې روژې به څه حکم وی؟ بینواتوجروا.

المستفتی: فضل حق کلکوټ ضلع دیر...... ۲/ذی قعده ۱۴۰۲ھ.

**الجواب:** ستاسوروژې مکمل دی ځکه چه دامیاشت دَیوکم دیرشو (۲۹) ورځو وه، دَرؤیت هلال په وجه باندې دَروژې حکم ورکړې شوې وو، اوداسې دَ شوال هم، په ډائرئ اوحساب کتاب باندې یواهل علم هم اعتمادنه کوی، لهذا شک مه کوئ، اوپه تاسویادَبل چاپه ذمه باندې قضانشته.﴿۱﴾. وهوالموفق.

## دَ حضرت علی رضی الله عنه نه دَ میاشتو حساب ثابت نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که یوکس دَحضرت علی رضی الله عنه په حساب سره میاشت معلومه کړی اودَ روژې او اخترحکم بغیر رؤیت هلال اودَشهادت نه ورکړی نوداصحیح ده یا نه؟ اوسند جوړیدې شی یا نه؟ داحساب کتاب په فتاوی نورالهدی جامع الفوائد ۴۳۶ کښې موجود دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی عبدالحئ اکبرپوره...... ۱۹۷۵ء/۱۰/۱۲.

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: ان الاستقصاء فی معرفه الشهر لا الی الکتاب والحساب کما علیه اهل النجامة فالمعنی ان العمل علی مایعتاده المنجمون لیس من هدینا وسنتنا بل علمنا یتعلق برؤیة الهلال فانا نراه مرة تسعا وعشرین ومرة ثلاثین.
(مرقاة المفاتیح شرح المشکوٰة ۴: ۲۴۴ باب رؤیة الهلال الفصل الاول)



**الجواب:** داحساب روایةً او درایةً مردود دې. اماالاول فلانه لم یروعن اصحابنا لافی الظواهرولافی النوادرولافی الفتاوی المعتبرة﴿۱﴾. وامادرایة فلانه معارض بالحدیث وتعامل السلف.﴿۲﴾. وایضالم یروعن علی رضی الله عنه بسندصحیح ﴿۳﴾. وهوالموفق.

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: قوله ولا عبرة بقول الموقتین ای فی وجوب الصوم علی الناس بل فی المعراج لا یعتبر قولهم بالاجماع ولا یجوز للمنجم ان یعمل بحساب نفسه...... ووجه ما قلناه ان الشارع لم یعتمد الحساب بل الغاه بالکلیة بقوله نحن امة امیة لا نکتب ولا نحسب الشهر هکذا وهکذا.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۰۰ مطلب لا عبرة بقول المؤقتین فی الصوم)

﴿۲﴾ عن ابن عمر قال قال رسول الله صلی الله علیه وسلم لا تصوموا حتی تروا الهلال ولا تفطروا حتی تروه فان غم علیکم فاقدروا له متفق علیه، وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم صوموا لرؤیته وافطروا لرؤیته فان غم علیکم فاکملوا عدة شعبان ثلاثین متفق علیه، وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم انا امة امیة لا نکتب ولا نحسب الشهر هکذا وهکذا و عقد الابهام فی الثالثة ثم قال الشهر هکذا هکذا وهکذا یعنی تمام الثلاثین یعنی مرة تسعا وعشرین ومرة ثلاثین متفق علیه.
(مشکوٰة المصابیح ۱: ۱۹۰ باب رؤیة الهلال)

﴿۳﴾ دا توقیت او اندازې د بعضې سلفونه منقول دی لیکن ددوی حیثیت صرف د لطائفو نه زیات نه دې په شریعت کښې مشاهدې لره اعتباردې مثلاً علامه محمد مغربی لیکلی دی چه په قمری کلنډر کښې ثلورومیاشتو پورې مسلسل د دیرشو سپوږمئ وی خوددې نه پس نه وی اود یوکم دیرشو سپوږمئ مسلسل تر دریو میاشتو پورې کیدې شی ددې نه پس نهٔ، (الیواقیت العصریه ۱۴۹) اوحضرت جعفر صادق رحمه الله نه روایت دې چه د یو رمضان پنځم تاریخ چه په کومه ورځ وی د راروان رمضان ړومبئ روژه لازماً په هم هغه ورځ وی، علامه مغربی وائی چه دا قاعده پنځوس کاله ؤزمائیلې شوه، همیشه صحیح اوختله (الیواقیت ۳۴۲) ابن عبدالبر تصریح کړې ده چه میاشت ثلور میاشتو پورې مسلسل ناقص کیدې شی او پنځمه پوره د دیرشو وی، اوعلامه نووی فرمائیلی دی:
قالوا وقد یقع النقص متوالیا فی شهرین وثلاثة واربعة ولا یقع فی اکثر من اربعة.
(نووی شرح مسلم ۱: ۳۴۷ باب رؤیة الهلال) ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## کله چه سپوږمۍ په نظر رانشی نو په رؤیت هلال کمیټۍ باندې اعتماد کول جائز دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په دې ځل دَرؤیت هلال کمیټۍ دَطرف نه دَ وړوکی اخترچه کوم اعلان شوې وو، چه کمیټۍ والو سپوږمۍ پخپله لیدلې ده، دلته یو مولوی صاحب اووئیل چه دَرؤیت هلال کمیټې اعلان زمونږ دپاره صحیح نه دې ترڅوچه ماته پخپله شهادت کونکی نه وی راغلی، زه دَاختراعلان نه کوم، آیا دَمولوی صاحب دا طریقه صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد فاروق احمد، احمدپورشرقیه بهاولپور... ۱۹۷۳ء/۸/۱۰

**الجواب:** ریډیواودنوراطلاعاتو په ذریعې چه کله دَسپوږمۍ متعلق اعلان

(بقیه حاشیه)..لیکن علامه نووی او ابن عبدالبر په دې کښې استقراء باندې عمل کړې دې او دلیل استقرائی مفید د یقین نه وی:

قال ابو عبد الله قطب الدین الرازی: الاستقراء هوالحکم علی کلی لوجوده فی اکثر جزئیاته...... لان مقدماته لا تحصل الا بتبع الجزئیات وهو لا یفید الیقین لجواز وجود جزئ آخر لم یستقر ویکون حکمه مخالفا لما استقرئ، (القطبی ۳۴۸ بیان الاستقراء)

لهذا دا صرف لطیفه کیدې شی کلی حکم نه دې:

قال الملا علی قاری: فان النووی وابن عبد البر صرحا بان الشهر قد ینقص اربعة اشهر متوالیة لا خمسة قال ابن حجر و کانهما اعتمدا فی ذلک علی الاستقراء ومع ذلک الظاهر انه لو وقع خلاف ذلک عمل به (مرقاة المفاتیح ۴:۲۴۴ باب رؤیة الهلال)

اودا حدیث چه دې: شهرا عید لاینقصان رمضان و ذوالحجة متفق علیه... نو ددې نه مراد حسی او عددی نقصان نه دې بلکه ثواب مراد دې:

قال القاری: لا ینقصان ای غالبا عن الثلاثین او ثوابا ولو نقصا عددا او لا ینقصان معا فی سنة واحدة او فی سنة معینة اراها ﷺ ولیس المراد انهما لا ینقصان حسا کما اجمعوا علیه و لا عبرة بمخالفة بعض الشیعة لانه مخالف للمشاهدة ...... قال بعض الحفاظ صام رسول الله ﷺ تسع رمضانات منها رمضانان فقط ثلاثون کذا فی شرح ابن حجر. (مرقاة المفاتیح شرح مشکواة المصابیح ۴:۲۴۵ باب رؤیة الهلال)......ازمرتب



کوی نو دَ اعتمادی اداري (رؤیت هلال کمیټی) دَطرف نه اعلان کوی، چه په هغې سره زړه ته تسلی حاصلیږی، لهذا په دې باندې اعتمادکول اختراو روژه نیول جائز دی. ﴿۱﴾. هرامام (جمات) ته دَرؤیت ثبوت ضروری نه دې بلکه په یویوځائې کښې رؤیت ثابت کیدو باندې ټولوخلقوته روژه نیول ضروری دی. (لمافی الهندیة ۱:۱۹۸). ﴿۲﴾. وهوالموفق.

## دَ قمری کال حساب کتاب ډیر آسان دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه شمسی اوعیسوی کال تقریباًدَدرې سوو او پنځه شپیتو (۳۶۵) منلې شوې دې، خودَدې مخالف په قمری کال کښې یوه میاشت دَدیرشوورځواویوه دَیوکم دیرشو اوکله دوه دَدیرشواودوه دَیوکم دیرشو وی، خوزماپه خیال چاته هم صحیح علم نشته چه کومه یوه میاشت دَقمری دَیوکم دیرشوده اوکومه یوه دَدیرشو ورځوده، که واقعی یوصحیح حساب موجود وی نودامکمل طورباندې په تفصیل سره اولیکئ، چه مونږته صحیح معلومات اوشی، یادَدې صحیح علم صرف الله تعالی ته دې، اوکه دا یومشکوک څیزوی نوآیا په دین کښې هم شک جائز دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: جمعه خان خټک نظام پورنوشهره....... ۱۹۶۹ء/۱۱/۲۶.

**الجواب:** دَشمسی کال شروع کیدل او ختمیدل داسی دَمیاشتوشروع کیدل او

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: وقد یقال ان المدفع فی زماننا یفیدغلبة الظن وان کان ضاربه فاسقا لان العادة ان الموقت یذهب الی دارالحکم آخر النهار فیعین له وقت ضربه ویعینه ایضا للوزیر وغیره واذا ضربه یکون ذلک بمراقبة الوزیر واعوانه فیغلب علی الظن بهذه القرائن عدم الخطا وعدم قصد الافساد.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۱۵ مطلب فی جواز الافطار بالتحری)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان لم یکن بالسماء علة لم تقبل الاشهادة جمع کثیر یقع العلم بخبرهم وهو مفوض الی رأی الامام من غیر تقدیر هو الصحیح کذا فی الاختیارشرح المختار.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۱۹۸ الباب الثانی فی رؤیة الهلال)

کیني مونږ دانه ختمیدل مونږته صرف دَتقلید او حساب نه معلومیږی.﴿۱﴾ شولیدلي چه نمر دَفلاني نقطې نه فلانی تاریخ باندې روان شو، او په دې نقطې فلانی تاریخ ته اورسیدلو، او داسې دَمیاشتی دَشروع کیدلو او ختمیدلو حال دې، بلکه کوم خلق چه نمرولاړ ګنړی نو دَهغوی دپاره دَشمسی کال په ځائی کال ارضی نوم کیښودل پکاردی، او دَهغوی دپاره ضروری ده چه دَزمکې دَیوې خاص نقطې نه دَحرکت شروع او ختمیدل مقرر کړی په خلاف دَقمری کال او دَمیاشتو، چه دَدې دَشروع او ختمیدلو دارومدار په شریعت مقدسه کښې زمونږ په ثبوت باندې ږدلئ شوې دی چه ډیر آسان دې او هم دَدې ثبوت په وجه باندې میاشتې بعضې دَدیرشو ورځو وی او بعضې

(۱) زمکه د نمرنه چاپیره یو چکر په درې سوه پنځه شپیته (۳۶۵) ورځې پنځه ګهنټې اتهٔ څلویښت منټهٔ او شپږ څلویښت سیکنډه کښې مکمل کوی که هر کال د ۳۶۵ ورځو شمار کیدلې نو کیلنډر به پنځه ګهنټې اتهٔ څلویښت منټه او ۴۶ سیکنډ دکال په حساب سره مسلسل تیز روان وو چه دې سره به دالاندې کیفیت پیدا کیدلو.

په څلورو کالو کښې به دریویشت ګهنټې پنځلس منټه او څلور سیکنډه فرق وو.

په سلو کالو کښې به څلیریشت ورځې پنځه ګهنټې شپاړس منټه څلویښت سیکنډه فرق راتلو، په څلورسوه کالو کښې به ۹۶ ورځې ۲۱ ګهنټې ۶ منټه ۴۰ سیکنډه فرق راتلو.

ددې فرق لرې کولو دپاره په عیسوی شمسی تقویم کښې دا لاندې قاعدې مقرر کړې شوې دی.(۱)..... په څلورو کالو کښې کیلنډر د نمرنه چاپیره د زمکې دکال ګردش په اعتبار سره تقریباً یوه ورځې مخکښې کیږی چه دې لره اصل مقام ته راوړلو دپاره په هرڅلورم کال د فرورئ په میاشت کښې د یوې ورځې اضافه کولې شی.دغسې دکوم کال کال ۱۳۶۶ ورځې جوړیږی.(۲)..... که په پورتنئ قاعده باندې مکمل عمل او کړې شی نو په ۱۱۰۰ کالو کښې به د ۱۲۵ ورځو اضافه کیږی حالانکه په دې موده کښې اصل فرق تقریباً څلیریشت ورځې وی لهذا د پنځیشتمې ورځې فالتو اضافه لرې کولو دپاره د صدئ آخری کال یعنی هغه کال چه دهغې اعداد په ۱۱۰۰ باندې پوره تقسیمیږی لیپ نه شمارلې کیږی. دغسې په یو عام صدئ کښې د لیپ ټول څلیریشت کاله جوړیږی.
(۳)..... که په هره صدئ کښې څلیریشت ورځې زیاتې کړې شی نو په څلور سوه کالو کښې به ۱۹۶ ورځې اضافه وی.حالانکه په دې موده کښې اصل فرق تقریباً ۱۹۷ ورځې کیږی، لهذا ددې یوې ورځې کمی پوره کولو دپاره.............

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



دَیو کم دیرشو وی، فافهم وتدبر، ﴿۲﴾.لهذا په دې باندې یقین نه کول دَشریعت نه دَناخبرئ ثبوت دې او دَالله تعالی په معلوماتو کښې هیڅ شک ممکن نه دې، خوزمونږ په معلوماتو کښې شک راتلئ شی، مثلاً یوم الشک چه ورته وئیلې شی نو دَالله تعالیِ په علم کښې هیڅ شک نه وی، الله تعالی ته دامعلومه ده چه دا ورځ دروژې ده یا دَشعبان، شک مونږته راغلې دې چه مونږنه مکمل معلومات او نه شو. وهو الموفق.

(بقیه حاشیه)... د څلورو صدو آخری کال یعنی هغه کال چه دهغې اعداد په ۱۴۰۰ باندې پوره تقسیم شی لیپ شمارلې کیږی.
(۴) ....که په هر څلور صدو کښې ۱۹۷ ورځې زیاتې کړې شی نو په څلور زره کالو کښې ۱۹۷۰ ورځې اضافه کیږی حالانکه په دې موده کښې اصل فرق تقریباً ۱۹۶۹ ورځې وی، لهذا د یوې ورځې فالتو اضافه بندولو دپاره هر څلور کاله پس هغه کال چه دهغې اعداد په ۱۴۰۰۰ باندې پوره تقسیمیږی لیپ نه شمارلې کیږی، ددې مودې نه پس چه کوم د څو ګهنټو فرق پاتې کیږی هغه د څلیریشتو ګهنټو یا یوه مکمل ورځ جوړولو دپاره تقریباً شل زره کاله پکاردی.

پورته ذکرشوې ټول اهتمام په جدید ګریګورین کیلنډر کښې شوې دې قدیم جیولین کلنډر کښې دهرصدئ آخری کال به لیپ شمارلې شو، لهذا کله چه پوپ ګریګوری په ۱۵۸۲ء کښې د یو فرمان په ذریعه دجدید کلنډر قواعد جاری کړل هغه وخت عیسوی کلنډر داصل نه تقریباً یوه نیمه هفته روستو روان وو، دا فرق داسې لرې کړې شو چه د جمعرات څلورم اکتوبر ۱۵۸۲ئ نه پس لس ورځې حذف کړې شوې یعنی ددې نه وروسته ورځ د جمعې د پنځم اکتوبر په ځائې پنځلسم اکتوبر مقرر کړې شو، پروټسټنټ ملکونو پوپ سره د خپلو مذهبی اختلافاتو په لحاظ سره دا ترمیم زر قبول نه کړو، البته مختلفو ملکونو دې لره مختلفو وقفو سره خپل کړو، مصر او جاپان دې لره د نولسمې صدئ د دریمه ربع په آخر کښې قبول کړو، چین، ترکی، روس او یونان دې لره خپلو ملکونو کښې په شلمه صدئ کښې جاری کړو، دغه وخت پورې دا فرق دیارلس ورځې شوې وو.
د اتلسمې صدئ په مینځ ۱۷۵۲ء کښې چه کله ګریګورین کلنډر په انګلستان کښې نافذ کړې شو، نو دا پورته فرق یوولس ورځې وو، لهذا په دغه کال د چارشنبې په ورځ ۲ ستمبر نه پس یوولس ورځې شمار نه کړې شوې، یعنی ددې نه وروسته ورځ د جمعرات د ۳ ستمبر په ځائې ۱۴ ستمبر مقرر کړې شو، ددې نه علاوه په انګلستان کښې هم ددغې کال نه د نوی کال اوله ورځ یکم جنوری مقرر کړې شوه، حالانکه ددې نه مخکښې هلته دوه قسمه کلنډر عام وې، سول civel یا قانونی legal دکال شروع ۲۵ مارچ نه کیدله،

............ ۲۵ ورځ ورپسې نه ددې نو وو مارچ ۲۴ ورځ په آخره ۱۵۵۰ء په طور د دمثال که دغسې
Historical کال دیکم مارچ د راروان کال ۱۵۵۱ء رومبئ ورځ، ددې په عکس تواریخی
جنوری نه شروع کیدلو، دغسې که دیو قانونی سال په اعتبارسره ۲۴ مارچ ۱۵۵۰ء وو
نود تواریخی کال په اعتبارسره ۲۴ مارچ ۱۵۵۱ء هرکال یکم جنوری نه ۲۴ مارچ پورې
د ټولو ورځو همدغه کیفیت وو، ددې نه مخکښې د اوومې صدئ نه دیارلسمې صدئ
پورې نوې کال د کرسمس د ورځې نه شمار کیدلو، ددې نه علاوه هم په عیسوی تقویم
کښې ورې غټې تبدیلئ کیدلې، خوپه موجوده تقویمی حسابونو کښې دیکسانیت او
سهولت په خاطر دټولې زمانې د کالونو شروع دیکم جنوری نه کیږی (ماخوذ از جوهر
تقویم)....ازمرتب

﴿۲﴾ واضحه دې وی چه قمری میاشتې دنوی سپوږمئ نه شروع کیږی اوحسابی قواعد
صرف په حساب کښې داختصار اوآسانئ دپاره مرتب کړې شوی دی، دعلوم فلکیات په
لحاظ سره د رؤیت هلال دمشاهداتی معیار مطالعه اوکړې شی نوداحقیقت ښکاره کیږی
چه لکه څنګه مونږ دهفتې ورځې اوشمسی تاریخونه دمشرق یومخصوص مقام (۱۸۰
درجه طول بلد سره تیریدو والا بین الاقوامی ډیټ لائن) سره یومخصوص وخت باندې (د
شپې دولس بجې) شروع کوو، اود راروانو څلیریشتو ګهنټو دپاره ددې نه مغرب طرف ته
واقع مقاماتو باندې ددغه ځایونو دمعیاری وختونو مطابق ددې برابر مطابقت کوو،
قمری اعتبارسره داسې کیدل بالکل ناممکن دی، ځکه چه د سپوږمئ د غیربرابر ماهانه
ګردش په وجه د رویت هلال آغاز همیشه په یومخصوص مقام باندې نه کیږي، نوې
سپوږمئ د کرهٔ ارض وسطی یا مغربی حصو کښې د مشرقی مقاماتونه مخکښې په نظر
راځی، په نورو الفاظو کښې دهر یوې میاشت قمری ډیټ لائن دمختلفو مقاماتو نه شروع
کیږی اوخاص خبره داده چه د شمسی ډیټ لائن په شان دا تقریباً په یو برابر کښې نه وی
بلکه خمیده بیضوی قوس په صورت کښې وی اودغسې په یوطول بلد باندې واقع ټولو
مقاماتو نه نهٔ تیریږی بلکه دمشرق نه مغرب طرف ته دقوس صرف اندرونی درجې ګیروی
هم داوجه ده چه په بعضې اسلامی ملکونو کښې د سپوږمئ لیدلو باقاعده انتظاماتو
باوجود څوځل ددوی په رویت هلال کښې د نورو ملکونو نه یوورځ تاخیرکیږی ددې
وجوهاتو په بنا باندې د رویت هلال مطابق یوحتمی بین الاقوامی قمری تقویم تیارول
قطعاً ممکن نه دی لهذا پورته ذکرشوی حسابی قاعدوته مونږ آخری فیصله نه وایو،
بلکه دقریب ترین صحیح تاریخ معلومولو یوه آسانه طریقه ورته وایو، چه په دې کښې د
رویت هلال نه یوه یا نیمه ورځ اختلاف ډیرځل کیږی ددې یوه وجه داهم ده چه د قمری
میاشتو اصل موده ۱۲۹ ورځې شپږ ګهنټې او ۱۲۹ ورځې (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په دې زمانه کښې فسق عام دې ځکه دَ رؤیت په مسئله کښې به قاضی تحری کوی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَدوو یا دوو نه زیاتو کسانو ګواهی ورکړه چه مونږ دَاختر میاشت لیدلې ده او په هغه وخت آسمان کښې ګرداو وریځ وی اوداخلق په عام خلقو کښې متهم بالفسق وی ځکه چه دا خلق بعضې وختونو کښې بغیر دَڅه عذرنه مونځ پریږدی اوبیاهم هغوی دَاختر د میاشت ګواهی ورکوی نوآیا دَدوی قول اوشهادت به قبلولئ شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملاشیرمحمدلورآلائی بلوچستان.....۱۹۷۸ء/۲۱/۱۰.

**الجواب:** په دې باب کښې ظن غالب ته کتلئ شې، که دَقاضی تسلی دَدوی په بیان باندې اوشی نوبیاصحیح ده، په دې زمانه کښې خوفسق عام دې، په دې وجه باندې به قاضی تحری کوی.

**والفاسق اهل للقضاء حتی لو قلد یصح الا انه لا ینبغی ان یقلد کما فی حکم الشهادة فانه لا ینبغی ان یقبل القاضی شهادته ولو قبل جاز عندنا (هدایه ۲:۱۲۲)﴿۱﴾.**

کله چه قاضی ته معلومه شی. چه دا خلق اګرچه فاسقان دی خو دروغ نه وائی

(بقیه حاشیه)..... ۱۲۰ ګهنټو په مینځ کښې مختلفو میاشتو کښې مختلف وی خوپه حسابی تقویم کښې ددې اوسط موده (۱۲۹ ورځې پاؤکم دیارلس ګهنټې تقریباً) په نظر کښې ساتلې شی، ددې نه علاوه په حساب کښې د سهولت په خاطر دهر قمری کال میاشتې یو ترتیب سره ۱۳۰ او ۱۲۹ ورځو کښې تقسیمولې شی اوپه عملی طورباندې قطعاً داسې نه کیږی، ددې معمولی سقم باوجود ددې قاعدو افادیت بهرحال مسلم دې چه دا په تحقیقی امورو کښې کافی ممد ثابت کیدې شی.
(ماخوذ از جوهر تقویم لضیاء الدین لاهوری).
خلاصه: .... ددې دواړو نظامونو تفصیلی تقویم نه معلومه شوه چه شمسی نظام تقویم د مفروضو او انسانانو دتعین اوتخصیص سره قائم دې، اوپه دې وجه د طویل میعاد تیریدو نه پس په دې کښې کمې زیاتې کیږی، اوپه قمری حساب کښې داسې نه دی، او په دې وجه شریعت د سپوږمئ په ثبوت اوعدم ثبوت باندې معیار اینښودلې دې، چه دا ډیرآسان او سهل ترینه طریقه ده...... (از مرتب)
﴿۱﴾ (هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۳۵۸ کتاب ادب القاضی)

..............

دغسې که دمثال په طور د ۱۵۵۰ء په آخره ورځ ۲۴ مارچ وو نو ددې نه ورپسې ورځ ۲۵ مارچ د راروان کال ۱۵۵۱ء رومبئ ورځ، ددې په عکس تواریخی **Historical** کال دیکم جنوری نه شروع کیدلو، دغسې که دیو قانونی سال په اعتبارسره ۲۴ مارچ ۱۵۵۰ء وو نود تواریخی کال په اعتبارسره ۲۴ مارچ ۱۵۵۱ء هرکال یکم جنوری نه ۲۴ مارچ پورې د ټولو ورځو همدغه کیفیت وو، ددې نه مخکښې د اوومې صدئ نه دیارلسمې صدئ پورې نوې کال د کرسمس د ورځې نه شمار کیدلو، ددې نه علاوه هم په عیسوی تقویم کښې ورې غتې تبدیلئ کیدلې، خو په موجوده تقویمی حسابونو کښې دیکسانیت او سهولت په خاطر دټولې زمانې د کالونو شروع دیکم جنوری نه کیږی.(ماخوذ از جوهر تقویم)....ازمرتب

﴿۲﴾ واضحه دې وی چه قمری میاشتې دنوی سپوږمئ نه شروع کیږی اوحسابی قواعد صرف په حساب کښې داختصار اوآسانئ دپاره مرتب کړې شوی دی، دعلوم فلکیات په لحاظ سره د رؤیت هلال دمشاهداتی معیار مطالعه اوکړې شی نو داحقیقت ښکاره کیږی چه لکه څنګه مونږ دهفتې ورځې اوشمسی تاریخونه دمشرق یومخصوص مقام (۱۸۰ درجه طول بلد سره تیریدو والا بین الاقوامی ډیټ لائن) سره یومخصوص وخت باندې (د شپې دولس بجې) شروع کوو، اود راروانو څلیریشتو ګهنټو دپاره ددې نه مغرب طرف ته واقع مقاماتو باندې ددغه ځایونو دمعیاری وختونو مطابق ددې برابر مطابقت کوو، قمری اعتبارسره داسې کیدل بالکل ناممکن دی، ځکه چه د سپوږمئ د غیربرابر ماهانه ګردش په وجه د رویت هلال آغاز همیشه په یومخصوص مقام باندې نه کیږی، نوې سپوږمئ د کرهٔ ارض وسطی یا مغربی حصو کښې د مشرقی مقاماتو نه مخکښې په نظر راځی، په نورو الفاظو کښې دهر یوې میاشت قمری ډیټ لائن دمختلفو مقاماتو نه شروع کیږی اوخاص خبره داده چه د شمسی ډیټ لائن په شان دا تقریباً په یو برابر کښې نه وی بلکه خمیده بیضوی قوس په صورت کښې وی اودغسې په یوطول بلد باندې واقع ټولو مقاماتو نه نۀ تیریږی بلکه دمشرق نه مغرب طرف ته دقوس صرف اندرونی درجې ګیروی هم داوجه ده چه په بعضې اسلامی ملکونو کښې د سپوږمئ لیدلو باقاعده انتظاماتو باوجود څوځل ددوی په رویت هلال کښې د نورو ملکونو نه یوورځ تاخیر کیږی ددې وجوهاتو په بنا باندې د رویت هلال مطابق یوحتمی بین الاقوامی قمری تقویم تیارول قطعاً ممکن نه دی لهذا پورته ذکرشوی حسابی قاعدوته مونږ آخری فیصله نه وایو، بلکه دقریب ترین صحیح تاریخ معلومولو یوه آسانه طریقه ورته وایو، چه په دې کښې د رویت هلال نه یوه یا نیمه ورځ اختلاف ډیرځل کیږی ددې یوه وجه داهم ده چه د قمری میاشتو اصل موده ۲۹ ورځې شپږ ګهنټې او ۲۹/۱ ورځې (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په دې زمانه کښې فسق عام دې ځکه دَ رؤیت په مسئله کښې به قاضی تحری کوی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَدوو یا دوو نه زیاتو کسانو ګواهی ورکړه چه مونږ دَاخترمیاشت لیدلې ده او په هغه وخت آسمان کښې ګرداو وریځ وی اوداخلق په عام خلقو کښې متهم بالفسق وی ځکه چه دا خلق بعضې وختونو کښې بغیردَڅه عذرنه مونځ پریږدی اوبیاهم هغوی دَاختر د میاشت ګواهی ورکوی نوآیا دَدوی قول اوشهادت به قبلولئ شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملاشیرمحمدلورآلائی بلوچستان......۱۹۷۸ء/۲۱/۱۰.

**الجواب:** په دې باب کښې ظن غالب ته کتلئ شې، که دَقاضی تسلی دَدوی په بیان باندې اوشی نوبیاصحیح ده، په دې زمانه کښې خوفسق عام دې، په دې وجه باندې به قاضی تحری کوی.

**والفاسق اهل للقضاء حتی لو قلد یصح الا انه لا ینبغی ان یقلد کما فی حکم الشهادة فانه لا ینبغی ان یقبل القاضی شهادته ولو قبل جاز عندنا (هدایه ۲:۱۲۲)** ﴿۱﴾.

کله چه قاضی ته معلومه شی چه داخلق اګرچه فاسقان دی خودروغ نه وائی

(بقیه حاشیه)..... ۱۲۰ ګهنټو په مینځ کښې مختلفو میاشتو کښې مختلف وی خوپه حسابی تقویم کښې ددې اوسط موده (۱۹۲ ورځې پاؤکم دیارلس ګهنټې تقریباً) په نظر کښې ساتلې شی، ددې نه علاوه په حساب کښې دسهولت په خاطر دهر قمری کال میاشتې یو ترتیب سره ۱۳۰ او ۱۲۹ ورځو کښې تقسیمولې شی اوپه عملی طورباندې قطعاً داسې نه کیږی، ددې معمولی سقم باوجود ددې قاعدو افادیت بهرحال مسلم دې چه دا په تحقیقی امورو کښې کافی ممد ثابت کیدې شی.

(ماخوذ از جوهر تقویم لضیاء الدین لاهوری).

خلاصه: .... ددې دواړو نظامونو تفصیلی تقویم نه معلومه شوه چه شمسی نظام تقویم د مفروضو او انسانانو دتعین اوتخصیص سره قائم دې، اوپه دې وجه د طویل میعاد تیریدو نه پس په دې کښې کمې زیاتې کیږی، اوپه قمری حساب کښې داسې نه دی، او په دې وجه شریعت د سپوږمئ په ثبوت اوعدم ثبوت باندې معیار اینبودلې دې، چه دا ډیرآسان او سهل ترینه طریقه ده...... (از مرتب)

﴿۱﴾ (هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۳۵۸ کتاب ادب القاضی)

نوبیابه دَهغوی شهادت قبلؤلي شی.﴿۱﴾.نن صباعادلان(ریښتونی) کوم څائي کښې ذی،لان قوله فی الدیانات غیرمقبول ای فی التی یتیسرتلقیها من العدول (ردالمحتار ۲:۱۲۲).﴿۲﴾.وهوالموفق.

## دَ ریډیو او ټیلی ویژن په تفصیلی خبرباندې اعتماد صحیح دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه که په یوداسې څائې یا علاقه کښې خلق او سیرې چه هغوی ته عموماً دَرومبئ شپې سپوږمئ په نظر راځی، که په څه وجه هغوی ته سپوږمئ په نظر رانشی نوداسې قسمه خلق دَریډیو په اعلان باندې اعتماد کولئ شی یا نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی:(شیخ الحدیث) مولانامغفورالله صاحب دارالعلوم حقانیه۱۹۷۸ء/۱/۳۰.

**الجواب:** هغه امارات چه دَظن غالب افاده کوی،په هغې باندې اعتمادبغیرد تقیدنه جائزدې،نوپه ریډیواوټیلی ویژن باندې به اعتمادپه بطریق اولی جائزوی،په شرط دَدې چه خبرتفصیلی وی اوحکم دهنده اومنشأ حکم باندې مشتمل وی.

**اما الاول فلما فی منحة الخالق علی هامش البحر ۲:۲۷۰ لم یذکروا عندنا العمل بالامارات الظاهرة الدالة علی ثبوت الشهر کضرب المدافع فی زماننا والظاهر وجوب العمل بها علی من سمعها ممن کان غائبا عن المصر کاهل القریٰ ونحوها الخ ﴿۳﴾. واما الثانی فلکونها**

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: قال فی جامع الفتاویٰ واما شهادة الفاسق فان تحری القاضی الصدق فی شهادته تقبل والا لا، وفی الفتاویٰ القاعدیة هذا اذا غلب علی ظنه صدقه وهو مما یحفظ درد اول کتاب القضاء وظاهر قوله وهو مما یحفظ اعتماده.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴:۴۱۴ کتاب الشهادات)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۹۹ قبیل مطلب لا عبرة بقول المؤقتین فی الصوم)

﴿۳﴾ (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ۲:۲۷۰ قبیل باب مایفسد الصوم وما لایفسده)





**واضحة الدلالة لعدم احتمال التخلف بضرب المدافع وغیرها ﴿۱﴾. واما الثالث فلحصول الیقین علی الظن مالم یعتملوا علی قول الطاعنین. وهوالموفق**

## په سوال کښې پیش کړې شوې تجویزاصولی نه دې

**سوال:** علمائې کرام په دې مسئله کښې څه فرمائی چه په پاکستان کښې علمائې کرام همیشه په وړوکی اختر اوپه غټ اختراوداسې دَروژې متعلق اختلافات راځی،لهذا که مونږدَسعودی عرب سره صرف دَیوې ورځې فرق په ساتلودَروژې وغیره اعلان کوو نوداتجویزعندالشرع جائز دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ملک عجب خان آفریدی دره آدم خیل......۱۴۰۱/۷/۲۲ھ.

**الجواب:** دَروژې او اختردارومدار په شرعی ثبوت باندې دې نه چه په نفس الامر او په اصل حقیقت باندې،لهذا په دې کښې اختلاف سلفاوخلفا راروان دې،دامنکرګنړل منکردې.﴿۲﴾.اوکوم تجویزچه تاسوپیش کړې دې دا غیر أصولی دې،دې نه علاوه په اختلاف مطالع باندې اعتبارنه کولو کښې خطره ده، چه عوام کالانعام (جاهل) پاکستانیان به په پاکستانی رؤیت باندې روژه نیسی او په ۲۷/یا۲۸/ورځې روستوبه دَسعودی په ریډیو روژه ماتوی.وهوالموفق.

﴿۱﴾ قال ابن عابدین: وقد یقال ان المدفع فی زماننا یفید غلبة الظن وان کان ضاربه فاسقا لان العادة ان الموقت یذهب الی دارالحکم آخر النهار فیعین له وقت ضربه ویعینه ایضا للوزیر وغیره واذا ضربه یکون ذلک بمراقبة الوزیر واعوانه للوقت المعین فیغلب علی الظن بهذه القرائن عدم الخطا وعدم قصد الافساد والا لزم تاثیم الناس وایجاب قضاء الشهر بتمامه علیهم فان غالبهم یفطر بمجرد سماع المدفع من غیر تحر ولا غلبة ظن والله تعالیٰ اعلم. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۱۵ مطلب فی جواز الافطار بالتحری)

﴿۲﴾قال الامام ولی الله الدهلوی:قال النبی ﷺ لا تصوموا حتی تروا الهلال ولا تفطروا حتی تروه فان غم علیکم فاقدروا له وفی روایة فاکملوا العدة ثلاثین اقول لما کان وقت الصوم مضبوطا بالشهرالقمری باعتبار رویة الهلال ......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ افغانستان او پاکستان په مينځ کښې علاقې والا خلق دې دَاهل فتوې د فيصلې اتباع کوي

**سوال:** علمائې دين مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې دَرومبئ شپې سپوږمئ په نظر نه راځی که آسمان صفا وی او که نه، ځکه چه دلته اوچت اوچت غرونه دی. زمونږ علاقه قبائلی ده، چه دا دَافغانستان او پاکستان په مينځ کښې واقع ده. اوس مونږ روژه او اختر دَپاکستان سره اوکړو او که دَافغانستان سره. حالانکه اکثر دَپاکستان او افغانستان په مينځ کښې دَيو يا دوو ورځو فرق ضرور وی؟ بينوا توجروا.

المستفتی: عبيدالله افغانی مقامِ تيراه کرم ايجنسی...شوال ۱۳۸۹ھ.

**الجواب:** دَداسې علاقې خلقو دپاره دَ اهل علم وفتوی دَفيصلې په اعتبار سره دَ دواړو ملکونو سره موافقت جائز دې.﴿۱﴾.خو بهتره دا ده چه دَ کوم ملک په خبربانديې ئې روژه نيولې وی نو اختر دې هم دَهغوی سره اوکړی.وهو الموفق.

(بقيه حاشيه) وهو تارة ثلاثون يوما وتارة تسعة وعشرون وجب فی صورة الاشتباه ان يرجع الی هذا الاصل وايضا مبنی الشرائع علی الامور الظاهرة عند الاميين دون التعمق والمحاسبات النومية، بل الشريعة واردة باخمال ذكرها وهو قوله عليه السلام انا امة امية لا نكتب ولا نحسب...... واعلم ان من المقاصد المهمة فی باب الصوم سد ذرائع التعمق ورد ما احدثه فيه المتعمقون فان هذه الطاعة كانت شائعة فی اليهود والنصارىٰ ومتحنثی العرب ولما رأوا ان اصل الصوم هو قهر النفس تعمقوا وابتدعوا اشياء فيها زيادة القهر وفی ذلك تحريف دين الله وهو اما بزيادة الكم او الكيف ...... واصل التعمق ان يؤخذ موضع الاحتياط لازما ومنه يوم الشك ومن الكيف النهی عن الوصال والترغيب فی السحور...... ثم الهلال يثبت بشهادة مسلم عدل او مستور انه رآه وقد سن رسول الله صلی الله عليه وسلم فی كلتا الصورتين ...... وكذلك الحكم فی كل ما كان من امور الملة فانه يشبه الرواية.

(حجة الله البالغة ۲: ۵۱ احكام الصوم)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ولو كانوا ببلدة ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## په اختر روژه کښې دَ مقامی علماؤ دَ فيصلې پابندی او په ريډيو باندې تفصيلی اعلان

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه تيراه کښې هميشه آسمان کښې ګرد وی. هميشه په روژو کښې کمې راځی. لهذا که تاسو ته دَشعبان المعظم شهادت راغلې وی او که دَيوې ورځ ثبوت درسره وی نو مونږ ته ئې راؤليږئ. ډيره مهربانی به وی؟ بينوا توجروا.

المستفتی: حکيم محمد الياس بزوټ خيل تيراه کوهاټ.... ۳/۸/۱۹۷۲ء.

**الجواب:** مونږ سره دَشعبان المعظم دَمياشتې رويت ليلة الاربعاء (دَنهې په ورځ) شوې وو، او رمضان المبارک (۱۳۹۲ھ) باندې دَجمعې په شپه شوې وو، او په دې باندې شهادت هم قائم کړې شوې وو. او قبول شوې هم وو. باقی ستاسو دَعلاقې خلق دې دَمقامی علماؤ دَفيصلې پابندی اوکړی او دَريډيو په تفصيلی خبربانډی هم اعتماد کولې شی.﴿۱﴾.وهو الموفق.

## روژه او اختر زمونږ په ځائې کښې په رؤيت هلال شرعی باندې شوې دې

**سوال:** بخدمت اقدس مخدومی وسيدی حضرت شيخ الحديث صاحب دام مجدکم:

(بقيه حاشيه) لا حاكم فيها صاموا بقول ثقة) وفی السراج ولو تفرد واحد برؤيته فی قرية ليس فيها وال ولم يأت مصرا يشهد وهو ثقة يصومون بقوله قلت والظاهر انه يلزم اهل القرىٰ الصوم بسماع المدافع او رؤية القناديل من المصر لانه علامة ظاهرة تفيد غلبة الظن وغلبة الظن حجة موجبة للعمل كما صرحوا به واحتمال كون ذلك لغير رمضان بعيد اذ لا يفعل مثل ذلك عادة فی ليلة الشك الا لثبوت رمضان.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۹۹ كتاب الصوم)

﴿۱﴾ قال العلامة عبد الحئ اللكنوی: المراد الجمع الذی يحصل بخبرهم غلبة الظن وهو مفوض الیٰ رای الامام من غير تقدير عدد وهو الصحيح والعالم الثقة فی بلدة لا حاكم فيه قائم مقامه. (عمدة الرعاية علیٰ هامش شرح الوقاية ۱: ۳۰۹ بيان روية هلال صوم)

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! عرض دا دي چه زمونږ په علاقه کښې دَ آسمان دَ ګرد په وجه سره په رمضان شریف اولنئ روژې کښې ډیر اختلاف دي، بعضو دَریډیو په خبرباندې دَجمعې په ورځ روژه اونیوله اوبعضو دَهفتې په ورځ. لهذا عرض دا دي چه تاسو مونږ دَخپلې علاقې دَحالاتونه خبرکړئ، چه دَاختردَمیاشتې مونږ په صحیح طریقې سره جائزه اوکړو او دا فتوی دَعوامو په مخکښې په طور دَ حجت پیش کړو. والسلام. بینواتوجروا.

المستفتی: مولاناعبداللطیف مدرسه عربیه حمیدیه نعمانیه اظهارالاسلام ډیره غازی خان.....۱۹۶۸ء/۷/۲۳

**الجواب:** زمونږ په ځائې کښې دَشرعی رؤیت هلال په بنیادباندې دَروژې او اخترحکم ورکړې شوې دي، زمونږ دَجمعې په ورځ اولنئ روژه وه اودَهفتې په ورځ اولنې شوال وو، ﴿۱﴾. ستاسو خط په اووم(۷) شوال باندې ماته ملاؤ شو، ځکه دَ تاخیرداوجه ده. وهوالموفق.

## دَ اختر او روژې د پاره دَ ټیلیفون دَ خبر حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَاختر او روژې دَ ثبوت دپاره دَټیلیفون په خبرباندې اعتمادکولئ شو او که نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: عمرمحمدولایت زابل افغانستان......۱۹۸۶ء/۷/۲۳.

**الجواب:** ټیلیفون غیرمحفوظ آله ده، البته که محفوظ وی او دَآواز فرق کیدې شی نوپه دې باندې اعتماد جائز دې.

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: (قال رسول الله ﷺ لا تصوموا حتی تروا الهلال) ای حتی یثبت عندکم رویة هلال رمضان بشهادة عدلین او اکثر ویثبت بعدل واحد عند ابی حنیفة ایضا اذا کان فی السماء غیم وعند الشافعی ایضا فی اصح قولیه وعند احمد سواء کان فی السماء غیم ام لا وعند مالک لا تثبت اصلا قاله ابن الملک وقال القاضی ای لا تصوموا علی قصد رمضان الا ان یثبت وهو ان یری هو او من یثق علیه والمنفرد بالرؤیة اذا لم یحکم بشهادته یجب علیه عندنا ان یصوم الخ.

(مرقاة المفاتیح شرح مشکواة ۴: ۲۴۱ باب رؤیة الهلال)



لانه لا فرق بین التلفون والتیلی غراف والرادیو عند افادة الظن الغالب الا اذا کان غیر محفوظة مثل التلفون العوامی، فافهم ﴿۱﴾. وهوالموفق

## په ریډیو وغیره باندې دَ روژې او اخترعلان معتبر او وحدت صوم وعید غیرمطلوب دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په ریډیو، ټیلی فون اودَ تارپه ذریعه دَ روژې او اختر دَاعلان اعتبارشته یا نه؟ اوپه یوه ورځ باندې په ټول عالم اسلام کښې دَ اختر او روژې کول کوشش ترکوم حده پورې صحیح دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: عبدالقهاردارالعلوم عربیه ټل......۱۹۷۶ء/۳/۲۵.

**الجواب:** دَروژې اواختروحدت مطلوب شرعی نه دې اوپه اختلاف کښې هیڅ ضرر نشته. ولم

---

﴿۱﴾ دایو مسلم قاعده ده چه شهادت من وراء الحجاب معتبرنه دې، اود فون په ذریعه خبر یوقسم غائبانه اطلاع وی شهادت نه وی، په شهادت کښې دقضا په مجلس کښې د شاهد په وړاندې راتلل اوبیان کول شرط وی. پس دا شهادت نه دې بلکه خبروی، لهذا حدود شرعیه سره دمطابقت په صورت کښې داخبر معتبر او مقبول کیدې شی مطلقاً او په هرحال کښې مقبول اومعتبرنه وی چه دغلبه ظن دپاره مفید وی اود دهوکې او فریب ویره نه وی نوددې خبراعتبارصحیح دې.

قال ابن الهمام: ولو سمع من وراء حجاب کثیف لا یشف من ورائه لا یجوز له ان یشهد ولو شهد وفسره للقاضی بان قال سمعته باع ولم ارشخصه حین تکلم لا یقبله لان النغمة تشبه النغمة الا اذا احاط بعلم ذلک لان المسوغ هو العلم غیر ان رؤیته متکلما بالعقد طریق العلم به فاذا فرض تحقق طریق آخر جاز.

(فتح القدیر ۶: ۴۶۳ فصل کیفیة الشهادة).

اوعلامه حصکفی په درمختارکښې لیکی:

وقبل بلا دعوی وبلا لفظ اشهد وبلا حکم ومجلس قضاء لانه خبر لا شهادة للصوم مع علة کغیم وغبار. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۹۸ کتاب الصوم)

اوملا علی قاری په مرقاة شرح مشکوة کښې فرمائی:.....(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

یـال بـه الـصـحـابة رضی الله عنهم کما فی حدیث رواه مسلم وابو داؤد ﴿١﴾ حیث صرح فیه باختلاف اهل المدینة باهل الشام فی الصوم والفطر ﴿٢﴾.

اوپه آلاتو او علاماتو باندې اعتماد جائزدې:

عـنـد افـادة الـظن الغالب کما فی منحة الخالق علی هامش البحر ٢: ٢٧٠ لم یذکروا عندنا العمل بالامارات الظاهرة الدالة علی ثبوت الشهر کضرب المدافع

---

(بقیه حاشیه) (وعن ابن عباس قال جاء اعرابی) ای واحد من الاعراب وهم سکان البادیة (الی النبی ﷺ فقال انی رأیت الهلال) یعنی وکان غیما وفیه دلیل علی ان الاخبار کاف ولا یحتاج الی لفظ الشهادة ولا الی الدعویٰ. (مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ٤: ٢٤٨ هل یقبل شهادة المستور فی الهلال) ......(ازمرتب)

﴿١﴾ عن کریب ان ام الفضل بنت الحارث بعثته الی معاویة بالشام قال فقدمت الشام فقضیت حاجتها واستهل علی رمضان وانا بالشام فرأیت الهلال لیلة الجمعة ثم قدمت المدینة فی آخر الشهر فسألنی عبد الله بن عباس ثم ذکر الهلال فقال متی رأیتم الهلال فقلت رأیناه لیلة الجمعة فقال انت رأیته فقلت نعم وراه الناس وصاموا وصام معاویة فقال لکنا رأیناه لیلة السبت فلا نزال نصوم حتی نکمل ثلثین او نراه فقلت اولا تکتفی برؤیة معاویة وصیامه فقال لا هکذا امرنا رسول الله ﷺ.(مسلم ١: ٣٤٨ باب ان لکل بلد رؤیتهم ، وابوداؤد ١: ٣٢٦ باب اذا رأی الهلال فی بلد قبل الآخرین بلیلة، ورواه الجماعة الا البخاری وابن ماجه (نیل الاوطار ٤: ١٩٤)

﴿٢﴾ وفی المنهاج: (قوله قال الصوم یوم تصومون)...... ولا یبعد ان یکون معناه انکم اذا صمتم او افطرتم او اضحیتم او وقفتم عرفات وفقا لقواعد رؤیة الهلال ولم یکن الامر الواقع کذلک فلا ضیر فیه لان المعتبر فی هذه الامور الثبوت الشرعی دون الموافقة بنفس الامر، ففی هذا الحدیث دلیل واضح علی ان تعدد الاعیاد والصیامات غیر منکر، وتوحیدها لیس بمطلوب، لان المدار علی الثبوت الشرعی وهو ربما یختلف دون نفس الامر وهو لا یختلف، قلت وکذا وقوع هذا الاختلاف فی عهد ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه



فی زمـانـنـا والظاهر وجوب العمل بها علی من سمعها ممن کان غائبا عن المصر کاهل القریٰ ونحوها الخ ﴿١﴾ قلت والرادیو آلة محفوظ جدا فجاز الاعتماد بخبرها عند بیان منشأ الحکم واسم الحاکم خاصة لا یصل الیها کل احد اذا عرف السامع الصوت وصاحبه فافهم. وهو الموفق

## په ریډیو باندې دَ اختر اعلان په مستفیض خبر کښې داخل دې یا نه؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَریډیو اعلان په مستفیض خبر کښې داخل دې یا نه؟ اوزمونږقبائلی علاقې دَدې اعلان په حد کښې راتلئ شی یا نه؟ بعض علماؤ فتوی ورکړې که چرې دَروژې نیولو دپاره دې یقین راشی نو ګنجائش کیدې شی خو دَاختردپاره دَرؤیت یَا شهادت یا دَمستفیض خبرضرورت شته. اودَریډیو خبرپه شرعی لحاظ سره په دې کښې داخل نه دې. رؤیت اوشهادت خوظاهردې اوپه خبرمستفیض خودَفقې په کتاب کښې دَاستفاضې ئې دامعنی لیکلې ده.

قال الرحمتی: معنی الاستفاضة ان تأتی عن تلک البلدة جماعات متعددون کل منهم یخبر عن اهل تلک البلدة .......

---

(بقیه حاشیه) معاویة رضی الله عنه من غیر نکیر یدل علی انه غیر منکر. (منهاج السنن شرح جامع السنن ٤: ١٦ باب ان الفطر یوم تفطرون الخ)

قال العلامة مفتی محمد شفیع الدیوبندی:

په ټولو ښارونو کښې په یوه ورځ رمضان یا اختر کول نه په مسلمانانو باندې لازم دی نه ددې په اهتمام کښې پریوتل څه اسلامی خدمت یا شرعی اجردې اونه عادة داسې کیدې شی ځکه چه په مغربی اومشرقی ملکونو کښې دطویل مسافت نه پس داختلاف مطالع وجود یقینی اوددې اعتبار د جمهوروپه نزد ثابت دې. په دې وجه د صحابه کرامو په عهد کښې رمضان اوعید په مدینه کښې په یوه ورځ اوپه مکه کښې په بله ورځ. په شام کښې په بله ورځ په عراق اومصر کښې به په بله ورځ کیدل. په دې ټولو ښارونو کښې په یوه ورځ رمضان یا اخترکولو اهتمام چه داپه هغه زمانه کښې ممکن وو حضرات صحابه کرامو او تابعینو ددې هم اهتمام نه دې کړې. الخ

(آلات جدیده کے شرعی احکام ص ... ت صوم وعید کا کوئی شرعی اجر نہیں)

﴿١﴾ (منحة الخالق علی هامش بحر الرائق ٢: ٢٧٠ قبیل باب مایفسد الصوم ومالا یفسده)

انهم صاموا عن رویته لا مجرد الشیوع من غیر علم من اشاعه (شامی مصری ۱:۱۲۹)

دې نه علاوه احسن الفتاوی ۳۴۹ او په بهشتی زیور شپږم نمبر حصه کښې او دَ جدید آلاتو شرعی حکم په مصنفه مولانا مفتی محمد شفیع صاحب کښې ئې دَعدم جواز حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولانا عبد المستعان مهمند ایجنسی..... ۱۹۷۳ء/۷/۱۷

**جواب:** وفی منحة الخالق بعد ذکر عدم اختلاف المطالع وبعد تعریف الاستفاضة: لم یذکروا عندنا العمل بالامارات الظاهرة الدالة علی ثبوت الشهر کضرب المدافع فی زماننا والظاهر وجوب العمل بها علی من سمعها ممن کان غائبا عن المصر کاهل القریٰ ونحوها الخ (هامش البحر ۲:۲۷۰) ﴿۱﴾ قلت الآلة المسملة بالرادیو محفوظة جدا فکما جاز الاعتماد علیها لمن تحت ولایة الحاکم لافادة الظن الغالب فکذلک جاز الاعتماد لغیرهم ایضا للعلة السابقة مع ان اهل القریٰ ونحوها اعم ممن یکون تحت الولایة ولان ضرب المدافع وانارة القنادیل لا یختصان بالحکم فافهم وتدبر. وقلت اخبار الجماعات قد یتحقق فیه الغلط والتلبیس فلما جاز الاکتفاء علیه فجواز الاکتفاء بالاخبار الذی یوجد بتوسط هذه الآلة یکون مشروعا بطریق اولیٰ لعدم مظنة الغلط والتلبیس کما هو مشاهد ومجرب. وهو الموفق

## په ریډیو باندې دَ هلال کمیټې دَ اعلان شرعی حیثیت

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په ریډیو باندې هلال

﴿۱﴾ (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ۲:۲۷۰ قبیل باب مایفسد الصوم ومالایفسده)

......



کمیټې دَ روژې او اخترکوم اعلان کوی دا صحیح دې یا نه؟ دې نه علاوه چه دَ موجوده هلال کمیټې کوم ممبران دی دا نیکان دی او که نه؟ او که نه دی نو دَدوی دَاعلان شرعی حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولانا عبد السلام....... ۱۹۷۴ء/۹/۱۷

**الجواب:** دَهلال کمیټې اعلان دَاخبار، ریډیو او ټیلی ویژن په ذریعه به واجب الاعتماد وی، خو چه خبر تفصیلی وی، په دې کښې حکم دهنده او چه دَحکم وجه ذکر وی، چه ظن غالب حاصل وی او توهمات یعنی په سائنسی اُصولو باندې مبنی کیدل، دوربینونو سره کتل، په هوائی جهازونو وغیره سره کتل وغیره قطع او زائل وی.

فلیتفکر فی ما حرره العلامة الشامی فی منحة الخالق علی هامش البحر (۲:۲۷۰) لم یذکروا عندنا العمل بالامارات الظاهرة الدالة علی ثبوت الشهر کضرب المدافع فی زماننا والظاهر وجوب العمل بها علی من سمعها ممن کان غائبا عن المصر کاهل القریٰ ونحوها کما یجب العمل بها علی اهل المصر الذین لم یروا الحاکم اه ﴿۱﴾ قلت: الرادیو وغیرها اشد حفاظة واوضح دلالة کما لا یخفیٰ بخلاف ضرب المدافع او رویة القنادیل من المصر لانه علامة ظاهرة تفید غلبة الظن وغلبة الظن حجة موجبة للعمل کما صرحوا به ﴿۲﴾ قلت هذا یقتضی کون غلبة الظن مقصودة ومطلوبة ایضا.

څکه چه په قاضی او محکم او سلطانی منادی کښې عدالت شرط نه دې،

﴿۱﴾ (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ۲:۲۷۰ قبیل باب مایفسد الصوم ومالایفسده)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله وقبل بلاعلة یقع العلم الشرعی وهو غلبة الظن) لانه العلم الموجب للعمل لا العلم بمعنی الیقین نص علیه فی المنافع وغایة البیان ابن کمال ومثله فی البحر عن الفتح وکذا فی المعراج.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۰۰ کتاب الصوم)

لهذا دَدې ممبرانو دَعدالت تحقیق ضروری نه دې، وفی الهندیة۵:۳۴۲ خبر منادی السلطان مقبول عدلاکان اوفاسقاکذافی جوهرالاخلاطی.﴿۱﴾

ملاحظه:......دَ کمیټئ دا اِعلان چه رؤیت نه دې شوې په دې سره دَنورو مسلمانانو په رؤیت باندې هیڅ اثر نه پریوځی.وهوالموفق.

## دَ اختر او روژې د پاره دَ سعودی اعلان باندې اعتماد دَ علماؤ منصب دې دَ عوامو نه

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَریډیو سعودی عرب دَ روژې او اختر اعلان دَ پاکستانیانو دپاره حجت دې یا نه؟ که نه دې اوچا روژه ماته کړه نو په هغه باندې کفاره شته او که نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: تحریک طلباء اسلام برمل وزیرستان.....۱۹۸۲ء/۷/۸.

**الجواب:** بنابرظاهرالروایت اختلاف مطالع معتبرنه دې او ریډیو په نسبت دَ اماراتو واضح الدلالت دې،لعدم احتمال الغلط فیه بخلاف المدافع.﴿۲﴾ پس دَ سعودی عرب په تفصیلی خبرباندې اعتمادکول قابل اعتراض نه دې، البته دا اعتماددَعلماء کار دې دَعوامو نه،﴿۳﴾.عوام کالانعام بلا لګام نه بعیده نه ده چه په پاکستانی اعلان باندې به روژه نیسی اودَعربو په اعلان باندې به اخترکوی،اواوویشت(۲۷) یااته ویشت(۲۸) روژې به نیسی.چه دا دَاجماعی او

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۰۹ کتاب الکراهیة باب فی العمل بخبرالواحد)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: العمل بالامارات الظاهرة الدالة علی ثبوت الشهر کضرب المدافع فی زماننا والظاهر وجوب العمل بها علی من سمعها ممن کان غائبا عن المصر الخ.

(منحة الخالق علی بحرالرائق ۲:۲۷۰ قبیل باب مایفسد الصوم ومالایفسده)

﴿۳﴾قال العلامة عبد الحئی اللکنوی: المراد الجمع الذی یحصل بخبرهم غلبة الظن وهو مفوض الی رای الامام من غیر تقدیر عدد وهو الصحیح والعالم الثقة فی بلدة لا حاکم فیه قائم مقامه.

(عمدة الرعایة علی هامش شرح الوقایة ۱:۳۰۹ بیان رؤیة هلال صوم)



منصوصی امرخلاف ده،اوچاچه په دې باندې اعتماد اوکړو اوپه نصف النهار(نیمه ورځ) کښې ئې روژه ماته کړه،نوپه هغه باندې به کفاره واجب نه وی. لوجود الشبهة فافهم.﴿۱﴾.وهوالموفق.

## روژه دَ پاکستان په اعلان اواختردَ سعودی عرب په اعلان جائز نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه بعضې خلق دَرمضان روژې دَپاکستان په اعلان باندې نیسی اوپه آخره کښې اختر دَ سعودی عرب په اعلان باندې کوی،دَدې څه حکم دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: مولاناحاجی محمدبنوں........۱۹۸۷ء/۲/۲.

**الجواب:** قمری میاشت دَیوکم دیرشو(۲۹) نه کمه نه وی،او مذکوره حکم دَدې منصوصی اواجماعی حکم خلاف دې.﴿۲﴾.لهذا دا ناجائز دی،او دې نه علاوه عوام قضاء راګرځولو ته هم تیار نه وی.﴿۳﴾.وهوالموفق.

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: وانما لم تجب الکفارة فیما اذا رأی هلال رمضان ولم یصم لان القاضی رد شهادته بدلیل شرعی وهو تهمة الغلط فاورث شبهة وهذه الکفارة تندرئ بالشبهات لانها الحقت بالعقوبات الخ.

(البحر الرائق ۲:۲۶۵ کتاب الصوم)

﴿۲﴾ قال الشرنبلالی: یثبت رمضان برؤیة هلاله لقولهﷺ صوموا لرؤیته وافطروا لرؤیته فان غم علیکم فاکملوا عدة شعبان ثلاثین فلذا قال او بعد شعبان ثلاثین یوما ان غم الهلال فلم یر لغیم ونحوه لما روینا وهذا بالاجماع.

(امداد الفتاح شرح نورالایضاح ۶۲۲ فصل فیما یثبت به الهلال)

﴿۳﴾...... ☆ قال العلامةابن عابدین: لو صام رائ هلال رمضان واکمل العدة لم یفطر الامع الامام لقوله علیه الصلاة والسلام صومکم یوم تصومون وفطرکم یوم تفطرون رواه الترمذی وغیره والناس لم یفطروا فی مثل هذا الیوم فوجب ان لا یفطر (بقیه حاشیه په راروانه صفحه

## د حکومت طرف نه دَ رؤیت هلال کمیټۍ قائمول قابل تحسین دی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه حکومت پاکستان په موجوده صورت حال کښې رؤیت هلال کمیټی مقرر کړې ده، هغه دَروژې او اختر وغیره حکم لګوی او په ریډیو او ټیلی ویژن باندی اعلان کوی، او خلق په دې باندې اعتماد هم کوی، اوس سوال دا دې چه دَدې کمیټۍ څه شرعی حیثیت شته دې که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: قاری اشرف ګل ډهب سنګینی کرک.........١٩٨٩ء/١٨/٥.

**الجواب:** دَحکومت پاکستان دَطرف نه دَرؤیت هلال کمیټۍ قائمول قابل تحسین دی، خودَپاکستان په مغربی صوبو کښې دا کمیټی ناکام ده، نه حکومت په علت سره په آزادو علاقو کښې دکمیټۍ ممبران مقرر کړی دی او نه دَعوامو دې کمیټۍ سره یا دَپاکستان حکومت سره څه همدردی شته، دې نه علاوه دا کمیټی آزاده(بااختیاره) هم نه ده، کله چه دَمشرقی صوبو دَخلقو روژې اته ویشت(٢٨) وی یا دَجمعې په ورځ اختر کیدونکې وی، نو دا کمیټې په شریعت باندې مصلحت ته ترجیح ورکوی، بهرحال ضرورت دَ کمیټۍ دَ ممبرانو مقررولو دې، دَ اختر حکم یو معتمد عالم هم ورکولې شی.﴿١﴾. وهو الموفق

(بقیه حاشیه) (ردالمحتار هامش الدر المختار ٢:٩٨ مبحث فی صوم یوم الشک)

......☆وفی المنهاج: لا نفطر براديو العرب فی باكستان لان العوام يصومون برؤية باكستان ويفطرون برؤية العرب ثم لا يقضون عند نقصان الشهر ويقومون ليلة العيد دون ليلة رمضان بالتلوم.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ٤:١٥ قبيل باب ما يستحب عليه الافطار)

﴿١﴾ قال عبد الرحمن الجزيری: لا يشترط فی ثبوت الهلال ووجوب الصوم بمقتضاه علی الناس حكم الحاكم ولكن لو حكم بثبوت الهلال بناء علی ای طريق فی مذهبه وجب الصوم علی عموم المسلمين ولو خالف مذهب البعض منهم لان......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## دَ سپوږمۍ لیدلو دَ شرعی ثبوت نه روستو دَ هلال کمیټۍ دَ اعلان نه کولو شرعی حکم وغیره

**سوال:** علمائې دین دَلاندینو مسئلو په باره کښې څه فرمائی چه!

(١). که دَشرعی ثبوت په موجودګۍ کښې دَاختر اعلان په مقامی طورباندې علماء او کړی نو عام خلق اختر کوی، خو فوجیان خلق چه کوم دلته او سیږی دَهغوی دپاره مخالفت څنګه دې؟ (٢). دشرعی رؤیت او دَقاضی دَاعلان نه روستو دَرؤیت هلال کمیټۍ اعلان نه کول دَشرعی حکم نه منل دی؟ (٣)که دَ ثبوت باوجود هلال کمیټی اعلان او نکړی نو دَدې اعلان نه کولو حکم څه دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولانا اشرف الدین خطیب فوج نوشهره........١٩٧٨ء/١١/٢٤.

**الجواب:** (١) دَشرعی ثبوت نه پس یو کس که هغه دَفوج سړې وی یا دَسول، دَ مخالفت کولو مجاز نه دی.﴿ ١﴾ (٢)دَهلال کمیټۍ اعلان نه کول دَ شرعی حکم دپاره مانع نه دې.(بشرط صدق وثبوت).﴿٢﴾. (٣) دَشرعی ثبوت باوجود دَ کمیټۍ اعلان نه کول دَمصلحت په بُنیاد باندې کیدې شی دا خدا پرستی نه ده. وهو الموفق.

(بقيه حاشيه) حكم الحاكم يرفع الخلاف وهذا متفق عليه. (الفقه علی المذاهب الاربعة ١:٤٨٢ كتاب الصيام)

﴿١﴾ وقال فی الهندية: ولا يشترط فی هذه الشهادة لفظ الشهادة ولا الدعویٰ ولا حكم الحاكم حتی انه لو شهد عند الحاكم وسمع رجل شهادته عند الحاكم وظاهره العدالة وجب علی السامع ان يصوم ولا يحتاج الی حكم الحاكم.

(فتاویٰ عالمگيرية ١:١٩٧ الباب الثانی فی رؤية الهلال)

﴿٢﴾ قال عبد الرحمن الجزيری: لا يشترط فی ثبوت الهلال ووجوب الصوم بمقتضاه علی الناس حكم الحاكم ولكن لو حكم بثبوت الهلال بناء علی ای طريق فی مذهبه وجب الصوم علی عموم المسلمين.

(الفقه علی المذاهب الاربعة ١:٤٨٣ هل يشترط حكم الحاكم فی الصوم)

في عهد معاوية رضى الله عنه من غير نكير يدل على انه غير منكر﴿١﴾. ولذا لا نفطر برادیو العرب فی باکستان لان العوام يصومون برؤية باكستان ويفطرون برؤية العرب ثم لا يقضون عند نقصان الشهر يقومون ليلة العيد دون ليلة رمضان بالتلوم.

(ماخوذ از منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی)

﴿١﴾عن كريب قال قدمت الشام......فرأيت الهلال ليلة الجمعةثم قدمت المدينةفی اخر الشهرفسالنی عبدالله‌بن عباس ثم ذكر الهلال فقال متى رأيتم الهلال فقلت رأيناه ليلة الجمعةفقال انت رايته فقلت نعم وراه الناس وصاموا وصام معاويةفقال لكنا رايناه ليلةالسبت فلانزال نصوم حتى نكمل ثلثين اونراه فقلت أولاتكتفی برؤية معاوية وصيامه فقال لاهكذاامرنارسول الله ﷺ.(صحيح مسلم ١:٣٤٨ باب ان لكل بلد رؤيتهم)

وقال الامام ولى الله الدهلوى: قال النبیﷺ: لا تصوموا حتى تروالهلال ولا تفطروا حتى تروه فان غم عليكم فاقدروا له وفی رواية فاكملوا العدة ثلاثين، اقول: لما كان وقت الصوم مضبوطا بالشهر القمری باعتبار رؤية الهلال وهو تارة ثلاثون يوما وتارة تسعة وعشرون وجب فی صورة الاشتباه ان يرجع الى هذا الاصل وايضا مبنى الشرائع على الامور الظاهرة عند الاميين دون التعمق والمحاسبات النومية بل الشريعة واردة باجمال ذكرها وهو قولهﷺ : انا امة امية لا نكتب ولا نحسب. (حجة الله البالغة ٢ : ٥١ احكام الصوم)

حضرت الشيخ المفتی محمد شفيع الديوبندی فرمائی: په ټولو ښاريو کښې هم په يوه ورځ رمضان يا اختر کول نه په مسلمانانو باندې لازم دی اونه دَدې په اهتمام کښې پريوتل يو اسلامی خدمت يا شرعی اجر دې، اونه عادةً داسې کيدې شی ځکه چه په مغربی اومشرقی ملکونو کښې ډيرې فاصلې نه پس دَاختلاف مطالع وجود يقينی اودَدې اعتبار دَجمهورو په نزد ثابت دې ځکه دَصحابه کرامو په زمانه کښې رمضان او اختر کښې په يوه ورځ کښې به په مکه کښې په بله ورځ به په شام کښې په بله ورځ په عراق اومصر کښې وو، په دې ټولو ښاريو کښې په يوه ورځ رمضان يا اختر کولو چه کوم اهتمام په هغه زمانه کښې ممکن وو، حضرات صحابه وتابعينو دَدې هم اهتمام نه وو فرمائيلې. الخ. (آلات جديده کے شرعی احکام ١٧٥ هوائی رؤيت هلال).



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

فتاوی فریدیه څلورم جلد

# باب تعریف

# الصوم و انواعه



بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

فى الجنة ثمانية ابواب

منهاباب يسمى الريان

لا يدخله الا الصائمون.

........(متفق عليه)........

..........





# باب تعریف الصوم وانواعه

## دَ علاماتِ بلوغت نه ظاهریدلو په صورت کښې دَ روژې دَ فرضیت د پاره دَ عمر حد

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَرمضان دَمیاشتې روژې دَ څومره عمرپه هلک یا جینئ باندې فرض دی؟ بینواتوجروا.

المستفتی: نامعلوم........ ١٩٧٥ء/١١/١١.

**الجواب:** که دَبلوغت علامات پکښې نه وی ظاهرشوی نودَپنځلسو کالو(١٥) عمرته رسیدلوباندې پرې روژه نیول فرض کیږی.《١》.وهوالموفق.

## په کوم ځائې کښې چه یویشت(٢١) گهنټې ورځ وی هلته به یوویشت(٢١) گهنټې روژه نیولې شی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې په سفرکښې دې اوپه داسې علاقه کښې دَهغه سفرشروع کیږی چرته چه درې نیمې بجې نمر راخیږی اودولس بجې په ۹وبیدوباندې هم دَهغې نمرسرخی نه ختمیږی، په دې حساب سره شپه صرف درې یا درې نیمې گهنټې پاتې کیږی، باقی ټول وخت په ورځ کښې راځی، یعنی تقریباً دَیویشت(٢١) گهنټو ورځ وی، اوس دَروژې په میاشت کښې بنده به په کوم وخت کښې روژه نیسی اوپه کوم وخت به روژې ماتې کوی، ځکه چه مقامی خلق دَدې مسئلې نه بالکل ناخبره دی دی؟ بینواتوجروا.

المستفتی:آدم خان ساکن بټل حال کنیډا(امریکا)......... ١٩٧٦ء/٨/٢٣.

《١》 قال العلامة الحصكفي: فان لم يوجد فيهما شيئ منها فحتى يتم لكل منهما خمس عشرة سنة وبه يفتىٰ.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ٥:١٠٧ كتاب الحجر بلوغ الغلام)

**الجواب:** چونکه په دې علاقه کښې په ثلریشتو (۲۴) گهنټو کښې دننه باقاعده راختل او ډوبیدل کیږی لهذادلته به باقاعده روژه نیولې کیږی، ځکه چه په ثلیریشتو (۲۴) گهنټو کښې دننه یو ځل روټئ اوخوړلئ شی نوپه روژه نیولو کښې هیڅ حرج نه وی، بهرحال دَ نمر ډوبید ومتصل دې روژه ماته کړئ شی اودَ نمر راختلو نه دې یوه نیمه گهنټه مخکښې روژه بندوی.﴿۱﴾.وهوالموفق.

﴿۱﴾...... دَ اوږدو ورځو په علاقوکښې دَ روژې حکم:

(۱)....په کومو علاقوکښې چه دَنمر دَعام گردش په اعتبارسره روزانه راختل او ډوبیدل نه مونډلئ کیږی بلکه ډیرو ډیرو ورځو یا ډیرو ډیرو میاشتو پورې مسلسل نمر ولاړ وی یا ډوب شی دَزمکی اوټ (اطرافو) کښې غائب وی. ځنگه چه په ارض تسعین اودَهغې طرفونو کښې داسې کیږی. نوپه دې ځایونو کښې دَنمریوه پوره دوره (دَثلیریشت (۲۴) گهنټو) دَشپې او ورځې چه کومه مجموعه شمیرلئ کیږی اودَهغې نصف آخردَورځې حصه شمیرلئ کیږی. په هغې کښې روژه اونیسی اودَهغې نیمې دَشروع کیدو نه یونیمه گهنټه مخکښې دَپیشمنی خوراک بند کړئ اودَروژی نیت اوکړئ. او اولنئ نیمه حصه چه دَشپې حصه شمیرلئ کیږی په هغې کښې دَمابښام. ماسخوتن. وتر. تراویح سحرټول مونځونه کوئ. اوبیاچه دا مجموعه دَشپې اوورځې پوره شی او دویم دور شروع شی نو فوراً دَمابښام دَمونځ پشان روژې ماتې هم اوکړئ اوبیادَدې دویم دور په نصف اول کښې خوراک څکاک وغیره اودَشپې ټول مونځونونه فراغت اوکړئ. اودَنصف ثانی دَشروع کیدونه یوه نیمه گهنټه مخکښې پیشمنې اوکړئ. اودَروژې نیت اوکړئ. ذلک للدلیل الذی بینه فی ردالمحتار ۱: ۳۳۹تحت التتمة).

(۲)....په کوموعلاقوکښې چه دَنمر راختل او ډوبیدل روزانه پوره کال مونډلې کیږی خو په هر موسم کښې دَنمرډوبیدونه روستودَصبح صادق راختلونه مخکښې دومره موقع نه ملاویږی چه خوراک څکاک پکښې اوکړئ شی اوبیادَهغې نه روستو ډوبیدو پورې روژه پوره کړې شی، نوپه دغه ځایونو کښې دَ روژې مقدار دَ گهنټونه یا دَنمرنیمگړی گردش سره متعین مه کوئ بلکه دې میاشت (رمضان) نه روستوهم دا ورځې دَروژو دپاره متعین وی خوچونکه داسې بغیرآسودگئ سره خوراک څکاک په پوره میاشت کښې په روژې باندې عادةً و عموماً قدرت نشی کیدې. ځکه دَخپل قدرت او استطاعت مطابق روژه نیسئ اوپه کومو ورځو کښې چه روژه ماتوئ دَهغې ورځودَروژو په بدله کښې..........

(باقی حاشیه په راروانه صفحه)



## دَ نمر ډوبیدودَ تحقق د پاره مشرق طرف ته دَ سرخئ زوال (ختمیدل) شرط نه دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې روژې ماتې او دَمابښام مونځ کښې اختلاف دې بعض خلق وائی چه نمرکله دَغرونونه لاندې شی اومشرق طرف ته تیاره ښکاره شی، نودَمابښام مونځ کول پکاردې، اوهم دا دَروژې ماتی وخت دې اوبعض خلق وائی چه دَمشرق طرف ته کله سرخی زائل نشی ترهغې وخت پورې مونځ یا روژې ماتې جائز نه دې، دَمسئلې حل څه دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: مولاناعبیدالله دکی لورآلائی.....۱۵/ رمضان ۱۴۰۷ھ.

**الجواب:** دَمشرق دَسرخئ دَزوال قید نه دَقرآن پاک او نه دَاحادیثو نه ثابت دې

(باقی حاشیه) دَنورومیاشتوپه ورځوکښې دَطاقت مطابق په ناغه ورکولو ورکولو کښې اداکوی.

(۳)......په کومو علاقوکښې چه دَنمرډوبیدل او راختل روزانه مونډلې کیږی خوپه کال کښې صرف په بعضومیاشتوکښې دَنمرډوبیدونه تردَصبح صادق په مینځ کښې دټول مفروضه اوواجبه مونځ اداکولو نه روستو په اطمینان سره دَخوراک څکاک او روژې نیولو وخت ملاویږی اوپه بعض میاشتوکښې نه ملاویږی، نوچه کله دَروژې میاشت په هغې میاشتوکښې راشی په کوموکښې چه دا موقع نه ملاویږی نوپه ناغه ورکولو سره سره دې حسب طاقت روژې نیسی اوپه کوموورځوکښې چه مو روژه نه وی نیولې دَهغې ورځو قضاء هم دَدې کال په نورو ورځو کښې اوکړئ.

(۴)...... په کوموعلاقوکښې چه دَنمرډوبیدول او راختل روزانه وی اودَډوبیدونه روستو دَسحر ختمیدو نه مخکښې پورې پوره کال دومره وخت ملاویږی چه په هغې کښې نماز هائے مفروضه و واجبه اداکولو سره سره په اطمینان سره دَخوراک څکاک اودَلږ آرام او سکون وخت هم ملاویږی اودَدې ځایونوپه خلقوباندې هم دَرمضان (روژې میاشت) کښې همیشه دَروژو اداکول واجب او ضروری به وی اودَ فجرصادق راختلو سره روژه شروع کول به لازم وی، اودَسحروخت زیاتیدلوپه وجه سره دَروژې مقداراگرچه زیات شی خو دا دومره زیات والې نه دې چه یو کس په روژې باندې طاقت نه لری. البته که چاته عارضی طورباندې مجبوری یا.....

(باقی حاشیه په راروانه صفحه)

اونه دَآثارو نه، په معتبرات فقه کښې مسطوردی بلکه حدیث اذااقبل الليل من ههنا وادبر النهارمن ههناوغربت الشمس ﴿۱﴾.سره متصادم ده، البته په کومو علاقو کښې چه مغرب طرف ته لوئی لوئی غرونه وی نوپه هغې کښې لږ ګنجائش شته.﴿۲﴾.وهوالموفق.

## په يوه علاقه کښې روژه اوپه بله کښې اختر وی نو دَ اختر والا علاقې ته تللو باندې به څه کوې؟

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَرمضان په آخر کښې په يوه علاقه کښې ورو کې اختر نه وی اودَهغه ځائې اوسيدونکې داسې علاقې ته لاړ شی چرته چه دَاختر اعلان شوې وی،

---

(باقی حاشیه) شرعی عذرمثلاً حمل، حیض، مرض، سفروغیره چه پیښ شی نو هغوی ته دَروژې قضاء کولو اجازت دې. کمافی الهداية.

(۵)......په کومو علاقو کښې چه نمر روزانه ډوبيږی او راخيژی، خوشفق احمر ډوبيدو سره يادَهغې نه هم مخکښې دَسحرسپين والې شروع کيږی لکه (۲۰) دَعرض البلدنه روستوپه بعض ځايونو کښې کيږی اودَيوامام په نزد هم دَماسخوتن وخت متحقق نه وی نو روژه به باقاعده نيولې کيږی، او درې واړه مونځونه (ماښام، ماسخوتن، سحر) يوتربله پسې بغير دلحاظ دجمع بين الصلاتين به ادا کولې شی، او ترخوپورې چه درنه کيږی دَصبح صادق دَ راختلو نه مخکښې دَ ماسخوتن دَفرضواو وترو نه دَځان فارغ کولو کوشش دې اوکړئ شی اودَتراويح موقع که ملاؤ نشی او داسې دَسنن او رواتب موقع ملاؤ نشی نو مه ئې کوئ. (کماحققه الامام ابن الهمام فی فتح القدير ۱: ۱۵۶).

(ماخوذ از منتخبات نظام الفتاوی وغيره)......از مرتب.

﴿۱﴾ (متفق عليه (مشکواة المصابيح ۱: ۱۷۵ قبيل باب تنزيه الصوم)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: (اذا اقبل الليل) ای ظلامه (من ههنا) ای جانب الشرق (وادبر النهار) ای ضياؤه (من ههنا) ای جانب الغرب (وغربت) ای غابت (الشمس) ای کلها قال الطيبی وانما قال وغربت الشمس مع الاستغناء عنه لبيان کمال الغروب کيلا يظن انه يجوز الافطار لغروب بعضها.

...قاة المفاتيح شرح المشکواة ۴: ۲۵۲ باب الفصل الاول)



نو دَهغه دپاره دَدې ورځې روژه پوره کول پکار دی که نه؟ بينواتوجروا.

المستفتی: عبدالقيوم مدرس مډل سکول

متهه شبقدر فورټ چارسده ۱۰/ذی قعده ۱۳۸۹ھ.

**الجواب:** که په دې دويمې علاقې کښې په شرعی ثبوت سره باقاعده دَ اختر حکم ورکړې شوې وی نوهلته روژه پوره کول ضروری نه ده بلکه په دې باندې اعتماد صحيح دې.﴿۱﴾.وهوالموفق.

---

﴿۱﴾......☆: قال فی التاتارخانية: اهل مصر صاموا رمضان بغير رؤية وفيهم رجل لم يصم حتی رأی الهلال من الغد فصام اهل المصر ثلاثين يوما وهذا الرجل تسعة وعشرين ثم افطروا جميعا فان کان اهل المصر رأوالهلال شعبان وعدوا شعبان ثلاثين يوما کان علی هذا الرجل قضاء يوم الاول الخ.

(فتاوٰی تاتارخانية ۲: ۳۵۴ الفصل الثانی فيما يتعلق برؤية الهلال)

......☆ : وفی المنهاج: فاذا رأی الهلال فی العرب ليلة الجمعة وفی باکستان ليلة السبت وصام رجل فی باکستان ثمانية وعشرين يوما وذهب الی العرب فی الطيارة وقد رأی هلال شوال هنا فيقضی يوما مثلاً ولا يعتذر بانی صمت بالرؤية المعتبرة وافطرت بالرؤية المعتبرة.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۴: ۱۴ باب لکل بلد رؤيتهم)

......☆: وقال الدکتور وهبة الزحيلی: فسافر من بلد الرؤية من صام به فالاصح انه يوافقهم وجوبا فی الصوم آخر، وان کان قد اتم ثلاثين، لانه بالانتقال الی بلدهم صار واحدا منهم فيلزمه حکمهم وروی ان ابن عباس امر کريبا بذلک ومن سافر من البلد الآخر الذی لم يرفيه الهلال الی بلد الرؤية، عيد معهم وجوباً لانه صار واحدا منهم سواء اصام ثمانية وعشرين يوما ام تسعة وعشرين بان کان رمضان تاما عندهم وقضی يوما ان صام ثمانية وعشرين لان الشهر لا يکون کذلک ومن اصبح معيدا، فسارت سفينته او طائرته الی بلدة بعيدة اهلها صيام فالاصح ان يمسک بقية اليوم وجوبا لانه صار واحد منهم.

(الفقه الاسلامی وادلته ۳: ۱۶۵۹ المطلب الثالث اختلاف المطالع)

......☆: قال العلامة محمد يوسف البنوری: وان ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## دَ پیشمنی آخری وخت او په ورځ کښې یا دَ شپې نه دَ رمضان دَ روژې دَنیت حکم

**سوال:** علمائي دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زه (۱) الکلام الاول دا آيت: قوله تعالى (كلوا واشربوا حتى يتبين لكم الخيط الابيض من الخيط الاسود من الفجر) (الآية) کښې دَوخت تحديد راغلې دې، خوراک څکاک هغه وخت بندول پکار دی، کله چه درته دَسحرکيدو متعلق حقيقى علم حاصل شی سره ددې چه دَشپې نه سپورمئ وی او نه وريځ وی. آيا دَ دويم سحر دَ راختلو دَ ظهور پورې خوراک څکاک مباح دی يا دَدويم سحر راختلو نه ګهنټه يا نيمه ګهنټه مخکښې بندول پکار دی.

(۲) والكلام الثانى فى اول وقت الصوم وآخره ايبتدء من طلوع فجرالثانى المعترض فى الافق وآخره الى الليل ام يبتدء من بعض الليل وآخره الى بعض الليل؟

(۳) والكلام الثالث فى نية صوم رمضان ايصح من الليل والنهاركليهما ام يصح من الليل فقط؟ بينوا توجروا.

المستفتى: (مفتى) عبدالله شاه (دارالعلوم اسلاميه) چارسده ۱۹۷۲ء/۱/۲۹.

**الجواب:** (۱) المدارهوتيقن طلوع الفجرالثانى لكن الاستحباب هوالامتناع من الاكل وغيره فى السبع الآخير مما بين غروب الشمس وبين الفجرالثانى كما فى امدادالفتاوى (۱).

---

(بقيه حاشيه) رأى رجل الهلال فى القسطنطينية ثم جاء نا قبل العيد فهل يعمل برؤيته او برؤية اهل بلدنا؟ لم اجد هذه الصورة فى كتبنا، والظاهر انه يتبع اهل بلدنا نظيره ما يقوله الشافعية فيمن صلى الظهر فى بلد ثم وصل من فوره الى بلد لم يدخل وقت انه يصلى معهم . والله اعلم
(معارف السنن ۵:۳۳۷ مسألة اختلاف المطالع)

﴿۱﴾ قال الشاه اشرف على التهانوى: دهيئت په قاعده سره (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



(۲) صرح جميع الفقهاء فى اول كتاب الصوم ان مبدءه طلوع الفجرالثانى ومنتهاه الغروب الملازم باقبال الليل ﴿۱﴾

(۳) النية افضل من الليل وجازقبل نصف النهارالشرعى كمافى الهداية وغيرها. ﴿۲﴾ وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه)... د نمر د راختلو دوخت نه يوه نيمه ګهنټه مخکښې پورې پيشمنې خوړلې شى او فقهاؤ احتياط کړې دې چه د غروب نه طلوع پورې چه کل وخت څومره دې هغه په اوؤه باندې تقسيم کړئ په شپږمه حصه کښې سحرى خوړلې شي.
(امداد الفتاوىٰ ۱:۹۶ کتاب الصوم والاعتكاف)

﴿۱﴾ قال العلامة سيد احمد الطحطاوى: النهار عبارة عن زمان ممتد من طلوع الفجر الصادق الى غروب الشمس وهو قول اصحاب الفقه واللغة، الى الغروب، هو اول زمان بعد غيبوبة تمام جرم الشمس بحيث تظهر الظلمة فى جهة المشرق وفى البخارى عنه ﷺ اذا اقبل الليل من ههنا فقد افطر الصائم اى اذا وجدت الظلمة حسا فى جهة المشرق فقد دخل وقت الفطر او صار مفطرا فى الحكم لان الليل ليس ظرفا للصوم قهستانى ولذا ذكره الوصال منح.
(الطحطاوى على المراقى ۱:۶۳۱ كتاب الصوم)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغينانى: وسبب الثانى النية وجه قوله فى الخلافية قوله عليه الصلاة والسلام لا صيام لمن لم ينو الصيام من الليل ولانه لما فسد الجزء الاول لفقد النية فسد الثانى ضرورة انه لا يتجزأ بخلاف النفل لانه متجزى عنده ولنا قوله ﷺ بعد ما شهد الاعرابى برؤية الهلال الا من اكل فلا ياكلن بقية يومه ومن لم ياكل فليصم ومارواه محمول على نفى الفضيلة والكمال او معناه لم ينوانه صوم من الليل ولانه يوم صوم فيتوقف الامساك فى اوله على النية المتأخرة المقترنة باكثره كالنفل وهذا لان الصوم ركن واحد ممتد والنية لتعيينه لله تعالىٰ.
(هداية على صدر فتح القدير ۲:۲۳۶ كتاب الصوم)

## نمر ډوبیدو سره متصل دَ روژې ماتولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په رمضان یا غیر رمضان کښې نمرډوبیدو سره اذان کول پکار دې یا احتیاط هم کول پکار دی؟ که یو سړی دَنمرډوبیدو سره روژې ماتې اوکړو نودَهغه روژه اوشوه او که نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: تقدیرالله ساکن زنډوبانډه

**الجواب:** دَنمرپه ډوبیدو او دَشپې په راتلو کښې ملازمه ده.لهذا دَ نمر ډوبیدو سره متصل اذان کول جائز دی.﴿۱﴾.البته که دګرد یا دَغرونوپه وجه باندې دَنمرپه ډوبیدو کښې شک وی نوهلته یوڅومنټه احتیاط کول ضروری دی.﴿۲﴾.وهوالموفق.

## په رمضان کښې دَ غنمو کټ کولو د پاره روژه پریښودل بې باکی ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی! زمونږ په علاقه کښې دَ

﴿۱﴾ قال العلامة سید احمد الطحطاوی: النهار عبارة عن زما ن ممتد من طلوع الفجر الصادق الی غروب الشمس وهو قول اصحاب الفقه واللغة، الی الغروب هو اول زمان بعد غیوبة تمام جرم الشمس بحیث تظهر الظلمة فی جهة المشرق وفی البخاری عنه ﷺ اذا اقبل اللیل من ههنا فقد افطر الصائم، ای اذا وجدت الظلمة حسا فی جهة المشرق فقد دخل وقت الفطر او صار مفطرا فی الحکم لان اللیل لیس ظرفا للصوم قهستانی ولذا ذکره الوصال منح.

(الطحطاوی علی مراقی الفلاح ۱: ۶۳۱ کتاب الصوم)

﴿۲﴾ قال العلامة الطاهر البخاری: ویستحب للصائم تعجیل الافطار قبل طلوع النجوم وتاخیر السحور وفی یوم الغیم لا یستحب التعجیل ولا یفطر مالم یغلب علی ظنه غروب الشمس. (خلاصة الفتاویٰ ۱: ۲۶۶ قبیل فصل فی الاعتکاف کتاب الصوم)



غنمو کټ کولو وخت دَروژې په میاشت کښې راغلې دې،اوس که غنم کټ نه کړئ شی نوغنم به خراب شی،اودَروژې په حالت کښې دَغنمو کټ کول ډیر زیات مشکل کار دې،ځکه بعض علماؤفتوی ورکړې ده چه روژه پریږدئ اودَ غنمو کټائی اوکړئ،اودلیل دَشامی جلددویم عبارت پیش کوی. وکذا لوخاف هلاک زرعه اوسرقته ولم یجدمن یعمل له باجرمثل الخ، تاسو صاحبان په دې باره کښې څه فرمایئ؟ بینوا توجروا.

المستفتی: جلات خان دکاندارد کی لورآلائی.....۱۵/رمضان ۱۴۰۷ھ.

**الجواب:** دَغنمو کټ کول هلکان (نابالغ) هم کولې شی،اود شپې هم کیدې شی، دې نه علاوه دَ پیشمنی دَ روټئ نه روستودَ ورځې لس(۱۰) بجې پورې هم کیدې شی،لهذا دا مرخص ګڼړل دَبې باکئ دروازه کهلاؤل دی. وهوالموفق.

## دَ حمل په حالت کښې وینه په روژې باندې اثر نه غورځوی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یوه ښځه حامله ده اودا حمل کم وزیات دَدریو میاشتو دې،ښځې په رمضان کښې روژې شروع کړې،غالباً دَدویمې یا دریمې روژې په دوران ئې په کپړوباندې دَوینې داغ معلوم شو،ممکن ده چه دا داغ دَطبیعت دګرمئ په وجه باندې ظاهرشوې وی،اوس دَښځې روژه اوشوه که نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: محمدعبدالرحیم عزیزمولې پورملتان.......۱۹/۳/۱۹۲۹ء.

**الجواب:** دَحمل په حالت کښې وینه دحیض وینه نه وی بلکه د استحاض وینه وی. چه دَروژې دپاره مانع نه ده.(ردالمحتار ۱: ۲۲۳: ۲۷۵)﴿۲﴾.وهوالموفق.

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وما تراه صغیرة دون تسع...... وحامل ولو قبل خروج اکثر الولد استحاضة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۲۰۹ قبیل مبحث فی مسائل المتحیرة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ودم استحاضة حکمه کرعاف دائم وقتاً کاملا لا یمنع صوما وصلاة الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱: ۲۱۸ قبیل مطلب فی حکم وطء المستحاضة)

## په ایران کښې دَ ایرانی اعلان خلاف پاکستانی اعلان باندې اختر کول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دلته ایرانی حکومت دَاتوار په ورځ عام اختر وکړلو، او په هغې ورځ زمونږ دیرش (۳۰) روژې پوره شوې، دلته څه پاکستانیانو او افغانیانو دَهفتې په ورځ اختر وکړلو او دلیل دا پیش کوی چه پاکستان کښې سپوږمۍ په نظر راغلې ده، آیا دا اختر صحیح دې؟ یا به پرې قضا لازم وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ضیاء الرحمٰن اصفهان جمهوری اسلامی ایران.. ۱۹۷۴ء/۲/۲۶

**الجواب:** که دې پاکستانیانو یا افغانیانو دَیو معتمد مفتی یا عالم دَحکم نه بغیر اختر کړې وی نو په دوې باندې دَیوې روژې قضا لازمی ده.﴿۱﴾ وهوالموفق

## چه چاته پته نه وی چه اختردې او په خپل قیاس باندې اختر اوکړلو او روژه ئې ماته کړه؟

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَهفتې په ورځ په مردان پیښور او ګیرچاپیره علاقو کښې اختر اوکړۍ شو، دلته په اټک کښې دَاختر اعلان نه وو شوې، زید دَ نمر ډوبیدو نه مخکښې سپوږمۍ اولیدله نو خیال ئې اوکړو چه دا سپوږمۍ خو غټه ده، نن ورځ دَاختر معلومیږی نو هغه

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: رأی مکلف هلال رمضان او الفطر ورد قوله بدلیل شرعی صام مطلقا وجوبا وقیل ندبا فان افطر قضیٰ فقط فیهما لشبهة الرد واختلف المشائخ لعدم الروایة عن المتقدمین والراجح عدم وجوب الکفارة، وقال العلامة ابن عابدین: لو صام رأی هلال رمضان واکمل العدة لم یفطر الامع الامام لقوله علیه الصلاة والسلام صومکم یوم تصومون وفطرکم یوم تفطرون رواه الترمذی وغیره والناس لم یفطروا فی مثل هذا الیوم فوجب ان لا یفطر نهر.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۹۸ قبیل مطلب لا عبرة بقول الموقتین)



روژه ماته کړه، اګرچه هغه ته دَاختر یقینی پته نه وه. اوس په هغه باندې قضاء او کفاره لازم ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالرؤف پرملی شادی خان ډهوک اټک جمات ۱۹۷۹ء/۱/۲

**الجواب:** اګرچه دَهفتې په ورځ باقاعده اختر شوې وو، لهذا په دې کس باندې نه قضا واجب ده او نه کفاره، بیشکه دَدې کس روژې ماتې بې قاعدې دې لهذا په روژې ماتولو باندې مجرم دې. فقط.

## دَ یوم الشک نفلی روژه دَ باقاعده رمضان دَ ثبوت نه روستو به فرضی شمارلې کیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ رمضان نه صرف یوه ورځ مخکښې مانفلی روژه اونیوله، په هغه ورځ دَغرمې په وخت خبر راغې چه نن دَ روژې ورځ ده، او سپوږمۍ په نظر راغلې ده، پس ما بغیر دَڅه ردو بدل نه روژه جاری اوساتله، آیا دا روژه به فرضی شمیرلې کیږی یا به ئې قضاء راګرځول وی؟ ځکه چه بعض خلق وائی چه دَشک په ورځ یوه روژه هم نه کیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالقیوم مته مغل خیل چارسده.... ۱۰/ذی قعده ۱۳۸۹ه.

**الجواب:** دا نفلی روژه به دَرمضان شمیرلې کیږی، ټولو علماؤ لیکلی دی چه دَ رمضان روژه دَنفل په نیت سره اداکیږی، لهذا دَ روژې دَثبوت نه روستو، که هغه ثبوت هم په هغه ورځ اوشی یا روستو اوشی، دا روژه به په رمضان کښې شمیرلې کیږی، دَدې قضاء به نه کیږی او دَشک په ورځ روژه کیږی، خو دَ عوامو دپاره بهتر نه ده.﴿۱﴾ وهوالموفق.

﴿۱﴾ قال العلامة المرغینانی: قوله ولا یصومون یوم الشک الا تطوعا لقوله ﷺ لا یصام الیوم الذی یشک فیه انه من رمضان الا تطوعا...... ثم ان ظهر ان الیوم من رمضان یجزیه لانه شهد الشهر، قال ابن الهمام: فاما صوم ماقبله ففی التحفة قال والصوم قبل رمضان بیوم او یومین مکروه ای صوم کان لقوله علیه الصلاة والسلام لا تقدموا رمضان بصوم یوم ولا یومین الا ان یوافق صوما کان یصومه احدکم قال وانما ......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ خواصو د پاره دَ یوم الشک دَ روژې حکم

**سوال:** علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په ځائی کښې دَیوم الشک روژې ته بعض خلق ډیر اهمیت ورکوی وائی چه دَدې ډیر غټ ثواب دې،فرض کړئ که رمضان وی نو دابه په فرضی روژو کښې شمیرلئ کیږی که نه وی نو بیابه هم ورته ثواب ملاویږی،دې باره کښې ستاسو صاحبانو رائې څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالرشید کوټ ملاکنډ ایجنسی ۱۷/ رمضان ۱۳۹۹ھ.

**الجواب:** خواصو دپاره دَیوم الشک روژه نیول جائزبلکه مستحب ده، کما فی شرح التنویر(۱) البته دې نه کوم خواص مراد دی،په دې کښې اختلاف دې، بعضې وائی چه دې نه مفتیان مراددی اوبعض وائی چه دې نه هغه خلق مراد دی چه دَدې دَنیت نه خبر وی،یعنی چه صرف دَنفلو نیت ساتی،دې نه علاوه په نورو نیتونو سره روژه نیول مکروه ده.(شامی وغیره)﴿۲﴾ والحدیث

(بقیه حاشیه) کره علیه السلام خوفا من ان یظن انه زیادة علی صوم رمضان اذا اعتادوا ذلک وعن هذا قال ابویوسف یکره وصل رمضان بست من شوال وذکر قبله باسطر عدم کراهة صوم یوم الشک تطوعا ثم قیده بکونه علی وجه لا یعلم العوام ذلک کی لا یعتادوا صومه فیظنه الجهال زیادة علی رمضان.

(فتح القدیر فی ذیل الهدایة ۲: ۲۴۴ کتاب الصوم)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: والا یصومه الخصواص ویفطر غیرهم بعد الزوال به یفتیٰ نفیا لتهمة النهی. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۹۷ مطلب فی صوم یوم الشک)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: الخواص کل من علم کیفیة صوم یوم الشک فهو من الخواص والا فمن العوام قال ابن عابدین: فعامة المشائخ علی انه ینبغی للقضاة والمفتین ان یصوموا تطوعا ویفتوا بذلک خاصتهم ویفتوا العامة بالافطار وهذا یفید ان التلوم افضل فی حق الکل کما فی النهر لکن فی الهدایة والمحیط......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



المشهور علی الالسنة لم یثبت مرفوعابل هو موقوف (۱).وهوالموفق.

## دَ یوم الشک روژه که دَ نفلو په نیت سره وی نو مکروه نه ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ روژې نه مخکښې

(بقیه حاشیه) والخانیة وغیرها ان المختار ان یصوم المفتی بنفسه اخذا بالاحتیاط ویفتی العامة بالتلوم الی وقت الزوال ثم بالافطار والتلوم الانتظار.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۹۷ مطلب فی صوم یوم الشک)

﴿۱﴾ الحدیث: "من صام یوم الشک فقد عصیٰ ابا القاسم" اخرجه البخاری باب قول النبی ﷺ اذا رأیتم الهلال فصوموا واذا رأیتموه فافطروا رقم (۱۹۰۶) وابوداؤد فی سننه باب کراهیة یوم الشک رقم (۲۳۳۴) والترمذی باب ماجاء فی کراهیة صوم یوم الشک رقم (۶۸۶) وقال حسن صحیح، والنسائی باب صیام یوم الشک رقم (۲۱۸۷) وابن ماجة باب ماجاء فی صیام یوم الشک برقم (۱۶۴۵) والمزی فی تحفة الاشراف رقم (۱۰۳۵۴) وصححه ابن حبان رقم (۳۵۸۵) والحاکم فی المستدرک ۱:۴۲۳ ووافقه الذهبی فی تلخیصه، وکلهم من قول عمار رضی الله عنه لا مرفوعا الی النبی ﷺ فانما هو موقوف ولا یصح رفعه.

وقال فی منهاج السنن: واجیب عن هذا الحدیث ان الصاغانی ذکره فی الموضوعات وفیه انه لیس فی سنده من یتهم بالوضع، واجیب عنه ایضا بانه موقوف وفیه ان مثله کالمرفوع (منهاج السنن ۴:۷).

وقال العلامة الحصکفی: واما حدیث من صام یوم الشک فقد عصی ابا القاسم فلا اصل له ، قال الشامی: کذا قال الزیلعی ثم قال ویروی موقوفا علی عمار بن یاسر وهو فی مثله کالمرفوع ، قلت وینبغی حمل نفی الاصلیة علی الرفع کما حمل بعضهم قول النووی فی حدیث صلاة النهار عجماء انه لا اصل له علی ان المراد لا اصل لرفعه والا فقد ورد موقوفا علی مجاهد وابی عبیدة وکذا هذا اورده البخاری مطلقا بقوله وقال صلة عن عمار من صام الخ. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۹۶ باب صوم یوم الشک) ......از مرتب

## دَ خواصو د پاره دَ یوم الشک دَ روژې حکم

**سوال:** علماء دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په ځائی کښې دَیوم الشک روژې ته بعض خلق ډیر اهمیت ورکوی وائی چه دَدې ډیر غټ ثواب دې، فرض کړئ که رمضان وی نو دابه په فرضی روژو کښې شمیرلئ کیږی که نه وی نو بیابه هم ورته ثواب ملاویږی، دې باره کښې ستاسو صاحبانو رائې څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالرشید کوټ ملاکنډایجنسی ۱۷/ رمضان ۱۳۹۹ھ.

**الجواب:** خواصو دپاره دَیوم الشک روژه نیول جائزبلکه مستحب ده، کمافی شرح التنویر (۱) البته دې نه کوم خواص مراد دی، په دې کښې اختلاف دې، بعضې وائی چه دې نه مفتیان مراددی اوبعض وائی چه دې نه هغه خلق مراد دی چه دَدې دَنیت نه خبر وی، یعنی چه صرف دَنفلو نیت ساتی، دې نه علاوه په نورو نیتونو سره روژه نیول مکروه ده. (شامی وغیره) ﴿۲﴾ والحدیث

(بقیه حاشیه) کره علیه السلام خوفا من ان یظن انه زیادة علی صوم رمضان اذا اعتادوا ذلک وعن هذا قال ابویوسف یکره وصل رمضان بست من شوال وذکر قبله باسطر عدم کراهة صوم یوم الشک تطوعا ثم قیده بکونه علی وجه لا یعلم العوام ذلک کی لا یعتادوا صومه فیظنه الجهال زیادة علی رمضان.

(فتح القدیر فی ذیل الهدایة ۲: ۲۴۴ کتاب الصوم)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: والا یصومه الخواص ویفطر غیرهم بعد الزوال به یفتیٰ نفیا لتهمة النهی. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۹۷ مطلب فی صوم یوم الشک)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: الخواص کل من علم کیفیة صوم یوم الشک فهو من الخواص والا فمن العوام قال ابن عابدین: فعامة المشائخ علی انه ینبغی للقضاة والمفتین ان یصوموا تطوعا ویفتوا بذلک خاصتهم ویفتوا العامة بالافطار وهذا یفید ان التلوم افضل فی حق الکل کما فی النهر لکن فی الهدایة والمحیط...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



المشهور علی الالسنة لم یثبت مرفوعابل هو موقوف (۱). وهوالموفق.

## دَ یوم الشک روژه که دَ نفلو په نیت سره وی نو مکروه نه ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ روژې نه مخکښې

(بقیه حاشیه) والخانیة وغیرها ان المختار ان یصوم المفتی بنفسه اخذا بالاحتیاط ویفتی العامة بالتلوم الی وقت الزوال ثم بالافطار والتلوم الانتظار.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۹۷ مطلب فی صوم یوم الشک)

﴿۱﴾ الحدیث: "من صام یوم الشک فقد عصیٰ ابا القاسم" اخرجه البخاری باب قول النبی ﷺ اذا رأیتم الهلال فصوموا واذا رأیتموه فافطروا رقم (۱۹۰۶) وابوداؤد فی سننه باب کراهیة یوم الشک رقم (۲۳۳۴) والترمذی باب ماجاء فی کراهیة صوم یوم الشک رقم (۶۸۶) وقال حسن صحیح، والنسائی باب صیام یوم الشک رقم (۲۱۸۷) وابن ماجة باب ماجاء فی صیام یوم الشک برقم (۱۶۴۵) والمزی فی تحفة الاشراف رقم (۱۰۳۵۴) وصححه ابن حبان رقم (۳۵۸۵) والحاکم فی المستدرک ۱: ۴۲۳ ووافقه الذهبی فی تلخیصه، وکلهم من قول عمار رضی الله عنه لا مرفوعا الی النبی ﷺ فانما هو موقوف ولا یصح رفعه.

وقال فی منهاج السنن: واجیب عن هذا الحدیث ان الصاغانی ذکره فی الموضوعات وفیه انه لیس فی سنده من یتهم بالوضع، واجیب عنه ایضا بانه موقوف وفیه ان مثله کالمرفوع (منهاج السنن ۴: ۷).

وقال العلامة الحصکفی: واما حدیث من صام یوم الشک فقد عصی ابا القاسم فلا اصل له، قال الشامی: کذا قال الزیلعی ثم قال ویروی موقوفا علی عمار بن یاسر وهو فی مثله کالمرفوع، قلت وینبغی حمل نفی الاصلیة علی الرفع کما حمل بعضهم قول النووی فی حدیث صلاة النهار عجماء انه لا اصل له علی ان المراد لا اصل لرفعه والا فقد ورد موقوفا علی مجاهد وابی عبیدة وکذا هذا اورده البخاری مطلقا بقوله وقال صلة عن عمار من صام الخ. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۹۶ باب صوم یوم الشک) ......از مرتب

دَ یوم الشک په موَقع باندې خلق په نفلی روژه باندې مجبورکول صحیح دی یا نه؟ دَمختلف حدیثو په رڼا کښې راته جواب راؤلیږئ،

عن ابی هریرة قال قال رسول الله ﷺ لا یتقدمن احدکم رمضان یوم او یومین الا ان یکون رجل یصوم صوماً فلیصم ذلک الیوم متفق علیه (مشکواة) وعن عمار بن یاسر قال من صام الیوم الذی یشک فیه فقد عصی ابا القاسم ﷺ رواه ابوداؤد والترمذی والنسائی وابن ماجة والدارمی (مشکواة). بینواتوجروا

المستفتی: مولانامحمود شبقدر فورټ چارسده.... ۱۸/۹/۱۹۷۶ء.

**الجواب:** په یوم الشک باندې روژه نیول مکروه دی، که دَفرضو یا واجبو په نیت سره وی، اومکروه نه ده چه دَنفلو په نیت سره وی،

کما فی شرح التنویر: والتنفل فیه احب ان وافق یوم یعتاده. واما حدیث من صام یوم الشک فقد عصی ابا القاسم فلا اصل له (ای لرفعه او محمول علی نیة رمضان) والا فیصومه الخواص ویفطر غیرهم بعد الزوال به یفتی نفیا لتهمة النهی. وکل من علم کیفیة صوم یوم الشک فهو من الخواص والا فمن العوام. والنیة المعتبرة هنا ان ینوی التطوع علی سبیل الجزم من لا یعتاد صوم ذلک الیوم انتهیٰ بحذف یسیر ﴿۱﴾ قلت: وعوام زماننا لا یقضون الصوم اصلا فالتنفل احوط وارعیٰ وهو الصواب ﴿۲﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۹۶،۹۷ مبحث فی صوم یوم الشک)

﴿۲﴾ وفی المنهاج: قیل المختار التلوم فی حق الخواص ایضا لما ذکره صاحب النهر عن السراج، ولان العوام یقعون فی الفتنة ویقولون هل زمام الشریعة فی ایدیهم حیث حرموا الصوم علینا واحلوه لانفسهم، قلت، لا ندع قول الاکثرین لقول البعض، ولانه لو روعیت فتنة العوام لکان الانسب الافتاء بصیام یوم الشک تطوعا وان کان من العوام لانه ربما یثبت کون یوم الشک من رمضان فی اثناء الشهر ، وربما...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## یوم الشک په باره کښې حدیثونه او مفتی به قول

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَیوم الشک دَروژې متعلق علامه ابن همام په فتح القدیر ا: ۵۵،۵۴ کښې څه حدیثونه نقل کړی دی، اودَ امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دَدې روژې نیول مستحب او دَامام ابن حنبل رحمه الله په نزدې واجب دی، اوبعضې دې ته ناجائز وائی، دَدې متعلق صحیح حکم کوم یو دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: حاجی فضل حق خال ضلع دیربالا ۲۵ جولائی ۱۹۷۹.

**الجواب:** دَ دلائلو په رڼا کښې دَیوم الشک روژه نیول مکروه نه ده، البته دَ حدیث لاتقدموا رمضان بصوم یوم او یومین (رواه الستة)﴿۱﴾ نه دمخالفت په وجه باندې دَخواصو دپاره دَاخفاء او عوامو دپاره دَ تلوم فتوی ورکړې کیږی کما لا یخفی علی من راجع الی کتب علمائنا ....

(بقیه حاشیه) یحکم بالفطر عند الرؤیة لیلة تسع وعشرین فیقول العوام اف لعلماء هذا الزمان امرنا بافطار یوم رمضان ولو امرنا بالصیام ما احتجنا الی القضاء فا رتکا ب ترک الا فضل اهون من ارتکاب الحرام لان الغالب من حال العوام انهم لا یقضون.

(منهاج السنن شرح ترمذی ۴:۷،۸ باب کراهیة صوم یوم الشک)

﴿۱﴾ رواه البخاری فی کتاب الصوم باب لا یتقدم رمضان بصوم یوم ولا یومین (۴:۱۲۷) ومسلم فی کتاب الصوم باب لا تتقدموا رمضان بصوم یوم ولا یومین (۲:۷۶۲) وابوداؤد فی کتاب الصوم باب فی من یصل شعبان برمضان (۲:۳۰۰) والترمذی فی کتاب الصوم باب ماجاء لا تقدموا الشهر بصوم (۳:۶۸،۶۹) والنسائی باب التقدم قبل شهر رمضان (۴:۱۴۹) وابن ماجة باب ماجاء فی النهی ان یتقدم رمضان بصوم (۱:۵۲۸) ومسند احمد (۲:۲۳۴،۲۸۱،۳۴۷) والدارمی باب النهی عن التقدم فی الصیام قبل الرؤیة (۲:۸).

کردالمحتار وغیره﴿۱﴾ وهوالموفق.

## په هیره باندې خوراک څکاک یاجماع کول دَ روژې دپاره نقصانی نه دی

**سوال**: حضرت شیخ الحدیث صاحب بانی دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! دې مسئلې باره کښې بنده ته شک دې که چرې چاپه هیره باندې په روژې مبارکه کښې دَخپلې ښځې سره جماع اوکړه، نو په هغه باندې قضایا کفاره شته دې اوکه نه، دَمذهب حنفی په دلائلو سره اود کتابونوپه حوالې سره جواب راؤلیږئ. والسلام.

المستفتی: عباس خان زانکی خیل ډاکئ صوابی......۱۹۶۹ء/۵/۸.

**الجواب**: دَ احنافوپه نزدې په هیره باندې خوراک څکاک یا جماع سره روژې ته نقصان نه رسیږی لهذا په دې باندې نه قضا واجب ده اونه کفاره (وفی الهدایة ۱:۱۹۶) واذا اکل الصائم اوشرب اوجامع نهاراناسیالم یفطروالقیاس ان یفطر وهوقول مالک لو جود ما یضاد الصوم فصار کالکلام ناسیافی الصلوة وجه

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: قوله والا یصومه الخواص ای وان لم یوافق صوما یعتاده ولا صام من آخر شعبان ثلاثة فاکثر استحب صومه للخواص قال فی الفتح وقیده فی التحفة بکونه علی وجه لا یعلم العوام ذلک کی لا یعتادوا صومه فیظنه الجهال زیادة علی رمضان ویدل علیه قصة ابی یوسف المذکورة فی الامداد وغیره حاصلها ان اسد بن عمر وسأله هل انت مفطر فقال له فی اذنه انا صائم وفی قوله یصوم الخواص اشارة الی انهم یصبحون صائمین لا متلومین بخلاف العوام لکن فی الظهیریة الافضل ان یتلوم غیر آکل ولا شارب مالم یتقارب انتصاب النهار فان تقارب فعامة المشائخ علی انه ینبغی للقضاة والمفتیین ان یصوموا تطوعا ویفتوا بذلک خاصتهم ویفتوا العامة بالافطار وهذا یفید ان التلوم افضل فی حق الکل کما فی النهر لکن فی الهدایة والمحیط والخانیة وغیرها ان المختار ان یصوم المفتی بنفسه اخذا بالاحتیاط ویفتی العامة بالتلوم الی وقت الزوال ثم بالافطار والتلوم الانتظار کما فی المغرب.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۹۷ مطلب فی صوم یوم الشک)



الاستحسان قوله علیه الصلاة والسلام للذی اکل وشرب ناسیاتم علی صومک فانما اطعمک الله وسقاک ﴿۱﴾ قال العینی رواه الستة فی کتبهم﴿۲﴾ وهوالموفق

## دَ ماښام نه مخکښې سپوږمۍ لیدل اودَ شک په وجه باندې روژه ماتول دَ کفارې موجب نه ده

**سوال**: دې مسئلې باره کښې علمائې دین څه فرمائی چه دَاخترمتعلق ډیرغټ شک وو، بعض خلقو دَ زیارت په ورځ اخترکړواوبعض خلقودَ جُمعې په ورځ اوکړو، خومسئله داده چه دَزیارت په ورځ کومو خلقو روژه نیولې وه په هغوی کښې بعض خلقودَماښام کیدونه مخکښې سپوږمۍ اولیدله او روژه ئې ماته کړه، اوس سوال دادې چه دَماښام نه مخکښې چه نمرډوب شوې نه وی او هم داسې سپوږمۍ وینی او روژه ئې ماته کړه، نودَدې څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حافظ گل دادخان چارخانه پیښور........۲۱/۱۱/۱۹۷۴.

**الجواب**: دَشرعی ثبوت نه مخکښې روژه ماتول صحیح نه دی اوبې قاعدې کار دې، البته دَشک په وجه دکفارې موجب نه ده، کمافی الدرالمختار: ورؤیته بالنهارللیلة الآتیة مطلقا وفی ردالمحتار(۲:۱۳۰)ای سواء رءی قبل الزوال اوبعده وقوله علی المذهب ای الذی هو قول ابی حنیفه ومحمد، قال فی البدائع فلا یکون

﴿۱﴾ (هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۲۵۴ باب مایوجب القضاء والکفارة)

﴿۲﴾ اخرجه البخاری: (۱۹۳۳) ومسلم: (۱۱۵۵) وابو داؤد: (۲۳۹۸) والترمذی: (۷۲۱) وابن ماجة: (۱۶۷۳) کلهم من حدیث ابی هریرة: جاء رجل الی النبی ﷺ فقال یا رسول الله انی اکلت وشربت ناسیا وانا صائم فقال: الله اطعمک وسقاک، واللفظ لابی داؤد ورواية الجماعة "من نسی وهو صائم فاکل او شرب فلیتم صومه فانما اطعمه الله وسقاه، وسیاق المصنف نسبه الزیلعی لابن حبان فی صحیحه وکذا هو فی سنن الدارقطنی (۲:۱۷۹) انظر نصب الرایة (۲:۴۴۵).
(تخریج احادیث اللباب ۱:۱۵۶ فصل ما لا یفطر به الصائم)

ذلک الیوم من رمضان عندهماوقال ابویوسف ان کان بعد الزوال فکذلک وان کان قبله فهو للیلة الماضیة ویکون الیوم من رمضان وعلی هذا الخلاف هـلال شوال ﴿۱﴾ وهوالموفق

## دَ مقامی او مرکزی رؤیت هلال کمیټې په مینځ کښې دَ اختلاف په صورت کښې دَ قضاء مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په سرحد کښې په کومه ورځ روژه وه دَهغې په بله ورځ هلال کمیټې دَروژې اعلان کړې وو ،آیا په دوی باندې قضاء لازم ده یا نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: اورنګ زیب کهوسلکی بدین.. ۱۰/ شوال ۱۴۰۰هـ

**الجواب:** چاچه دَهلال کمیټئ په خبرباندې روژه او اختر کړې دې په هغوی باندې قضاء لازم نه ده شاید چه هلال کمیټئ ته دَصوبه سر حدنه باقاعده ثبوت نه وی رسیدلې.﴿۲﴾ وهو الموفق

## په مختلف علاقوکښې دَ رمضان دَ اختلاف په وجه سره دَ قضاء مسئله

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ ځوکالونه مونږ دَ

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۰۳ مطلب فی رؤیة الهلال نهاراً)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: لان قضاء القاضی حجة وقد شهدوا به لا لو شهدوا برؤیة غیرهم لانه حکایة نعم لو استفاض الخبر فی البلدة الاخریٰ لزمهم علی الصحیح من المذهب، قال ابن عابدین: لانه حکایة فانه لم یشهدوا بالرؤیة ولا علی شهادة غیرهم وانما حکوا رؤیة غیرهم کذا فی فتح القدیر ،قلت وکذا لو شهدوا برؤیة غیرهم وان قاضی تلک المصر امر الناس بصوم رمضان لانه حکایة لفعل القاضی ایضا ولیس بحجة بخلاف قضائه ولذا قید بقوله ووحد استجماع شرائط الدعویٰ الخ.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۰۲ قبیل مطلب فی رؤیة الهلال نهارا)



مرکزی رؤیت هلال کمیټئ په اعلان باندې روژه او اختر کوو ،حالانکه دَ ځوکالونه دَرمضان میاشت دَیوکم دیرشو راروانه ده.آیا په مونږ باندې به قضاء لازمیږی چه کله دَیوې بلې علاقې مثلاً دَمردان وغیره نه دا اطلاع ملاؤ شی چه هلته دیرش(۳۰) ورځې روژې پوره شوې یاهلته زمونږنه مخکښې روژه نیولې شوې وه،او دا اطلاع هم صرف خبر وی شهادت نه وی، دَدې اختلاف په وجه به دَ نورو علاقو خلق څه کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ماسټرنذیراحمد ثمرباغ ضلع دیر...... ۲۶/۲/۱۹۸۲ء

**الجواب:** که تاسو دَحکومت په اعلان باندې روژه او اخترکوئ نودَ فراغت ذمه دپاره هم دا کافی دی دَهراختلاف په وجه سره دَقضاء کولو حکم بې قاعدې حکم دې.وهو الموفق.

## دَ پیشمنی آخرنې وخت یعنی دَ سحردَ راختلو تعین

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې وائی چه دَ پیشمنې نه پس کله اذان اوشی نودَهغې نه پس پنځلس منټوپورې خوراک کول جائز دی،دلته تقریباً په درې نیمې بجې باندې اذان کیږی،صحیح مسئله څه ده؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمداسلم پی او ایف واه کینټ..... ۲۱/ رجب ۱۴۰۱هـ

**الجواب:** دَ پیشمنی آخرې وخت دَشپې آخری وخت سره راځی،دَاذان سره نه﴿۱﴾ او په مشاهدې او تجربې سره معلومه ده چه صبح صادق دَنمرراختلو نه پاؤباندې یوه ګهنټه مخکښې راځی،پس په دې بنیادباندې زمونږ په علاقه کښې ځلوربجوپورې او واه کینټ کښې تقریباً پنځه منټه کم څلوربجوپورې

﴿۱﴾ قال الشرنبلالی: ومعناه شرعا هو الامساک نهارا، النهار عبارة عن زمان ممتد من طلوع الفجر الصادق الی غروب الشمس وهو قول اصحاب الفقه واللغة، ولهذا قال صاحب دیوان الادب النهار ضد اللیل وینتهی اللیل بطلوع الصبح الصادق کذا فی الحاشیة. (امداد الفتاح شرح نور الایضاح ۶۵۰ کتاب الصوم)

یا احتیاطاً لس منته کم ثلوربجوپورې پیشمنې کولې شی. ﴿۱﴾

**ملاحظه:**......دَ ریاضې په حساب سره نور گنجائش هم پکښې شته. وهوالموفق.

## پیشمنی د پاره په لاؤډ سپیکر باندې صلاة وسلام ویٔل او خلق راپاسول

**سوال:** مفتیان کرام دې باره کښې څه فرمائی چه زمونږ په علاقه کښې اذان کونکی حضرات دَپیشمنی په وخت لاؤډسپیکر باندې الصلاة والسلام علیک یارسول الله یا حبیب الله، یا آدم صفی الله یانوح نبی الله، وغیره الفاظ وئیلوسره

﴿۱﴾ قال عبد الرحمن الجزیری: ووقت الصبح من طلوع الفجر الصادق وهو ضوء الشمس السابق علیها الذی یظهر من جهة المشرق وینتشر حتی یعم الافق، ویصعد الی السماء منتشرا واما الفجر الکاذب فلا عبرة به وهو الضوء الذی لا ینتشر، ویخرج مستطیلا دقیقا یطلب السماء بجانبیه ظلمة ویشبه ذنب الذئب الاسود فان باطن ذنبه ابیض، بجانبیه سواد، ویمتد وقت الفجر الی طلوع الشمس.

(الفقه علی المذاهب الاربعة ۱: ۱۶۹ کتاب الصلاة وقت الصبح)

وقال الشیخ محمد فرید مدظله: وفی الشامیة ان التفاوت بین الفجرین وکذا بین الشفقین الاحمر والابیض انما هو بثلاث درج انتهیٰ وفی التصریح اذ قد علم بالتجربة ان انحطاط الشمس اول الصبح الکاذب وآخر الشفق ثمانیة عشر درجة وفی الحاشیة ان المراد من الانحطاط فی الجانبین انحطاط مرکز الشمس من الافق الشرقی او الغربی وهو قدر ثمانیة عشر درجة ویقطعه الفلک الاعظم فی ساعة وخمس ساعة وهذا مجموع الصبحین الکاذب والصادق ومن ذلک المجموع خمس ساعة حصة الصبح الکاذب والساعة الواحدة حصة الصبح الصادق انتهیٰ قلت وصرح المشائخ بتفاوت الوقت بین طلوع الفجر الصادق وطلوع الشمس وکذا بین غروب الشمس وغیوب البیاض بتفاوت البلاد، والمشاهد فی دیارنا قدر ساعة وربع ساعة.

السنن شرح جامع السنن للترمذی ۲: ۱۰ باب مواقیت الصلاة عن النبی ﷺ)



خلق راپاسوی، آیا دا الفاظ جائز دی؟ او دَپیشمنی دپاره دا طریقه جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالقیوم منگل زئی گلستان بلوچستان ۱۹۹۱ء/۲/۴

**الجواب:** پیشمنی دپاره خلق راپاسول جائز دی ﴿۱﴾ دا اعانت علی البر دې، البته په داسې کلماتوسره راپاسول چه هغه همیشه ناجائزوی یا په هغې کښې موهم شرک وی ناجائز دی البته دَشرک دارومدار په عقیدې باندې دې، دَ موهم شرک کلماتوباندې نه دې، فافهم. وهوالموفق.

## روژو مکمل کولو د پاره دَحیض دَ بندش گولئ خوړل تکلف او تعمق دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَروژې میاشت نزدې راروانه ده اودَرمضان دَ روژې ثواب دَټول عمر دَ روژو نه افضل دې، اوس که ښځې دَحیض بندولو دپاره گولئ اوخوری چه دَدې افضلیت نه محروم پاتې نه شی نوآیا دا جائز دی یا شرعاً منع دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد سیاب لکی مروت.

**الجواب:** په حدیث شریف کښې راغلی دی چه دکوم سړی نه دَڅه عذرپه وجه یوعبادت پاتې شی نوهغه ته به باقاعده مکمل ثواب ورکړئ کیږی (رواه ابوداؤد وغیره) ﴿۲﴾. پس دَ داسې قسمه گولو استعمال تکلف او تعمق دی.

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وعن الحسن لا بأس بالدف فی العرس لیشتهر وفی السراجیة هذا اذا لم یکن له جلاجل ولم یضرب علی هیئة التطرب اقول وینبغی ان یکون طبل السحر فی رمضان لا یقاظ النائمین للسحور کبوق الحمام تأمل.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۵: ۲۴۷ قبیل فصل فی اللبس).

﴿۲﴾ عن ابی انس ان رسول الله ﷺ قال لقد ترکتم بالمدینة اقواما ما سرتم مسیرا ولا انفقتم من نفقة ولا قطعتم من واد الا وهم معکم فیه......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

اګرچه ددې استعمال نه ضروری دې او نه منع دې، لحدیث وماسکت عنه فهو عفو﴿۲﴾. وهوالموفق.

**ملاحظه**:......خودروژې د فوت کیدو دخلاصی دپاره فائده مندې دی. ځکه چه د ښځودپاره قضاء راګرځول مشکل وی.........(سیف الله حقانی)

## دَ خنزیر غوښه خرڅول، فحاش معاشره او ګنده خوراک څکاک دَ روژې د پاره مانع نه دی

**سوال**: علمائې کرام دَلاندینو مسئلوپه باره کښې څه فرمائی چه:

(۱) زمونږ څه ملګری په مشین د ذبحه شوی غوښې فیکټرئ کښې کارکوی،

(بقیه حاشیه) قالوا یا رسول الله و کیف یکونون معناوهم بالمدینة قال حبسهم العذر. (رواه ابوداؤد ۱:۳۴۵ باب فی الرخصة فی القعود من العذر). وعن انس ان رسول الله ﷺ رجع من غزوة تبوک فدنا من المدینة فقال ان بالمدینة اقواما ما سرتم مسیرا ولا قطعتم وادیا الا کانوا معکم وفی روایة الا شرکوکم فی الاجر قالوا یا رسول الله وهم بالمدینة قال وهم بالمدینة حبسهم العذر رواه البخاری ورواه مسلم عن جابر. (مشکواة المصابیح ۲:۳۳۱ کتاب الجهاد)

﴿۱﴾ قال الامام ولی الله الدهلوی: فمن المقاصد الجلیلة فی التشریع ان یسد باب التعمق فی الدین لئلا یعضوا علیها بنوا جذهم فیأتی من بعدهم قوم فیظنوا انها من الطاعات السماویة المفروضة علیهم ثم تأتی طبقة اخری فیصیر الظن عندهم یقینا الخ.

(حجة الله البالغة ۲:۲۲ الاقتصاد فی العمل)

﴿۲﴾ عن سلمان قال سئل رسول الله ﷺ عن السمن والجبن والفراء فقال الحلال ما احل الله فی کتابه والحرام ما حرم الله فی کتابه وما سکت عنه فهو مما عفا عنه.

(سنن الترمذی ۱:۲۰۶ باب ماجاء فی لبس الفرآء)

وعن ابن عباس قال کان اهل الجاهلیة یأکلون اشیاء ویترکون تقذرا فبعث الله نبیه ﷺ وانزل کتابه واحل حلاله وحرم حرامه فما احل فهو حلال وما حرم فهو حرام وما سکت عنه فهو عفو وتلاقل لا اجد فیما اوحی الی محرما علی طاعم یطعمه الی آخر الآیة.

(سنن ابی داؤد ۲:۱۸۳ باب مالم یذکر تحریمه)



چه په هغې کښې تقریباً دَ خنزیرغوښه هم شامل ده، آیا دا مسلمان ملګری روژه نیوې شی؟

(۲) دلته د کار وخت لس ګهنټې او ټوله ورځ اوولس(۱۷) ګهنټې ده، خودلته عریانیت او فحاشی ډیره زیاته ده اودَسترګوزناهروخت وی، په دې صورت کښې مونږ روژه نیولې شو؟

(۳) دلته دَخوراک څکاک سامان په هرقسمه ګندګئ ډک وی، په داسې حالاتو کښې مونږ روژه نیولې شو؟ بینواتوجروا

المستفتی: شیرعالم خان جرمنی

**الجواب**: (۱) دَخنزیر حلالول او دَهغې غوښه خرڅول فسق او حرام دی کفر نه دې.﴿۱﴾ پس دَدوې مونځ او روژه صحیح ده. دګناه په وجه باندې نیکې ته نقصان نه رسیږی.

(یعنی د ګناه په وجه نیکی نه ساقطیږی. (سیف الله حقانی).

(۲) چرته چه اوولس(۱۷) ګهنټې ورځ وی، هلته په روژه نیولو کښې هیڅ شک نشته، دَ(اندام مخصوص نه علاوه) دَ نورو اعضاء په زنا سره روژه نه ماتیږی، په ثواب کښې کمې راځی.﴿۲﴾.

(۳) دَخوراک څکاک سامان دګنده کیدو په وجه سره په روژې باندې هیڅ اثر نه پریوځی، په روژې کښې دا شرط نشته چه خوراک څکاک دې حلال وی. وهوالموفق.

﴿۱﴾ قال العلامة طاهر بن عبد الرشید: ولو استأجر مسلما لیرعی خنازیر یجب ان یکون علی الخلاف کما فی الخمر ولو استأجره لیبیع له میتة لا یجوز واذا استأجر الذمی من المسلم دارا لیسکنها فلا بأس به...... ولو استأجر من اهل الذمة مسلما لیضرب لهم الناقوس لا یجوز. (خلاصة الفتاوٰی ۳:۱۵۰ کتاب الاجارات)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: وفی حدیث الحاکم الذی صححه لیس الصیام من الاکل والشرب فقط انما الصیام من اللغو والرفث ویؤخذ منه ان یتاکد اجتناب المعاصی علی الصائم کما قیل فی الحج لکن لا یبطل ثوابه من اصله بل کما له فله ثواب الصوم واثم المعصیة. (مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۴:۲۶۰ باب تنزیه الصوم)

## ۲۳/ رمضان باندې سورة عنكبوت او سورة روم وئيلو په باره کښې دَ ارشاد الطالبين حواله

**سوال:** علماء دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه ۲۳/رمضان باندې سورة عنکبوت او سورة روم وئيل ثابت دی که نه؟ په ارشادالطالبين ۲۲۳ کښې ليکلې شوې دی، دربيان شب که دراں شب گناهاں همه بخشيده می شوند ،وآن شب بست وسويم ماه رمضان ست،واگردرشب ۲۳/رمضان سورة روم وعنكبوت بخواند خواننده وشنوائده راباتش دوزخ کارنباشد ،دَدې په تفصيل سره جواب راکړئ؟ بينوا توجروا

المستفتی: صالح الدين حقانی.......۷/۷/۱۹۸۲.

**الجواب:** دَقران پاک تلاوت اودَدې اوريدل عظيم عبادت دې البته دَخپل طرف نه يوسورت يا دَوخت تخصيص مکرودې،

**كما اشار اليه صاحب البحر ۱۵۹:۲ ولان ذكر الله تعالىٰ اذا قصد به التخصيص بوقت دون وقت او بشيئ دون شيئ لم يكن مشروعا حيث لم يرد الشرع به ﴿۱﴾**

عوام په دې ګمان کښې اخته کيږی چه په دې کښې ثواب ډير دې، بهرحال دا ابداع دی.نعم من قرءهماعلى وجه دفع الاعداء دون قصدالثواب فيكون مباحالاعبادة﴿۲﴾ وهوالموفق

**ملاحظه:**......په دې متعلقه حواله کښې نه دلائل موجود دی اونه دَعلماؤ جزئيات. وقدصرح فى ارشاد الطالبين بجواز الزوجات فوق الاربع وجواز المطلقة ثلاثا بلاتحليل وغير ذلک.

---

﴿۱﴾ (البحرالرائق ۱۵۹:۲ كتاب العيدين).

﴿۲﴾ قال الشاه اشرف على التهانوی: (قرآن پاک دَڅه مقصدپاره وئيل) صحيح دی څنګه چه په حديث کښې دَسورة واقعه هم دا خاصيت بيان شوې دې،چه هغه صريح دليل دې،دَجواز. (امدادالفتاوی ۸۹:۴باب تعويذات واعمال).



# فتاوىٰ ديوبند پاكستان المعروف به

**فتاوى فريديه ثلورم جلد**

# باب مايفسد الصوم ومالايفسده



..........

بسم الله الرحمن الرحيم

......قال الله تعالى......

وكلوا واشربوا حتى يتبين لكم
الخيط الابيض من الخيط
الاسود من الفجر،
ثم اتموا الصيام الى اليل.

......[البقرة:۱۸۷]........

............



# باب مايفسد

# الصوم ومالايفسده

## دَ روژې په حالت کښې په غوږ،پوزه او سترګو کښې دوائی اچول

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه څنګه انسان دوائی اوخوری نو روژه ئې ماتیږی، خو په غوږ، پوزه او سترګو کښې دَاچولو څه حکم دې؟ او دَانجکشن(ستن) لګولو څه حکم دې؟ او وجه د فرق ئې څه ده؟ بينوا توجروا.

المستفتی : محمد عمرضلع دیر........۱۰/۹/۱۹۷۸ء.

**الجواب:** انجکشن که په رګ کښې وی او که په غوښه کښې دَروژې دپاره نقصانی نه ده، ځکه چه په دې عمل سره دوائی باطن ته دَ مساماتو په ذریعه رسیږی دَمنافذ په ذریعه نه، ځکه چه دَلاسونو، پښو او خیټې په مینځ کښې یو سورې هم نشته، صرح بهذا الاصل فی الهندية ۱:۲۱٦ ﴿۱﴾، په غوږ کښې پچکاری کولو سره چه کله دوائی دماغو ته اورسیږی نو روژه فاسدیږی، (شامی وغیره)﴿۲﴾، په سترګو کښې دوائی اچولو سره روژه نه فاسدیږی،

---

﴿۱﴾ وفى الهندية: وما يدخل من مسام البدن من الدهن لا يفطر هكذا فى شرح المجمع. (فتاوى عالمگيرية ۱:۲۰۳ الباب الرابع فيما يفسد وما لايفسد)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى: او احتقن او استعط فى انفه شيا او اقطر فى اذنه دهنا او داوى جائفة او آمة فوصل الدواء حقيقة الى جوفه ودماغه قال ابن عابدين: (قوله الى جوفه ودماغه قال فى البحر والتحقيق ان بين جوف الرأس وجوف...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

اګرچه دَ هغې رنګ وغیره په پوزه یا حلق کښې ظاهریږی (عالمګیری ﴿۱﴾ شامی﴿۲﴾) که په پوزه کښې دوائی اچولو په وخت دوائی دماغو ته اورسیږی نو روژه به فاسده وی (شامی وغیره). وهو الموفق.

## دَ روژې په حالت کښې دَ دوائی بوئی کولو حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ روژې په حالت کښې دوائی بوئی کولو سره روژه ماتیږی او که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: نامعلوم........

**الجواب:** داعمل شم دې سعوط نه دې (یعنی دَ دوائی ذرات شم سره دننه نه ځی) لهذا دَمشک وغیره پشان دَدې بوئی کولو کښې څه نقصان نشته،

---

(بقیه حاشیه) المعدة منفد اصلیا فما وصل الی جوف الرأس یصل الی جوف البطن.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۱۱ باب مایفسد الصوم وما لایفسده)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولو اقطر شیئا من الدواء فی عینه لا یفطر صومه عندنا وان وجد طعمه فی حلقه واذا بزق اثر الکحل ولونه فی بزاقه عامة المشائخ علی انه لا یفسد صومه.

(فتاوی عالمگیریة ۱:۲۰۳ الباب الرابع فیما یفسد وما لایفسد)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله او ادهن او اکتحل او احتجم وان وجد طعمه فی حلقه) ای طعم الکحل او الدهن وکذا لو بزق فوجد لونه فی الاصح لان الموجود فی حلقه اثر داخل من المسام الذی هو خلل البدن والمفطر انما هو الداخل من المنافذ للاتفاق الخ.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۰۶ مطلب یکره السهر اذا خاف فوت الصبح)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله او استعط) والسعوط الدواء الذی صب فی الانف...... وعدم وجوب الکفارة فی ذلک هو الاصح لانها موجب الافطار صورة ومعنی والصورة الابتلاع کما فی الکافی وهی منعدمة والنفع المجرد عنها یوجب القضاء فقط امداد.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۱۱ باب مایفسد الصوم وما لایفسده)



فلیراجع الی ردالمحتار ۲:۱۳۲) (۱) (۲) وهو الموفق

## دَ دمې د مریض انهیلر استعمالولو سره روژه ماتیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې دَدمې مریض دې چه دَهغې دپاره دَ انهیلرګیس سپرې په حلق کښې دننه کوی، دا دَیوې سپنې هوا په شکل کښې دَ دوائې ذرات وی، آیا په دې سره روژه ماتیږی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمد احمد خان جهانګیره.......

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: لا یکره للصائم شم رائحة المسک والورد ونحوه مما لا یکون جوهرا متصلا کالدخان فانهم قالوا لا یکره الاکتحال بحال وهو شامل للمطیب وغیره ولم یخصوه بنوع منه وکذا دهن الشارب.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۲۳ قبیل مطلب فی الفرق بین الجمال والزینة)

﴿۲﴾ په دې زمانه کښې بعضې دوایانې داسې وی چه دهغې استعمال د پوزې په ذریعه کیږی او په دې کښې د دوایئ دومره باریك ذرې وی چه په ظاهره بوئیول معلومیږی لیکن په حقیقت کښې ددې باریکو ذراتو ادخال مقصود وی چه ددې په ذریعه علاج کولې شی چونکه دا هوا سره د دوایئ نه د دماغو منځ ته یا د معدې منځ ته رسیږی او دا مفسد دې.

کما فی خلاصة الفتاویٰ ۱:۲۵۳ وما وصل الی جوف الرأس والبطن من الاذن والانف والدبر فهو مفطر بالاجماع وفیه القضاء،

او عام طورباندې چه کومې دوایانې وی او هغه څوك بوئی کړی نو دا به عمل شم کښې داخل وی سعوط به نه وی.

والسعوط صب الدواء فی الانف (امداد الفتاح ۶۸۸) وقال الشرنبلالی: من ادخل دخان حلقه بأی صورة کان الادخال فسد صومه سواء کان دخان عنبر او عود وغیرهما حتی من تبخر ببخور فآواه الی نفسه واشتم دخانه ذاکر الصومه افطر لامکان التحرز عن ادخال المفطر جوفه ودماغه وهذا مما یغفل عنه کثیر من الناس فلیتنبه له ولا یتوهم انه کشم الورد ومابه والمسک لوضوع الفرق بین هواء تطیب بریح المسک وشبهه وبین جوهر دخان وصل الی جوفه بفعله. (امداد الفتاح ۶۷۷) ......(ازمرتب)

**الجواب:** په دې سپږي کولو سره روژه ماتيږي. ﴿۱﴾ البته چه تکليف دَبرداشت کولو قابل نه وي نوروژه نيول نه دي پکار، او بياچه کله بيماري ختمه شي نو قضاء ئې لازمي ده. ﴿۲﴾. وهو الموفق.

## په باب الصوم کښې دَ جلاب په باره کښې دَ بهشتي زيور دَ عبارت وضاحت

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه بهشتي زيور (از مولانا اشرف علي تهانوي رحمه الله) کښې دَروژې په باب کښې دَدې جملې څه مطلب دې؟ په جلاب کښې ئې عمل واخستو او دَڅکلو دوائي ئې اونه څکله، دلته يو کس هم دَدې په مطلب باندې نه پوهيږي، پوره عبارت دا دې، چاپه روژه کښې ناس اوکړو (پوزه کښې ئې څه دوائي واچوله) يا په غوږ کښې ئې تيل واچول يا په جلاب کښې ئې عمل اوکړو اودَڅکلو دوائي ئې اونه څکله بياهم روژه لاړه، خوصرف قضاء واجب ده او کفاره واجب نه ده، او که په غوږ کښې ئې اوبه واچولې نو روژه ماته نه شوه؟ بينوا توجروا.

المستفتي: عبدالحميد ايس وی چودهواں ړی آئي خان...... ۱/۱۲/۱۹۶۹ء.

**الجواب:** جلاب کول دَاحتقان معنی ده او احتقان دَجلاب په ارادې سره کولې شي ﴿۳﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن الهمام: ولو اكل او شرب ما يتغذى به او يتداوى به فعليه القضاء والكفارة. (هداية على صدر فتح القدير ۲: ۲۶۳ باب مايوجب القضاء والكفارة)

﴿۲﴾ قال العلامة الموصلي: ومن خاف المرض او زيادته افطر لقوله تعالى: فمن كان منكم مريضا او على سفر فعدة من ايام اخر، معناه فافطر فعدة من ايام اخر لان المرض والسفر لا يوجبان القضاء.

(الاختيار لتعليل المختار ۱: ۱۷۳ فصل فى المريض والمسافر)

﴿۳﴾ فيروز اللغات ص ۴۲۷ کښې دی، جلاب يوه داسې دوائي ده چه دې سره دست راځي، مسهل، دست راوستونکې دوائي. وقال ابن نجيم: احتقن اى وضع الحقنة فى الدبر (بحر الرائق ۲: ۲۷۸) اوپه معدن الحقائق کښې دی (۲۳۶) د ختيې صفا کولو دپاره د پاخانې په مقام دوائي اچول، اوپه القاموس الجديد (۱۹۳) کښې دی، حقن حقنا: پچکاری کول، پچکارئ سره دوائي داخلول...... (از مرتب)



دا ټول دَمسائل د هدايه دَعبارت ترجمه ده، چه دا مکمل او په تفصيل سره دَبهشتي زيور په حاشيه کښې موجود ده ﴿۱﴾.

## په غرغرې کولو سره لوندوالي حلق ته په رسيدلو سره دَ روژې حکم

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه په روژه کښې غرغرې وغيره کولوباندې لوندوالي حلق ته اورسيږي خو اوبه ختيې ته نه وي رسيدلې، نوآيا په دې سره روژه ماتيږي؟ بينواتوجروا.

المستفتي: اکرام الحق راولپنډی

**الجواب:** په دې صورت کښې دَفساد حکم ورکړې شوې دې ﴿۲﴾ لان عندتعذر الاطلاع على المسبب يدار الحكم على السبب الظاهر ﴿۳﴾ ولم اجده صريحا. وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة المرغيناني: ومن احتقن او استعط او اقطر فى اذنه افطر ولا كفارة عليه ولو اقطر فى اذنه الماء او دخله لا يفسد صومه.

(هدايه على صدر فتح القدير ۲: ۲۶۶ باب مايوجب القضاء والكفارة)

﴿۲﴾ يدل عليه ما قال الحصكفي: او خرج الدم من بين اسنانه ودخل حلقه يعنى ولم يصل الى جوفه اما اذا وصل فان غلب الدم او تساويا فسد والا لا الا اذا وجد طعمه، قال العلامة ابن عابدين: ولما كان هذا القول خلاف ما عليه الاكثر من التفصيل حاول الشارح تبعا للمصنف فى شرحه بحمل كلام المتن على ما اذا لم يصل الى جوفه لئلا يخالف ما عليه الاكثر قلت ومن هذا يعلم حكم من قلع ضرسه فى رمضان ودخل الدم الى جوفه فى النهار ولو نائما فيجب عليه القضاء. (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۱۰۷ قبيل مطلب مهم المفتي فى الوقائع لابدله الخ)

﴿۳﴾ قال الحافظ احمد ملا جيون: وقد يقام السبب الداعي والدليل مقام المدعو والمدلول...... وذلك اى قيام الداعي والدليل اما لدفع الضرورة والعجز كما فى الاستبراء...... او للاحتياط كما فى تحريم الدواعي الى الوطى من النظر والقبلة واللمس اقيمت مقام الوطى فى الاستبراء وحرمة المصاهرة والاحرام والظهار والاعتكاف للاحتياط فهو ايضا مثال لاقامة الداعي مقام المدعوا. (نور الانوار ۲۸۰ مبحث الاحكام)

## انجکشن(ستن) روژې د پاره ماتونکي نه ده

**سوال:** چه مے فرمایند علماء دین درین مسئله که دوائی بواسطه انجکشن دربدن انسان خواه دررگ باشد یادرگوشت حکم شرعی چیست مفسد صوم است یانیست، بوجه خوب مع ادله شرعیه بیان کندزیرانکه دروطن یعنی افغانستان ولایت غزنی مایان بیسیارنزاع برپاست؟ بینواتوجروا.

المستفتی: مولوی سید حسن کتوزغزنی افغانستان......۱۹۶۹ء.

**الجواب:** انجکشن خواه دررگ باشد یادرگوشت مفطرومفسدصوم نیست الا آنکه براه راست درصدریادربطن باشد ،دلیل عدم فساد این است که درمیان دست وپاوباطن منفذنیست ودواء بذریعه مسامات درباطن مے رسد مثل روغن بادام وروغن کاهو ،که بسرمالش کرده شوند ودرباطن دماغ بذریعه مسامات داخل مے شوند ،وهرچیزکه بذریعه مسامات داخل شودمفسد روزه نیست.﴿۱﴾ یدل علیه مافی الهندیة ۱:۲۱۶ وما یدخل من مسام البدن من الدهن لا یفطر هکذا فی شرح ..........

---

﴿۱﴾ وفی المنهاج:اعلم انه لیس بین العین وبین الدماغ والحلق منفذ، والدمع یخرج الی العین بطریق الترشح من المسامات کالعرق، والمفطر هو الدخول من المنافذ دون المسامات کما صرح به فی البحر وشرح المجمع وغیره ولذا لا یفطر الادهان والغسل وهذا یدل علی ان الدواء الداخل فی الباطن بتوسط الحقن والابرة لا یفطر سوآء ادخلت الابرة فی اللحم اوالعرق، لان هذا الدواء وان وصل الی اللحم والعرق بالمنفذ لاکنه یدخل الباطن بوساطة المسامات دون المنافذ لعدم المنفذ بین مثل الید والباطن ، وعروق البدن لیست بمجوفة کما ان عروق الاشجار لیست بمجوفة وکما ان الماء یصل الی اغصان الاشجار واوراقها بالتموج فی العروق فکذلک الدم والدوآء تصل الی القلب وغیره بالتموج فی العروق.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۴:۳۴ باب الکحل للصائم)



المجمع ولو اقطر شیئا من الدواء فی عینه لا یفسد صومه عندنا وان وجد طعمه فی حلقه واذا بزق فرئ اثر الکحل ولونه فی بزاقه عامة المشائخ علی انه لا یفسد صومه کذا فی الذخیرة وهو الاصح هکذا فی التبیین ﴿۱﴾. وهمچنین ازنیش عقرب وغیره این حکم عدم فساد مستفاد مے شود۔ وهو الموفق

## دَ رګ او څرمن د انجکشن(ستن) حکم کښې هیڅ فرق نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَرګ او څرمن انجکشن سره روژه فاسدیږی او که نه؟ او که نه فاسدیږی نو په دواړو کښې څه فرق دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل ولی ګړهی کپوره مردان

**الجواب:** واضحه دې وی چه انجکشن په رګ کښې وی او که په څرمن کښې روژه پرې نه فاسدیږی، ځکه چه دَانجکشن په ذریعې سره دوائی جسم ته دَمساماتو په ذریعه سره رسیږی دَمنافذ په ذریعه نه،

والمفطر هو الثانی دون الاول کما فی الهندیة ۱:۲۱۶ وما یدخل من مسام البدن من الدهن لا یفطر هکذا فی شرح المجمع ولو اقطر شیئا من الدواء فی عینه لا یفسد صومه عندنا وان وجد طعمه فی حلقه واذا بزق فرئ اثر الکحل ولونه فی بزاقه عامة المشائخ علی انه لا یفسد صومه ﴿۲﴾

واضحه دې وی چه رګ دَپائپ په شان نه وی بلکه دَ اونې دَ جرړو پشان وی.﴿۳﴾.وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگریه ۱:۲۰۳ الباب الرابع فیما یفسد وما لایفسد)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۰۳ الباب الرابع فیما یفسد ومالایفسد)

﴿۳﴾...... ☆ قال العلامة شمس الدین محمد القهستانی: او وصل دواء الی جوفه او دماغه من غیر المسام فلو وصل شیئ من المسام الی الجوف......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## دَ انجکشن په مسئلې باندې دوباره استفسار

**سوال:** محترم مفتی صاحب زیدمجدکم:

تاسو په فتوی کښې فرمائیلي دي چه انجکشن که په غرمن کښې وي او که په رګ کښې په دې سره روژه نه ماتیږي، خودلته بعض خلق په دې کښې اختلاف کوي، په تفصیل سره جواب راولیږئ ستاسو به ډیره مهربانی وي، چه مخالفینو ته جواب ورکړئ شي؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فضل ولی ګرهي کپوره مردان...۱۷/رمضان المبارک ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** مونږ سره دَفتاوی عالمګیری جزئیات موجود دي، شائد چه ماحواله هم ورکړې وي، تاسو دَهغې مخالفینو دلائل اولیکئ او راولیږئ چه دَهغې جائزه واخستلې شي. وهوالموفق.

## دَ رګ ستن(انجکشن) سره روژه نه فاسدیږي

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه مونږ ته دَرګ په ستن

---

(بقیه حاشیه) لم یفسد بلا خلاف لکن ینبغی ان یکون مکروها علی الخلاف قیاسا علی صب الماء علی البدن.

(جامع الرموز ۱:۳۶۲ فصل موجب الافساد)

......☆ قال العلامة النووی: لو اوصل الدواء الی داخل الساق او غرز فیه سکینا او غیرها فوصلت مخه لم یفطر بلا خلاف لانه لا یعد عضوا مجوفا.

(شرح مهذب ۵:۳۱۴ باب ما یفسد به الصوم ومالایفسد)

......☆قال الدکتور وهبة الزحیلی: لا یفسد الصوم عند الحنفیة بالحقن فی العضل او تحت الجلد اوفی الورید.

(الفقه الاسلامی وادلته ۳:۱۷۱۲ مبحث ما یفسد الصوم ویوجب القضاء والکفارة)



کښې مشکلات پیښیږي ځکه چه په دې سره دَروژې ماتولو اعتراضات موجود دي، نوآیا دَرګ په ستن سره یقیناً روژه ماتیږي؟ بینوا توجروا.

المستفتی: لطیف الرحمٰن مردان......۱۹۷۸ء/۲۳/۸

**الجواب:** دَرګ ستن (انجکشن) سره روژه نه فاسدیږي ځکه چه په رګ سره دوائی وغیره بدن ته دَمساموپه ذریعې سره رسیږي دَمنافذ په ذریعه سره نه.

**کما فی الهندیة ۱:۲۱۶ ومایدخل من مسام البدن من الدهن لا یفطر هکذا فی شرح المجمع وفیها بعد عبارة واذا بزق فرئ اثرالکحل ولونه فی بزاقه عامة المشائخ علی انه لا یفسد صومه کذا فی الذخیرة وهو الاصح هکذا فی التبیین ﴿۱﴾**

رګ دَپائپ پشان نه وي بلکه دَ بوټې دَ جرړو پشان وي. وهوالموفق.

## په روژه کښې دَ ګلوکوز انجکشن یا ډریپ لګولو حکم

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په روژه کښې ګلوکوز انجکشن یا ګلوکوز تهیلا لګولوسره په روژې باندې څه اثر پریوځی یا نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ډاکټرحبیب الرحمٰن ورسک ډیم پشاور......۱۹۸۲ء/۲۹/۲

**الجواب:** انجکشن یا ګلوکوز تهیلا لګولو سره روژه نه فاسدیږي ځکه چه په دې طریقې سره دا دوائی زړه او اینې ته دَمساموپه ذریعه رسیږي دَمنافذ په ذریعه نه، والمفطرهوالثانی دون الاول کما اشارالیه الفقهاء﴿۲﴾ البته په سینه او خیټه کښې براه راست انجکشن لګولو سره روژه فاسدیږي ځکه چه دا

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ۱:۲۰۳ الباب الرابع فیما یفسد وما لایفسد)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وما یدخل من مسام البدن من الدهن لا یفطر هکذا فی شرح المجمع.

(فتاویٰ عالمګیریة ۱:۲۰۳ الباب الرابع فیما یفسد وما لایفسد)

دوائی په سوری سره باطن کښې داخلیږي. ﴿۱﴾. وهو الموفق.

## دَ ملا هډوکی کښې انجکشن لګولو سره روژه نه فاسدیږي

**سوال:** علمائي کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَملا په هډوکی کښې بعض وخت انجکشن لګولې کیږي او دوائی ورته رسولې شي او دَ ملا دَ هډوکی په بدن کښې خاص حیثیت وی آیا په دې سره روژه ماتیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: ډاکټرمحمد علی جان غوریواله بنوں........... ۱۹۷۵ء/۱۰/۱۲

**الجواب:** دَملا په هډوکی کښې انجکشن لګول روژې دپاره نقصانی نه ده ځکه چه دا دوائی زړه وغیره ته دَمساموُنو په ذریعه رسیږي چه دا نقصانی نه ده. ماخوذ ازهندیه ۱: ۲۱۶. ﴿۲﴾ دې نه علاوه دَلاسونو پښونو په زخم باندې دوائی او پټئ لګولو سره روژه نه خرابیږي، البته که زخم په خیټه کښې سورې وی نو دَدوائې په داخل کیدو باندې او خیټې ته رسیدو په صورت کښې روژه فاسدیږي. ﴿۳﴾. وهو الموفق.

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: او داوى جائفة او آمة فوصل الدواء حقيقة الى جوف دماغه، قال ابن عابدين: الجائفة الطعنة التى بلغت الجوف او نفذته والآمة من اممته بالعصا الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲/ ۱۱۱ كتاب الصوم)

﴿۲﴾ وفى الهندية: ومايدخل من مسام البدن من الدهن لا يفطر...... ولو اقطر شيئا من الدواء فى عينه لا يفطر صومه عندنا وان وجد طعمه فى حلقه واذا بزق فرئ اثر الكحل ولونه فى بزاقه عامة المشائخ على انه لا يفسد صومه كذا فى الذخيرة.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۲۰۳ الباب الرابع فيما يفسد وما لايفسد)

﴿۳﴾ قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلي: وقال ابويوسف ومحمد لا يفسد الصوم فى الجائفة والآمة لان الشرط عندهما الوصول من منفذ اصلى ولعدم التيقن بالوصول لاحتمال ضيق المنفذ وانسداده بالدواء وصار كاليابس، وله ان...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## په انجکشن سره دَ روژې ماتیدلو حکم دَ اسلامی اصولو مخالف دې

**سوال:** محترم جناب مفتی محمد فرید صاحب مدظله العالی:

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته: عرض دې چه په انجکشن (ستن) سره روژه ماتیږي، په عنوان سره دا یوڅو صفحې درلیږم، تاسو مونږ دَ خپلې رائې نه خبرکړئ، واجرکم علی الله. (صفحات راته ملاؤنه شو)......(ازمرتب)

المستفتی: صوفی عبدالحمید سواتی مهتمم مدرسه نصرت العلوم گجرانوالہ ۱۹۸۹ء/۱/۳

**الجواب:** ماته دې حکم (انجکشن (ستن) باندې دَروژې ماتیدو حکم) سره اتفاق نشته دې، دا دَاسلامی اصولو خلاف دی، په انجکشن سره دوا او غذا په بدن کښې دَمساماتو په ذریعې سره رسیږي دَمنافذ په ذریعه نه. ﴿۱﴾ دَ ستن په منتهی او په بدن کښې نه قدرتی سوری وی او نه مصنوعی، بهرحال دا نوی تحقیقات دَاسلامی اصولو مؤید جوړول نقصانی نه دی، او دې تحقیقاتو ته دَمتبوع درجه ورکول دَتحریف دین پیش خیمه ده. وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه) رطوبة الدواء اذا اجتمعت مع رطوبة الجراحة ازداد سيلانا الى الباطن فيصل بخلاف اليابس لانه ينشف الرطوبة فينسد فم الجراحة، قال مشائخنا والمعتبر عنده الوصول حتى لو علم بوصول اليابس فسد، ولو علم بعدم وصول الرطب لا يفسد.

(الاختيار لتعليل المختار ۱: ۱۷۰ فصل ما يفطر الصائم)

﴿۱﴾ قال العلامة الكاسانى: واما ما وصل الى الجوف او الى الدماغ عن غير المخارق الاصلية بان داوى الجائفة والآمة فان داواها بدواء يابس لا يفسد لانه لم يصل الى الجوف ولا الى الدماغ، ولو علم انه وصل يفسد فى قول ابى حنيفة وان داواها بدواء رطب يفسد عند ابى حنيفة وعندهما لا يفسدهما اعتبرا المخارق الاصلية لان الوصول الى الجوف من المخارق الاصلية متيقن به ومن غيرها مشكوك فيه فلا نحكم بالفساد مع الشك.

(بدائع الصنائع ۲: ۲۴۳ فصل فساد الصوم)

## نسوار اچولو سره روژه ماتیږی

**سوال**: علمائي کرام دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه نسوار اچولو سره روژه ماتیږی او که نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: ملک تاج محمد طورومردان.......۱۹۸۴ء/۱۲/۴.

**الجواب**: چونکه نسوار تیریږی او ددي اثر په حلق کښي محسوسیږی لهذا نسوار استعمالولو والا به قضاء راوړی. ونظیره مافی شرح التنویر: **اذا مضغه ووجد طعمه فی حلقه**﴿۱﴾. وهوالموفق.

## نسوارو باندي دَ روژي ماتیدلو تفصیل

**سوال**: علمائي کرام دي مسئلي باره کښي څه فرمائی چه (۱) دَنسوارو عادتی دَ روژي په حالت کښي نسوار واچول. اودَنسوارو نشه په بدن کښي خوره شوه خودَ نسوارو ذائقه(خوند) دَ لاړو سره خیتي ته داخل نه شواودَ نسوارو څه حصه هم حلق نه لاندي داخل نه شوه. بیاهغه نسوار اوتهوکول اوپه اوبوسره ئي خُوله صفا کړه. په دي سره روژه ماته شوه او که نه؟

(۲). یو کس په خُوله کښي نسوار واچول روستوهغه ته پته اولګیدله چه په کوم وخت هغه په خُله کښي نسوار اچولی وو، هغي وخت صبح صادق شوي وو، په دي وجه باندي هغه روژه ماته اوګڼله او روستوئي بیاخوراک هم اوکړو. آیا په داسي سړی باندي کفاره لازم ده؟ بینواتوجروا.

المستفتی: مولاناعبدالحلیم کوهستانی(ایم این اے)

سابق مدرس دارالعلوم حقانیه.....۱۹۸۹ء

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: الا اذا مضغ بحیث تلاشت فی فمه الا ان یجد الطعم فی حلقه الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۲۲ باب مایفسد الصوم ومالایفسد)



**الجواب**: واضحه دي وی چه تمباکونه مسکردي اونه مفطر، کمافی ردالمحتار ۶:۴۵۹ آخرکتاب الاشربة الطبع المصطفی البابی، فانه لم یثبت اسکاره ولا تفتیره ولا اضراره ﴿۱﴾ اوزمونږپه علاقه کښي دَدي استعمال په دوو(۲) طریقو سره کیږی.

(۱) لوګي تیرول (چلم یاسګریټ). (۲) په خُوله کښي ږدل بغیر تیرولو.

قسم اول او طریق اول مفطر دی او عادتی سړی دپاره دکفاري موجب هم دي، کماصرحوا به﴿۲﴾. او دویم قسم اودویم طریق بذات خود مفطر نه دي. لانه یوضع فی الفم، نه دَدي خوراک یا تیرول عادت وی،

**وفی شرح التنویر عن البدائع ومفاده ان استقرار الداخل فی الجوف شرط للفساد، (باب ما یفسد الصوم ومالایفسده)﴿۳﴾. وان ثبت انه دخل الی جوفه فمفطر لا موجب للکفارة ونظیره مافی شرح التنویر واکل مثل سمسمة من خارج یفطر ویکفر فی الاصح الا اذا مضغ بحیث تلاشت فی فمه الا ان یجد الطعم فی حلقه﴿۴﴾. انتهیٰ.**

**فالصواب علی التحقیق عدم افطار الصوم، لکن لسدالباب علی العوام.**

دَ تقید رعایت ضروری دي یعنی په حلق کښي دَذوق محسوس کولو په صورت کښي مفطردي.﴿۲﴾. په دي سړی باندي دَشک په وجه سره کفاره واجب نه ده. لاحتمال وجودطعمه فی الحلق وعدمه. وهوالموفق.

﴿۱﴾ (ردالمحتار ۵:۳۲۶ آخر کتاب الاشربة)

﴿۲﴾ قال العلامة الشرنبلالی: وعلی هذا البدعة التی ظهرت الآن وهو الدخان اذا شربه فی لزوم الکفارة وقال الطحطاوی: ای البدعة التی حدثت فی لزوم الکفارة علی هذا الاختلاف فمن قال ان التغذی ما یمیل الطبع الیه وتنقضی به شهوة البطن الزم به الکفارة. (طحطاوی علی مراقی الفلاح ۶۶۵ باب مایفسد الصوم وتجب به الکفارة مع القضاء)

﴿۳﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۰۷ باب مایفسد الصوم ومالایفسده)

﴿۴﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۲۲ باب ما یفسد الصوم ومالایفسده)

## په نسوارو باندې دَ روژې ماتیدلو دوباره استفسار

**سوال:** په رمضان المبارک کښې مولانا عبدالحلیم کوهستانی په نسوارو باندې دَ روژې نه ماتیدو فتوی ورکړه او په دلیل کښې ستاسو فتوی پیش کوی دَ دې لږ وضاحت اوکړئ څکه چه مونږ په دې باندې نه پوهیږو؟ بینوا توجروا.

المستفتی: منتظم اعلی بورډ آف ریونیو (زکاة وعشر) صوبه سرحد..۱۹۸۹ء

**الجواب:** واضحه دې وی چه تمباکو نه دَنشې والا څیزدې او نه دَ اعضاؤ نشه کولو والا، څنګه چه علامه شامی رحمة الله علیه په ردالمحتار ۲: ۴۵۹ کتاب الاشربة په آخر کښې لیکلی دی، فانه لم یثبت اسکاره ولاتفتیره ولااضــراره ﴿۱﴾. یعنی تمباکو دَنشې والا څیز کیدل یا بې خوشی پیدا کیدلو والا یا نقصان ورکولو والا ثابت نه دی اوزمونږ په علاقه کښې تمباکو په دوو طریقو استعمالیږی.

(۱). لوږی تیرؤل (۲). دَ نسوارو په شکل کښې په خُوله کښې ږدل.

اولنئ طریقې سره روژه فاسدیږی او په عادتی سړی باندې کفاره ورکول هم لازمیږی، څنګه چه په شامی ۲: ۱۳۴ فی اوائل باب مایفسد الصوم کښې دی ﴿۲﴾. او په دویمې طریقې سره ئې استعمال هسې خو مفطر نه دې څکه چه دا په خُوله کښې ږدلئ کیږی او نه دَدې تیرول عادت دې.

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵: ۳۲۶ آخر کتاب الاشربة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله انه لو ادخل حلقه الدخان) ای بأی صورة کان الادخال حتی لو تبخر ببخور فاواه الی نفسه واشتمه ذاکر الصومه افطر لامکان التحرز عنه...... وبه علم حکم شرب الدخان ونظمه الشرنبلالی فی شرح علی الوهبانیة بقوله. ویمنع من بیع الدخان وشربه، وشاربه فی الصوم لا شک یفطر، ویلزمه التکفیر لوظن نافعا، کذا دافعا شهوات بطن فقرروا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۰۶ باب مایفسد الصوم ومالایفسده)



یدل علیه مافی شرح التنویر عن البدائع ومفاده ان اســتقرارالداخل فی الجــوف شرط للفساد، هامش ردالمحتار ۲: ۱۳۵ ﴿۱﴾ یعنی کوم څیزچه تول په خیټه کښې غائب شی او په خیټه کښې پاتې شی نو په هغې سره روژه ماتیږی، البته که دا ثابته شی چه نسوار خیټې ته داخل شوی دی او حلق ته رسیدلی دی نو په دې سره به روژه فاسد وی، خو کفاره به لازم نه وی.

**ونظیره مافی شرح التنویر: واکل مثل سمسمة من خارج یفطر ویکفر فی الاصح الا اذا مضغ بحیث تلاشت فی فمه الا ان یجد الطعم فی حلقه انتهیٰ هامش ردالمحتار ۲: ۱۵۳ ﴿۲﴾.**

یعنی چه کله کونځلې (کنجد) په خُوله کښې په داسې طریقې سره اوچوپی چه اجزاء کالعدم شی او دَلعاب سره لعاب شی، نو دَدې په تیرولو سره روژه نه فاسدیږی، البته که دَدې اجزاء ذائقه په حلق کښې محسوس شی نو بیا به روژه فاسد وی، پس دَتحقیق په وجه اګرچه روژه نه فاسدیدل صحیح دی خو عوام دَبې باکئ نه بچ کولو دپاره په فتوی کښې دَدې قید یعنی حلق ته رسیدل ضروری دی، څکه مونږ وایو چه نسوار تیریږی څکه په دې سره روژه ماتیږی.

(۲) په دې سړی باندې دَ شک په وجه کفاره واجب نه ده څکه چه په حلق کښې دَ ذائقې موندلو او نه موندلو دواړه احتمال موجود دی. وهوالموفق.

## په اوبو کښې غوپه وهلو سره روژه نه فاسدیږی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په اوبو کښې دننه غوپه وهلو سره روژه ماتیږی یا نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: مولوی فقیر ګل ګړهی عثمان خیل ملاکنډ ایجنسی. ۱۹۷۵ء/ ۱۲/۱۰

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۰۷ باب مایفسد الصوم ومالایفسده)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۲۲ باب مایفسد الصوم ومالایفسده)

**الجواب:** په اوبو کښې غوپې سره روژه نه ماتیږی (ماخوذ ازهندیه ۱:۲۰۳).
(۱) وهوالموفق.

## دَ ښځې ښکلولو یا یوځائې څملاستلو سره روژه نه فاسدیږی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په رمضان شریف کښې دَ ورځې په وخت دَښځې سره یوځائې څملاستلو سره یا دَښځې په ښکلولو سره روژه ماتیږی یا نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: زبیراکبرافریدی......۱۹۷۵ء/۱۰/۲۱

**الجواب:** مضاجعت (دَیوبل سره غاړه کیدل) اوتقبیل (ښکلولو) سره روژه نه فاسدیږی، ټولو فقهاؤ دا صریحاً لیکلی دی.(۲).وهوالموفق.

## استمناء بالید او بالفخذین سره روژه ماتیږی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په استمناء بالید سره روژه ماتیږی یانه؟ او دا ګناه صغیره ده او که کبیره؟ او کفاره لازم ده که نه؟ او دَ دواړو پنډو په مینځ کښې یعنی غیرسبیلین کښې دَذکراستعمال ګناه ده یا نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: عطاء الله تړل......۲۵/جولائی ۱۹۷۹ء

**جواب:** الاستمناء بالید حرام اذا فعله لا ستجلاب الشهوة واما اذا.....

---

(۱) وفی الهندیة: ومن اغتسل فی ماء وجد برده فی باطنه لا یفطره.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۰۳ الباب الرابع فیما لایفسد ومالایفسد) وقال العلامة ابن نجیم: ان خاض الماء فدخل اذنه لا یفسد. (البحر الرائق ۲:۲۷۸ باب مایفسد الصوم ومالایفسد)

(۲) قال العلامة مرغینانی: ولو قبل لا یفسد صومه...... ولا بأس بالقبلة اذا امن علی نفسه ای الجماع او الانزال ویکره اذا لم یامن.
(هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۲۵۷ باب مایوجب القضاء والکفارة)



غلبته الشهوة ففعل ارادة تسکینها به فالرجاء ان لا یعاقب، والمختار انه یفسد الصوم وعلیه القضاء ولا یوجب الکفارة اذا انزل وهو المختار فلیراجع الی ردالمحتار ۲:۳۹۹(۱) وهکذا حکم ایلاج الذکر بین فخذیه مسطور فی الصفحة المذکورة ایضاً(۲). وهوالموفق

## باقاعده چه انزال نه وی شوې نو روژه نه فاسدیږی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زما یو دوست دَ رمضان په آخری عشره کښې دَ یو انتهائی فحش ناول ډیر تعریف اوکړو، ما دَهغه نه کتاب واخستلو او دَهغې کتل مې شروع کړل، زه جنسی طورباندې لږ کمزورې هم یم، اودَدې حقیقت نه خبرهم ووم چه دَدې کتاب کتلو نه پس بهٔ ماته دَفرض غسل ضرورت راځی، کتاب مې اوکتلو، په دې دوران کښې ماته لږې اوبه تلې وې. په دې دوران کښې ماته دَمتیازو ضرورت هم پیښ شو

---

(۱) قال العلامة ابن عابدین: قوله وکذا الاستمناء بالکف ای فی کونه لا یفسد لکن هذا اذا لم ینزل اما اذا انزل فعلیه القضاء کما سیصرح به وهو المختار...... فان غلبته الشهوة ففعل ارادة تسکینها به فالرجاء ان لا یعاقب...... واما اذا فعله لاستجلاب الشهوة فهو آثم...... ویدل ایضا علی ما قلنا ما فی الزیلعی حیث استدل علی عدم حله بالکف بقوله تعالیٰ والذین هم لفروجهم حافظون الآیة وقال فلم یبح الاستمتاع الا بالزوجة والامة فافاد عدم حل الاستمتاع ای قضاء الشهوة بغیرهما.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۰۹ مطلب فی حکم الاستمناء بالکف)

(۲) قال الحصکفی: او جامع فی مادون الفرج ولم ینزل یعنی فی غیر السبیلین کسرة وفخذ، قال ابن عابدین: اما لو انزل قضیٰ فقط ای بلا کفارة...... حیث قال اراد بالفرج کلا من القبل والدبر فما دونه حینئذ التفخیذ والتبطین.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۰۸،۱۰۹ قبیل مطلب حکم الاستمناء بالکف)

دَمتیازونه روستو هم دوه درې قطرې لاړې ماته پته نشته چه دا منی ده یامذي؟ دَهغې رنګ خالص سپین نه وو، اوس په دې حالت کښې په ما باندې کفاره لازم ده یاصرف قضا لازم ده، یا دواړه لازم دی یا هیڅ لازم نه دی، صرف روژه مکروه ده؟ بینوا توجروا.

**الجواب:** که ستاسو انزال نه وی شوې نوستاسوروژه نه ده ماته شوې، دَ انزال مطلب دا دې چه دَمنی دَخارج کیدو په وخت درته مزه محسوس شی، دا مطلب نه دې چه دَمزې نه پس رطوبت خارج شی، پس که صرف دَ تفکرپه وجه سره انزال شوې وی دَعضو مخصوص سره دَلاس لګولو نه بغیر، نوروژه فاسد نه ده، ګینې فاسد ده. (شامی) ﴿۱﴾...﴿۲﴾. وهو الموفق.

## دَ زوجینو دجماع په دوران کښې دصبح صادق په طلوع کیدو د روژې حکم

**سوال:** مایقول العلماء فی هذه المسئلة ان جامع رجل مع امرأته قبل صبح

﴿۱﴾ قال الحصکفی: او قبل ولم ینزل او احتلم او انزل بنظر ولو الی فرجها مراراً او بفکر وان طال لم یفطر.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۰۶ باب مایفسد الصوم ومالایفسد

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: ان الجماع المفسد للصوم هو الجماع صورة وهو ظاهر او معنی فقط، وهو الانزال عن مباشرة بفرجه لا فی فرج او فی فرج غیر مشتهیٰ عادة او عن مباشرة بغیر فرجه فی محل مشتهی عادة ففی الانزال بالکف او بفخذ او تبطین وجدت المباشرة بفرجه لافی فرج...... وفی الانزال بمس آدمی او تقبیله وجدت المباشرة بغیر فرجه فی محل مشتهی اما الانزال بمس او تقبیل بهیمة فانه لم یوجد فیه شیئ من معنی الجماع فصار کالانزال بنظر او تفکر فلذا لم یفسد الصوم اجماعاً.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۰۹ بعید مطلب فی حکم الاستمناء بالکف)



الصادق فاذا اصبح علیهما وهما مشغولان بالجماع، اتجب الکفارة علیهما ام لا ام القضاء؟ بینوا توجروا

المستفتی: متعلم جامعه حقانیه اکوړه ختک...۱۲ اکتوبر ۱۹۸۳ء

**جواب:** قال فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار (۲: ۱۳۵) ولو مکث حتی امنیٰ ولم یتحرک قضیٰ فقط وان حرک نفسه قضی وکفر، وفی ردالمحتار: اما اذا لم ینزع وبقی فعلیه القضاء ولا کفارة علیه فی ظاهر الروایة...... وما وجه به ظاهر الروایة یدل علی عدم الفرق بین تحریک نفسه وعدمه انتهیٰ﴿۱﴾ وبالجملة ان مافی شرح التنویر فغیر ظاهر الروایة. وهو الموفق

## دَ منی وتلو په مختلف صورتونو کښې دَ روژې حکم

**سوال:** علمائې دین دې مسائلوپه باره کښې څه فرمائی چه:

(۱) چه که یو سړې یو غلط حرکت اونکړی صرف په شهوت ترې منی اوځی، نو روژه ئې ماته شوه یا نه؟ اودَ کفارې څه حکم دې؟

(۲) اوکه دَورځې ورته شهوت راغې اوپه یوه یا دوه ګهنټې کښې یا په هروخت دَمتیازو کولو په وخت ورته دَمنی اثرات ښکاره شول، نو دَ روژې څه حکم دې؟ او کفاره لازم ده یا نه؟

(۳) اوکه شهوت نه وی راغلې صرف دَمتیازپه وخت کښې ورته دَمنی پشان اثرات ظاهرشی نو روژه ماتیږی اوکه نه؟ اودَغسل څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: لعل ګل ډاک اسماعیل خیل نوشهره.........۱۹۷۲ء/۱۰/۱۲

**الجواب:** په درې واړو صورتونو کښې روژه نه ماتیږی اوترخوپوري چه انزال

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۰۸ مطلب مهم المفتی فی الوقائع لا بدله من اجتهاد)

..........

نه وی شوې نو غسل هم لازم نه دې.(هندیه۱:۲۱۷﴿۱﴾ شامی ۲:۱۰۳)﴿۲﴾
وهوالموفق.

## دَ روژې په حالت کښې دَ ښځې ښکلول او ترغاړه کیدو وغیره حکم

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په رمضان شریف کښې دَورځې په وخت دَښځې سره بغیرمباشرت اوجماع نه ښکلول او ور ترغاړه کیدل اولاس لګول وغیره جائز دی یا نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: دلباغ محمد کوهاټ

**الجواب:** دَ روژې په حالت کښې داسې کول جائز دی، چه طرفین مامون وی. (حدیث ﴿۳﴾ وهندیه ﴿۴﴾ وغیره ﴿۵﴾. وهوالموفق.

---

﴿۱﴾وفی الهندیة: واذا نظر الی امرأة بشهوة فی وجهها اوفرجها کرر النظر اولا لا یفطر اذا انزل کذا فی فتح القدیر وکذا لا یفطر بالفکر اذا امنی هکذا فی السراج الوهاج.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۰۴ الباب الرابع فیما یفسد ومالایفسد)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: اما الانزال بمس او تقبیل بهیمة فانه لم یوجد فیه شیٔ من معنی الجماع فصار کالانزال بنظر اوتفکر فلذا لم یفسد الصوم اجماعا.
(ردالمحتار ۲:۱۰۳ باب مایفسد الصوم ومالایفسد مطلب فی حکم الاستمناء بالکف)

﴿۳﴾عن عائشة رضی الله عنها قالت کان النبی ﷺ یقبل وهو صائم ویباشر وهو صائم ولکنه کان املککم لاربه، متفق علیه واللفظ لمسلم وزاد فی روایة فی رمضان اخرجه البخاری فی الصیام باب المباشرة للصائم وقالت عائشة رضی الله عنها یحرم علیه فرجها (۱۹۲۷) ومسلم فی الصیام باب بیان ان القبلة فی الصوم لیست محرمة علی من لم تحرک شهوته (۱۱۰۶).

﴿۴﴾وفی الهندیة: ولاباس بالقبلة اذا امن علی نفسه الجماع والانزال ویکره ان لم یأمن.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۰۰ الباب الثالث فیما یکره)

﴿۵﴾ قال الشرنبلالی: لا تکره للصائم القبلة والمباشرة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## قئ فی الصوم کښې مفتی به قول

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه من استقاء عمدا فسد صومه رواه ابوداؤد وذکره الزیلعی فی الکنزوایضاهذامذهب الامام محمد، خوپه شامی کښې دَدې مسئلې خلاف ئې ذکر کړې دې، په دې کښې ملا الفم او اعاده دوه شرطه زائد ذکرکړی دی. ترجیح کوم قول ته دې، اودَ امام محمد رحمه الله مذهب ظاهری طورباندې دې حدیث سره اتفاق ساتی؟ بینواتوجروا.

المستفتی: مبارک شاه مدرسه عربیع تجوړی بنوں......۲۳/شوال ۱۴۰۱هـ.

**الجواب:** اکثر محققینو دَامام ابویوسف رحمه الله قول صحیح ګڼړلئ دې، وجعلوا التقلیل منه کالعدم وکاللعاب﴿۱﴾. وهوالموفق.

---

(بقیه حاشیه)مع الامن من الانزال والوقاع لما روی عن عائشة رضی الله عنها انه علیه السلام کان یقبل ویباشر وهو صائم رواه البخاری ومسلم وهذا ظاهر الروایة وعن محمد انه کره المباشرة الفاحشة وهی روایة الحسن عن ابی حنیفة لانها قل ما تخلو عن فتنة وفی الجوهرة قیل ان المباشرة تکره وان امن علی الصحیح وهو ان یمس فرجه فرجها وفی الظهیریة عن ابی حنیفة انه قال تکره المعانقة والمصافحة وانه خلاف المشهور انتهیٰ.
(امداد الفتاح شرح نور الایضاح ۶۹۶ فصل فیما یکره وفیما لا یکره وما یستحب)

﴿۱﴾قال العلامة الشرنبلالی: او استقاء ای تعمد اخراجه ولو دون ملأ الفم فی ظاهر الروایة لاطلاق قوله ﷺ ومن استقاء عمدا فلیقض وشرط ابویوسف ان یکون ملء الفم وهو الصحیح لان ما دونه کالعدم حکما حتی لا ینقض الوضوء.
(امداد الفتاح شرح نور الایضاح ۶۹۲ باب مایفسد الصوم)

وقال العلامة حسن بن عمار: او استقاء ای تعمد اخراجه وکان اقل من ملأ فمه علی الصحیح وهذا عند ابی یوسف وقال محمد یفسد ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

..............................................

(بقیه حاشیه) وهو ظاهر الرواية ولو اعاده فی الصحیح لا یفسد عند ابی یوسف کما فی المحیط لعدم الخروج حکما ولا ینقض الطهارة وقال الکمال وهو المختار عند بعضهم لعدم الخروج شرعا.

(مراقی الفلاح شرح نورالایضاح ٦٦٢:٢ باب فی بیان مالایفسد الصوم).

قال العلامة محمد امین : (قوله والا لا) ای وان لم یملأ القئ الفم واعاده کله او بعض لا یفسد صومه عند ابی یوسف...... هو المختار وفی الخانیة هو الصحیح وصححه کثیر من العلماء رملی.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ١٢١:٢ مطلب فی مایکره للصائم)

..............



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه څلورم جلد

# باب ماتجب به القضاء والکفارة



..............

..............

بسم الله الرحمن الرحیم

قال الله تعالیٰ:........

فمن کان منکم مریضا
اوعلی سفرفعدة من ایام اخر
وعلی الذین یطیقونه فدیة
طعام مسکین.

.....(البقرة:۱۸٤).....

..........



# باب ماتجب به القضاء والکفارة

## دَ روژې نه نیولو والا توبه صحیح او قضا فرض ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړې وائی چه په توبه کولو سره ټول ګناهونه معاف کیږی، ځکه هغه روژه نه نیسی او دَاختر په ورځ توبه کوی چه آئنده دپاره به روژه نیسم، بیا رمضان راځی اوهم دا طریقه هغه اختیاروی آیا دا طریقه صحیح ده؟ او دې دپاره شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: مولوی عبدالحق......۱۹۷۵ء/۱۰/۲۸.

**الجواب:** قصداً عمداً روزانه نه نیول او مونځونه قضاکول، کبیره ګناه ده﴿۱﴾ اودَهرې ګناه نه توبه کول صحیح دی، چه په مخکښې ګناهونوباندې ملامتیا اوآئنده دپاره دَنه کولوعزم اوکړی، البته دَمرګ په وخت توبه

---

﴿۱﴾ قال الحافظ ... للذهبی: الکبیرة الرابعة ترک الصلاة والسادسة افطار یوم من رمضان: ... ، وقال علیه السلام من افطر یوما من رمضان بلا عذر لم یقضه صیام الدهروان صامه وعن ابن عباس: عری الاسلام وقواعد الدین ثلاث شهادة ان لا اله الا الله والصلاة وصوم رمضان فمن ترک واحدة منهن فهو کافر.

(کتاب الکبائر للذهبی ۵۱ افطار یوم من رمض. بلا عذر)

نه قبلیږي ﴿۱﴾، اوپه داسې تائب باندې قضا کول فرض دی، صرف په توبې سره هرڅه نه معاف کیږي ﴿۲﴾. وهو الموفق.

(دسوال نه معلومیږي چه آئنده دپاره هم دنه کولو اراده ده ځکه داتوبه توبه نه ده......سیف الله حقانی).

## دَ مفتي دَ فتوی په وجه سره په افطار کولو باندې کفاره نشته قضا شته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه زمونږ دکلي څه خلقو دَدیرشمې روژې نه مخکښې سپوږمۍ اولیدله، اوزمونږ دکلي یو مفتي صاحب فتوی ورکړه چه روژه ختمه کړئ او اختر کړئ، ځکه په هغې ورځ اختر کړئ شو، آیا دا اختر صحیح دې یا نه؟ اوکه صحیح نه وی نو کومو خلقو چه روژه ماته کړې ده په هغوی باندې اوپه هغې مفتي صاحب باندې قضا او کفاره لازم ده اوکه نه؟ اوکوم اعتکاف کونکئ چه دَاعتکاف نه بهر راوتلې وی په هغه باندې دوباره دَاعتکاف څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتي: عبدالستار متعلم جامعه حقانیه........۱۲/۱۲/۱۹۷۴ء.

**الجواب:** دَمفتي په فتوی ورکولو سره په افطار کولو باندې کفاره لازم نه ده، البته دَهغې ورځ قضایعنې دَ روژې او اعتکاف دواړو قضا لازم ده، په شرط دَدې چه دَنورو علاقو نه دَاختر خبر رارسیدلې نه وی، ګینې قضاهم لازم نه ده.

یدل علی عدم التکفیر ما فی الدرالمختار: حتی لو افتاه مفت یعتمد ........

---

﴿۱﴾ قال العلامة الفرهاری: ویغفر مادون ذلک ای ما سوی الشرک لمن یشاء من الصغائر والکبائر مع التوبة وبدونها التوبة هی الندم علی المعصیة والعزم علی عدم العود الیها...... وهل یقبل توبة من حضره الموت والصحیح ما فی الحدیث ان الله یقبل توبة العبد مالم یغرغر رواه الترمذی اما ایمان الیأس فلا یقبل وهو حین یشاهد الکافر النار قبل موته ولذا لم یقبل ایمان فرعون.
(النبراس شرح شرح العقائد ۲۳۳ ویغفر مادون ذلک لمن یشاء)

﴿۲﴾ قال الشرنبلالی: وصوم رمضان فرض عین اداء وقضاء علی من اجتمع فیه اربعة اشیاء.
(امداد الفتاح شرح نور الایضاح ۶۵۲ کتاب الصوم)



علی قوله او سمع حدیث ولم یعلم تأویله لم یکفر للشبهة، (هامش ردالمحتار ۲: ۱۴۹) ﴿۱﴾ واما القضاء فلان عدم التکفیر لا یستلزم عدم القضاء ولذا یقضی فی صورة الاحتجام نعم عند فساد الاعتکاف یقضی الیوم الواحد عند الطرفین واما عند ابی یوسف یقضی العشر اوالایام الباقیة والتفصیل فی ردالمحتار ۲: ۱۸۰ باب الاعتکاف فلیراجع ﴿۲﴾. وهو الموفق

## دَ رمضان پنځه روژې ئې خوړلې وی او دَ پنځو واړو قضا او یوه کفاره لازمی ده

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائي چه دګناه نه دَنه خبریدو په وجه باندې مادَتیرشوی رمضان پنځه روژې خوړلې دی، اوس څه اوکړم، دَقضا او کفارې څه صورت دې؟ بینوا توجروا.

المستفتي: محمد انعام غله ډهیر مردان......۴/رمضان ۱۴۱۰ھ.

**الجواب:** که چرې تاسو دَ روژې دَنیت کولو نه پس روژه خوړلې وی نو تاسو

---

﴿۱﴾. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۱۸ قبیل مطلب فی الکفارة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: فلو شرع فی نفله ثم قطعه لا یلزمه قضائه لانه لا یشترط له الصوم علی الظاهر، قال ابن عابدین: وعلی کل فیظهر من بحث ابن الهمام لزوم الاعتکاف المسنون بالشروع وان لزوم قضاء جمیعه او باقیه مخرج علی قول ابی یوسف اما علی قول غیره فیقضی الیوم الذی افسده لاستقلال کل یوم بنفسه وانما قلنا ای باقیه بناء علی ان الشروع ملزم کالنذر وهو لو نذر العشر یلزمه کله متتابعا ولو افسد بعضه قضی باقیه علی ما مر فی نذر صوم شهر معین والحاصل ان الوجه یقتضی لزوم کل یوم شرع فیه عندهما بناء علی لزوم صومه بخلاف الباقی لان کل یوم بمنزلة شفع من النافلة الرباعیة وان کان المسنون هو اعتکاف العشر بتمامه.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۴۳ باب الاعتکاف)

باندې دَقضا نه علاوه کفاره یعنی دوه میاشتې مسلسل روژې نیول هم فرض دی یعنی ۶۰+۵=۶۵ ورځې ﴿۱﴾. اوکه تاسو دَروژې دَنه نیولو اراده کړې وه، نوصرف قضادرباندې فرض ده اودکفارې شپیته (۶۰) ورځې فرض نه دی. (معتبرات فقه). وهوالموفق.

## دَ روژې خوړونکی یا په بعض ورځو کښې دَ نه نیولو یا دَ ټولو روژو نه نیولو والا دپاره حکم

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی، مونږ دَیورپ دَټولو نه بنائسته ځائې کښې اوسیږو، دَهغې ځائې دَماحول دَوجې نه مونږ سره درې قسمه مسلمانان دی:

(۱). بعض داسې دی چه روژې نیسی، دَپیشمنی دپاره پاسی اونیت کوی، خو صبا ته دولس یا یوه بجه بغیردَڅه عذر نه روژه ماتوی.

(۲). بعض روژې نیسی خودَهفتې اواتوار په ورځ روژه نه نیسی اودَپیشمنی دپاره هم نه پاسی، اوباقاعده وائی چه مونږ به دَ هفتې او اتوار په ورځ روژه نه نیسو. (۳). بعض خلق داسې دی چه صحت مند هم دی خو روژې دَدې په وجه باندې نه نیسی چه دا یورپ دې اوپه یورپ کښې روژې لازمی نه دی، دَدې درې واړه قسمه خلقو دپاره دَقضا او کفارې څه حکم دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: سلطان مسعودشاه مغربی جرمنی

**الجواب:** (۱). که داخلق دَخوراک څښاک یا دَ دوایئ په خوړلو سره روژه ماته کړی، نوپه دوی باندې دَقضا نه علاوه کفاره هم واحب ده، په شرط دَدې چه دَ روژې نیولو اراده ئې کړې وی. (ماخوذ از شامی) ﴿۲﴾_ (۲، ۳) په دې خلقو

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: ولو تكرر فطره ولم یكفر للاول یكفیه واحدة ولو فی رمضانین عند محمد وعلیه الاعتماد بزازیة ومجتبیٰ وغیرهما واختار بعضهم للفتویٰ ان الفطر بغیر الجماع تداخل والا لا.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۲۰ مطلب فی الكفارة)
﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: وان جامع فی رمضان اداء...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



باندې قضا اوتوبه و استغفار لازم ده، کفاره واجب نه ده. (شامی) (۱).

**ملاحظه:**..........د کفارې نه مراد دا دې چه مسلسل دوه میاشتې به روژې نیسی. وهوالموفق.

## دَ معتمد عالم.دَ فتوی په صورت کښې کفاره لازم نه ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه هلال کمیټې په اوولسم (۱۷) ستمبر ۱۹۷۴ء باندې اعلان اوکړوچه صبا په اتلسم (۱۸) ستمبر به ړومبئ روژه وی، خویو معتمد عالم دین دَحکومت په اعلان باندې احتجاج اوکړو چه فرضی نشته ځکه ټول کلی والو روژه ختمه کړه، هوټلې کهلاؤ شوې، دَهغې نه پس اته ویشت (۲۸) روژې پوره شوې اودې ګواهان هلال کمیټې ته راغلل او اختر اوکړئ شو، اوس سوال دا دې چه دَهلال کمیټئ اعلان دَروژې او اختر صحیح دې که نه؟ او زمونږ دا روژه ماتول دَ کفارې موجب ده که نه؟ بینواتوجروا.

المستفتی: غلام دستګیرلکی مروت........ ۲۷/نومبر ۱۹۷۴ء.

**الجواب:** (۱). دَهلال کمیټئ تفصیلی اعلان چه دَحکم دهنده او دَرؤیت په حکم وغیره باندې مشتمل وی، دَ روژې او اختر موجب دې.

كما یدل علیه ما فی منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ۲: ۲۷۰ لم یذكروا عندنا العمل بالامارات الظاهرة الدالة علی ثبوت الشهر كضرب المدافع فی زماننا والظاهر وجوب العمل بها علی من سمعها فمن كان غائبا عن المصر كاهل .......

(بقیه حاشیه) او اكل او شرب غذاء او دواء...... قضیٰ فی الصور كلها وكفر.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۱۸ قبیل مطلب فی الكفارة)
﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: اولم ینو فی رمضان كله صوما ولا فطرا مع الامساك لشبهة خلاف زفر او اصبح غیرنا وللصوم فأكل عمدا ولو بعد النیة قبل الزوال لشبهة خلاف الشافعی ...... قضیٰ فی الصور كلها فقط.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۱۲ باب مایفسدالصوم ومالایفسده)

القریٰ ونحوها﴿۱﴾ قلت وجه الدلالة ان الرادیو آلة محفوظة جدا والدلالة فیها اتم وقلت ایضا ان التقیید بالتفصیل لفساد الزمان ورفع احتمال البناء علی قول الموقتین (المهندسین) وغیرهم فافهم.

(۲) ظاهری طورباندې پرې کفاره واجب نه ده.

کما یدل علیه عبارة الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۴۹ وان جامع (الی ان قال) قضی وکفر لانه ظن فی غیر محله حتی لو افتا مفت یعتمد علی قوله او سمع حدیث ولم یعلم تاویله لم یکفر للشبهة وفی ردالمحتار: وفی النهایة ویشترط ان یکون المفتی ممن یؤخذ منه الفقه ویعتمد علی فتواه فی البلدة وحینئذ تصیر فتواه شبهة ولا معتبر بغیره﴿۲﴾. وهوالموفق

## دَ چا ګواهی چه رد کړئ شی او روژه ماته کړی نو په هغه باندې صرف قضا ده کفاره نشته

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی، یو سړی او دَهغه ښځې اوویل چه مونږ سپوږمئ لیدلې ده، او په آسمان کښې وریځ هم وه، او دا دواړه متهم بالفسق هم دې، ځکه چه دوی دواړه بغیر دَڅه عذر نه کله ناکله مونځ پریږدی، عام خلقو او علماؤ دَدوی په وئیلو باندې عمل اونکړو، او س هغوی صبا روژه اونیوله او په مینځ کښې ئې ماته کړې ده، اوس په دوی باندې قضا او کفاره شته او که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ملا شیر محمد لورآلائی بلوچستان........۲۱/۱۰/۱۹۷۸ء.

**الجواب:** دَکوم کس ګواهی چه دَفسق په وجه رد کړئ شی او بیا روژه ماته کړی نو په هغه باندې کفاره نشته او قضا لازم ده.

رأی مکلف هلال رمضان اوالفطر ورد قوله بدلیل شرعی صام مطلقا وجوبا وقیل ندباً فان افطر قضی فقط فیهما لشبهة الرد. (الدرالمختار علی هامش ......

﴿۱﴾ (منحة الخالق علی هامش البحر الرائق ۲:۲۷۰ قبیل ما یفسد الصوم ومالایفسده)

﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۱۸ قبیل مطلب فی الکفارة)



ردالمحتار ۲:۱۲۳ ﴿۱﴾ وهوالموفق

## دَ قې کولو په وجه دَفطر په ګمان باندې ئې اوبه اوڅکلې، نو په ده باندې قضا واجب ده

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو سړی دَرمضان په میاشت کښې قې اوکړې، هغه اوګڼړل چه په دې سره روژه ماتیږی. لهذا دَهغې نه پس ئې قصداً اوبه اوڅکلې. اوس په ده باندې صرف قضا ده یا کفاره هم ده؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فقیر استاد بهرت بنون....۳/ذی الحجة ۱۳۸۹ھ.

**الجواب:** په دې کس باندې قضا واجب ده او کفاره واجب نه ده.

لما فی البحر وکذا لو ذرعه القی وظن انه یفطره فافطر فلا کفارة علیه لوجود شبهة الاشتباه (بحواله شامی ۲:۱۳۹)﴿۲﴾. وهوالموفق

## دَ دمې دَ مریض دپاره دَ انهیلرسپرې استعمال دَ قضا او کفارې موجب دې

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَدَمې دَمریض دپاره انهیلر پمپ په رمضان کښې استعمالول څنګه دې؟ ځکه چه دَدې پمپ نه بغیر یوه ګهنټه تیرول هم مشکل وی، ځکه چه په دې پمپ کښې هوا وی، نو آیا دَدې هوا په دننه تلو باندې هم روژه ماتیږی؟ که ماتیږی نو په ده باندې صرف قضا ده یا کفاره یا دواړه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: مولانا فتح محمد فاضل دیوبند عمرزئی چارسده

**الجواب:** هوا اګر چه جسم دې خو دَدې داخلیدل او بهرتلل چه دَتنفس په طور

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۹۸ قبیل مطلب لاعبرة بقول الموقتین)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۱۱ باب مایفسد الصوم ومالایفسده)

سره نه وی علمائې کرامو په مفطرات کښې ذکر کړی نه دی. ځنګه چه علمائې کرامو دَ جن اوملائک په باطن کښې داخلیدل په مفطرات کښې نه دی شمیرلی. حالانکه دا هم جسمونه دی، پس معلومیږی چه اجسام لطیفه داخلیدل او بهروتل په روژې باندې هیڅ اثر نه پریوباسی، پس که دَپمپ په ذریعې سره صرف هوا داخلیږی نومفطر نه دې، خو که دَدوایئ اجزا په پمپ کښې محفوظ وی اودَهوا سره په بدن کښې داخلیږی. اوهم دا واقعه ده، نو دَ قضااو کفارې دواړو موجب به وی، قال فی الهدایة ۱۶۰ ولواکل اوشرب ما یتغذی به او یتداوی به فعلیه القضاءوالکفارة﴿۱﴾ وهکذا فی غیرواحد من کتب الفقه ﴿۲﴾ اودَهواسره دَ دوایئ اجزادَداخلیدوپه صورت کښې که چرې دې مریض ته بغیردَدې پمپ نه دَهلاکت یا دَمرض دَزیاتوالی قوی اندیښنه وی نودَهغه دپاره روژه ماتول جائز دی. دَدې نه پس که صحت یاب شو، نو قضا به راوړی، اوکه صحت یاب نه شو نو په ده باندې کفاره ورکول ضروری نه دی. لعدم وجود الشرط وهو ادراک ایام اخر، قالوا فی الهندیة ۱:۲۲۰ ولو فات صوم رمضان بعذر المرض اوالسفر او استدام المرض والسفر حتی مات لا قضاء علیه لکنه ان اوصیٰ بان یطعم عنه صحت وصیته وان لم تجب علیه وفیها ایضا ۲۱۹ المریض اذا خاف علی نفسه التلف او ذهاب عضو یفطر بالاجماع وان خاف زیادة العلة وامتداده فکذلک عندنا وعلیه القضاء اذا افطر﴿۳﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ (هدایة علی صدر فتح القدیر ۲:۲۶۳ باب مایوجب القضاء والکفارة)

﴿۲﴾ قال الامام شمس الدین القهستانی: او اکل او شرب غذاء او دواء وهو یوثر فی البدن بالکیفیة فقط کالکافور وغیره لکن فی المحیط لو اکل ما یتداویٰ به قصدا او تبعا لغیره یکفر وما لا فلا وفی الهلیلج روایتان...... عمدا احتراز عن الاکراه والخطاء والنسیان قضیٰ وکفر.

(جامع الرموز ۱:۳۵۸ فصل موجب الافساد)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۰۷ الباب الخامس فی الاعذار التی تبیح الافطار)



## غاښ ویستلو د پاره ړومبې دَ کیپسول خوړلو په صورت کښې قضا او کفاره دواړه واجب دی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زماغاښونو ته چنجې اولګیدو، چه دَهغې په وجه سره په وورې کښې مې درد او پیپ پیدا شو، اودَ چاراندام په وخت کښې غاښونو نه به مې ډیره وینه بهیده، زمونږ محکمې زه راولپنډئ ته یو ډاکټر ته اولیږلم. هلته ډاکټر په ۲۴ رمضان باندې زما دوه غاښونه اوویستل. دَدرد تکلیف کمولو دپاره او په وورو کښې اوبه وغیره نه تللو دپاره ډاکټرماته یوه کیپسول راکړه، چه دَهغې په وجه روژه ماته شوه. اوس دَهغې په بدله کښې ما قضا روژه نیولې ده، خو بعضې خلق دَ کفارې وائی، آیا په مباندې کفاره لازم ده؟ بینواتوجروا.

المستفتی: حاجی احمدالدین مدنی مسجد جامع سرائے قیام ټیکسلا ۱۳۸۹ھ

**الجواب:** که دَ سخت درد په وجه دې غاښ ویستلې وی او روستو دې کیپسول خوړلئ وی، که دا دَدې سخت درد په وجه سره شوې وی، نو په دې صورت کښې کفاره نشته دې.﴿۱﴾. اوکه دَغاښ ویستلو نه دې مخکښې کیپسول خوړلې وی چه دَغاښ ویستلو نه روستو سخت درد پیدا نه شی، اودَویستلو نه مخکښې دردنه وو، نوپه دې صورت کښې کفاره واجب ده﴿۲﴾وهو الموفق

﴿۱﴾ وفی الهندیة: المریض اذا خاف علی نفسه التلف او ذهاب عضو یفطر بالاجماع وان خاف زیادة العلة وامتداده فکذلک عندنا وعلیه القضاء واذا افطر کذا فی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۰۷ الباب الخامس فی الاعذار المبیحة)

...... خودا جواب به هله وی چه درد دومره سخت وی چه ورسره دځان خطره وی او یا روژې سره د درد د زیاتوالی او اوږدوالی ویره وی...... (سیف الله حقانی)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: اذا اکل متعمدا ما یتغذی به او یتداویٰ به یلزمه الکفارة وهذا اذا کان مما یؤکل للغذاء او للدواء فاما اذا لم یقصد لهما فلا کفارة وعلیه القضاء.

(فتاویٰ عالمگیریة ۱:۲۰۵ النوع الثانی مایوجب القضاء والکفارة)

## په روژه کښې سګريټ څکلو سره کفاره لازم ده

**سوال:** علمائې کرام دي باره کښې څه فرمائی چه په سګريټ څکلو سره روژه ماتيږي او که نه؟ او صرف قضابه راوړي يا کفاره هم؟ بينواتوجروا.

المستفتی: عبدالله........۱۹۷۵ء/۱/۱.

**الجواب:** په عادتی سړی باندې په روژه کښې سګريټ او چيلم څکلو سره قضا او کفاره دواړه لازم دی(شامی ۲:۱۳۴) (۱). وهوالموفق.

## په روژه کښې نسوار استعمالولو سره قضا لازم ده

**سوال:** ايها العلماء الكرام ما قولكم فى استعمال النبات المسمى بالتنباک والتتن....

(۱) قال العلامة ابن عابدين: (قوله انه لو ادخل حلقه الدخان) ای بای صورة كان الادخال حتى لو تبخر ببخور فآواه الى نفسه واشتمه ذاكر الصومة افطر لامكان التحرز عنه...... وبه علم حكم شرب الدخان ونظمه الشرنبلالى فى شرحه على الوهبانية بقوله، ويمنع من بيع الدخان وشربه، وشاربه فى الصوم لاشک يفطر ويلزمه التكفير لو ظن نافعا كذا دافعا شهوات بطن فقرروا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۰۶ باب ما يفسد الصوم ومالايفسده)

وقال الشرنبلالى: من ادخل بصنعه دخانا حلقه بأى صورة كان الادخال فسد صومه سواء كان دخان عنبر او عود او غيرهما حتى من تبخر ببخور فآواه الى نفسه واشتم دخانه ذاكرالصومه افطر لامكان التحرز عن ادخال المفطر جوفه ودماغه وهذا مما يغفل عنه كثير من الناس فليتنبه له ولا يتوهم انه كشم الورد ومائه، والمسک لوضوع الفرق بين هو تطيب بريح المسک وشبهه وبين جوهر دخان وصل الى جوفه بفعله.

(الطحطاوى على المراقى ۱:۲۶۰ باب مالايفسدالصوم)



حيث تختلط معه النورة او رماد الاشجار او الماء ثم يضعونها تحت الشفت فى الفم، ثم يطرحونها بعد مضى وقت ويطرحون الريق المنجذبة من ابدانهم بسببه، وانى كنت تتبعت الكتب الموجودة عندى فما شفى صدرى لكونه غير موصلة الى الجوف الا ان العاملين يقولون اذا استعملها فلا حاجة لنا للماء والطعام، فهل يفطر بها الصوم ام لا؟ بينواتوجروا

المستفتی: نامعلوم.........

**جواب:** التتن المخلوط بالماء والنورة لا يفطر فى نفسه نعم اذا دخل الحلق والباطن فيفطر البتة وقد تجربت ان طعمه يوجد فى الحلق ولو بعد المضمضة ويؤيد الافطار ما فى الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۱۵۳ واكل مثل سمسمة من خارج يفطر ويكفر فى الاصح الا اذا مضغ بحيث تلاشت فى فمه الا ان يجد الطعم فى حلقه كما مر انتهى(۱). وهوالموفق

## دَ ښځې سره جماع کولو باندې قضا او کفاره دواړه لازم دی

**سوال:** علمائې دين دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ لاعلمئ په وجه سره ښځه خاوند دَ روژې په حالت کښې جماع اوکړې نو په دوی باندې صرف قضاده يا کفاره هم ده؟ او دَ جماع کولو په وخت کښې دَ پردې په حالت کښې وی، اوپه کفاره يا قضا کښې دواړه برابر شريک دی يا نه؟ بينوا توجروا.

المستفتی: خورشيد انوررا ولاکوټ آزاد کشمير......۱۹۸۳ء/۱۷/۸.

**الجواب:** که دَ روژې يادولو په حالت کښې جماع اوکړې نو دواړه به يوه ورځ

(۱) (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۱۲۲ باب مايفسد الصوم ومالايفسده

.............

قضا او دوه میاشتې روژې د کفارې په طور نیسی﴿۱﴾. او جماع د پردې په حالت کښې یوه مجمل جمله ده، لهذا وضاحت اوکړئ جواب به درکړو. وهوالموفق.

## ښځې سره د ملاعبت په وجه سره د انزال په صورت کښې صرف قضا ده

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه د رمضان په میاشت کښې د روژې په حالت کښې د ښځې سره په څملاستلو او ترغاړه وتلو سره انزال (منی خارج) شی، نو صرف قضا به لازم وی یا کفاره به هم لازم وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: غلام حیدر محکمه زراعت ایبټ آباد......۲۲/۱۰/۱۹۷۵ء.

**الجواب:** په داسی حالت کښې به صرف یوه ورځ روژه نیول فرض وی، په دې کښې کفاره نشته دې. کذافی الهندیة ۲۱۷: و اذا قبل امراته وانزل فسد صومه من غیر کفارة کذا فی المحیط﴿۲﴾. وهوالموفق.

## په روژې کښې په لاس سره منی خارج کولو باندې صرف قضا لازم ده کفاره نه

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی که یو کس په رمضان کښې د روژې په حالت کښې د خپلو لاسونو په ذریعې سره منی خارج کړی، نو د کفارې څه حکم دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: وحیداحمد تحصیل و ضلع کوهاټ..........۲۹/۲/۱۹۸۹ء.

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وان جامع المکلف آدمیا مشتهی فی رمضان اداء او جومع او توارت الحشفة فی احد السبیلین انزل اولا ...... قضی فی الصور کلها وکفر.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۱۷ باب مایفسد الصوم وما لایفسده)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۲۰۴ الباب الرابع فیما یفسد وما لایفسد)



**الجواب:** د روژې په حالت کښې په لاس سره منی خارج کولو باندې به صرف قضا لازم وی کفاره نه﴿۱﴾. وهوالموفق.

## په لاس سره منی خارج کولو په وجه باندې د نذر روژه دوباره په لاس سره منی خارجولو سره د روژې ماتولو په صورت کښې د قضا حکم

**سوال:** یو سړی خپل ځان باندې لازم کړه که د شهوت پوره کولو دپاره ما جلق اوکړو، نو یوه روژه به نیسم، اوس د شپې په وخت کښې داسی اوشو، نو صبا ئې روژه اونیوله، خود ورځې ئې بیا جلق اوکړو، په دې خیال سره چه زه دوه روژې به اونیسم، اوس د دې کس څه حکم دې، دوه روژې به نیسی یا صرف د دې یوې روژې قضا به کوی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عبدالله پیښور یونیورسټی.........۲۸/شعبان ۱۴۰۳ هـ.

**الجواب:** که انزال نه وی شوې نو روژه فاسد شوې نه ده، او په ظاهره دا کار ګناه کبیره ده، او که انزال شوې وی نو د دې روژې قضابه راوړی﴿۲﴾ وهوالموفق

کتبه:.......... رشید احمد صدیقی عفی عنه.

**الجواب:** د انزال په صورت کښې وجوبی طورباندې یوه روژه قضا راوړل دی﴿۳﴾

﴿۱﴾ (قال العلامة ابن عابدین: قوله وکذا الاستمناء بالکف، ای فی کونه لا یفسد لکن هذا اذا لم ینزل اما اذا انزل فعلیه القضاء.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۰۹ مطلب فی حکم الاستمناء بالکف)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وکذا الاستمناء بالکف، قال الشامی: ای فی کونه لا یفسد لکن هذا اذا لم ینزل اما اذا انزل فعلیه القضاء کما سیصرح به وهو المختار.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۰۹ مطلب فی حکم الاستمناء بالکف)

﴿۳﴾ قال العلامة المرغینانی: ان الکفارة تعلقت بجنایة الافطار فی رمضان علی وجه الکمال وقد تحققت. (هدایة علی صدر فتح القدیر ۲: ۲۶۴ باب مایوجب القضاء والکفارة). وفی الهندیة: ولا کفارة بافساذ صوم غیر رمضان کذا فی الکنز.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۲۱۵ باب المتفرقات کتاب الصوم)

او احتیاطی طورباندې به دوه روژې نیسی.وهوالموفق.(لاحتمال انعقادالنذر)

.......(سیف الله حقانی).

کتبه:........محمدفریدعفی عنه

## دَ روژې په حالت کښې لواطت کولو

## سره قضا او کفاره دواړه واجب دی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی:که یو سړې په رمضان المبارک کښې لواطت اوکړی،نوپه هغه باندې صرف قضا واجب ده یا کفاره هم؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فخرالدین نیازی ډی آئی خان.........۱۹۷۷ء/۱۸/۹.

**الجواب:** دَلواطت کولو په صورت کښې به قضا او کفاره دواړه واجب وی. **کمافی شرح التنویر وان جامع فی رمضان اداء او جومع او توارت الحشفة فی احد السبیلین انزل اولا الی ان قال قضی فی الصور کلها وکفر هامش ردالمحتار ۱۴۷:۲، ۱۴۹ ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په روژه دار زانی باندې قضاکفاره،توبه او حد زنا لازم دی

**سوال:** علمائې کرام دَهغې سړی په باره کښې څه فرمائی چه هغه دَیوې ناواده شوې حائضه ښځې سره دَزنا اراده اوکړه،اودې سړی واده هم کړې وو او دَ روژې په حالت کښې هم وو ،هغه اووئیل چه که داسې جماع شروع کړم نو بیا به لګاتار روژې نیسم،نوهغه دَ کاغذ یوه ټکړه تیره کړه،اوبیا ئې جماع (زنا) شروع کړه،اوس دا معلومول دی چه:

(۱).بغیر دَشرعی عذر نه روژه ماتول څنګه دی،که دَ کاغذ په ټکړې سره ولې

**﴿۱﴾ ( الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱۱۷:۲، ۱۱۸ باب مایفسد الصوم ولایفسده)**



نه وی؟ دَ جماع په وخت کښې ورته معلومه شوه،چه هغه ټکړه دَده په تالو کښې وینختلې ده او خیټې ته نه ده تلې.

(۲).دَ دې کس روژه په جماع سره ماته شوه یا دَ کاغذ په ټکړې سره؟

(۳). اوس دَدې کس دپاره څه داسې کفاره شته چه په هغې سره دَدې کس ګناهونه معاف شی،اوکه هغه دَ روژې کفاره دَروژې په نیولو سره نه غواړی نو آیا بل څه صورت شته؟ بینواتوجروا.

المستفتی:میرصاحب شاه مرکزصحت اباخیل لکی مروت ۱۹۷۹ء/۱۸/۸

**الجواب:** (۱).دَ شرعی عذر نه بغیر روژه ماتول حرام دی.**قال الله تعالی: ولا تبطلوا اعمالکم الآیة ﴿۱﴾.**

(۲).دَ روژې ماتولو دارو مدار خیټې ته په تللو باندې دې،په حلق کښې داخل کیدو باندې نه دې.(شامی)﴿۲﴾.

(۳).په داسی مجرم باندې قضا ،دَروژې کفاره،توبه او حد لازم دې،البته دَحد متعلق څه تفصیل شته،چه هغه دَ فقهې دَ کتابونو نه معلومولې شی.وهوالموفق.

## په قضا او کفاره کښې دَ زنا او لواطت یو حکم دې

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په رمضان کښې سړې او ښځه زنا اوکړی،نو قضا او کفاره دواړه لازم دی،خوچه کله غیر

**﴿۱﴾ (سورة محمد آیت: ۲۳ پاره: ۲۶)**

**﴿۲﴾ قال العلامة محمد امین: (قوله یعنی ولم یصل الی جوفه) ظاهر اطلاق المتن انه لا یفطر وان کان الدم غالبا علی الریق وصححه فی الوجیز کما فی السراج وقال ووجهه انه لا یمکن الاحتراز عنه عادة فصار بمنزلة ما بین اسنانه وما یبقی من اثر المضمضة...... حاول الشارح تبعا للمصنف فی شرحه بحمل کلام المتن علی ما اذا لم یصل الی جوفه.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱۰۷:۲ باب مایفسد الصوم ومالایفسده)**

محصن اغلام فی الدبر اوکړی نوپه لواطت کښې هم قضا او کفاره دواړه واجب دی یا صرف قضا؟ بینواتوجروا.

المستفتی: عبدالسلام برګوکند سوات ضلع

**الجواب:** په قضا او کفاره کښې دَ قبل و دبر(مخې او شا) یو حکم دې﴿۱﴾ صرف دَ حد په وجوب کښې اختلاف دې﴿۲﴾. فلیراجع الی ابواب مفسدات الصوم وباب مایوجب الحدفی جمیع کتب الفقه. وهوالموفق.

## په وجوب کفاره کښې دَ جماع حلال یا حرام هیڅ فرق نشته

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی: زمونږ په ځائې کښې یو سړی اووئیل چه دَخپلې ښځې سره او پردې سره په جماع کښې هیڅ فرق شته. هغه دا چه دَخپلې ښځې سره جماع کولو باندې کفاره واجبیږی او دَزنا په صورت کښې صرف قضا واجب ده کفاره نه ده. ځکه چه په دې صورت کښې دَزنا په وجه سره په ده باندې حد جاری کیږی. اوحد اوکفاره دواړه جمع کیدې نشی. دَدې کس دا قول صحیح دې؟ بینواتوجروا.

المستفتی: عبدالحمید لدها ډی آئی خان

﴿۱﴾ قال الشیخ الغنیمی المیدانی: ومن جامع آدمیا حیا عامدا فی احد السبیلین انزل اولا او اکل او شرب ما یتغذی به او یتداوی به فعلیه القضاء والکفارة لکمال الجنایة بقضاء شهوة الفرج اوالبطن.

(اللباب فی شرح الکتاب ۱:۱۵۷ باب مایفسد الصوم)

﴿۲﴾ قال العلامة ابوالحسین القدوری: فان کان الزانی محصنا رجمه بالحجارة حتی یموت...... وان لم یکن محصنا وکان حرا فحده مأة جلدة...... ومن اتی امرأة فی الموضع المکروه او عمل عمل قوم لوط فلا حد علیه عند ابی حنیفة ویعزر وقال ابویوسف ومحمد هو کالزنا الخ.

(مختصر القدوری علی صدر اللباب ۳:۵۹ کتاب الحدود)



**الجواب:** په څلور واړو مذهبونو کښې چاهم دَموجب کفارې په حلال یا حرام کښې فرق نه دې کړې، لهذا دَدې فارق قول غلط دې، په ده باندې ضروری ده چه یو حواله پیش کړی، بلکه داچه هرکله په زناکونکې ښځې باندې کفاره واجب وی، نوپه زناکارسړی باندې به په بطریق اولی واجب وی.

**لعدم الاختلاف الامام الشافعی فی حق الرجل الجامع، قلت ویدل علی الوجوب علیها فی الهندیة ۱:۲۱۸ ولو مکنت نفسها من صبی او مجنون فزنی بها فعلیها الکفارة بالاتفاق کذا فی الزاهدی. ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په روژه کښې دَ کپړوسره په جماع کولو باندې دَ قضا یا کفارې وغیره حکم

**سوال:** علماء کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زید د هندې سره په روژه کښې په داسې کیفیت کښې جماع اوکړه چه په مینځ کښې درې پردې حائل وې، او دا جماع قصداً وه، نسیاناً نه وه، او انزال هم اوشو، اوس په زید باندې قضا او کفاره دواړه لازم دی یا صرف قضا؟ بینواتوجروا.

المستفتی: عمرخان ډیروی حقانی ډی آئی خان.......... ۲۲/۴/۱۹۷۰ء

**الجواب:** که دَدې پردو باوجود دَفرج دَحرارت احساس کیدو، نو کفاره او قضا دواړه واجب دی، اوکه حرارت نه محسوس کیدو، نوکفاره واجب نه ده، او دَ قضا په وجوب کښې تفصیل دې، یعنی که دَباقی بدن سره لمس بالید یابالفم وغیره نه وی شوې، نو قضا نشته دې، او روژه فاسد شوې نه ده، اوکه لمس شوې وی خوچه په مینځ کښې داسې پرده موجود وی چه دَحرارت احساس منع کوی، نوبیاهم روژه فاسد نه ده، اوکه بالکل پرده نه وی یاپرده دَحرارت احساس نه منع کوی، نوپه دې صورت کښې روژه فاسده او قضا لازم ده.

**فی ردالمحتار ۲:۱۴۲ لو مسها وراء الثیاب فامنی فان وجد حرارة جلدها فسدها ...**

﴿۱﴾ (فتاوی عالمگیریة ۱:۲۰۵ النوع الثانی مایوجب القضاء والکفارة)

والا فلا ﴿۱﴾. وفی الدرالمختار واصل ممسوسة بشهوة ولولشعر علی الرأس بحائل لا یمنع الحرارة ، قال العلامة الشامی ۲: ۳۸۵ فلو کان مانعا لا تثبت الحرمة کذا فی اکثر الکتب وکذا لو جامعها بخرقة علی ذکره انتهیٰ﴿۲﴾. قلت ولا فرق فی الحرمة وسائر الاحکام فافهم. وهوالموفق

## حقه(چیلم) څکل موجب قضا او احتیاطاً موجب کفاره دي

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَرمضان المبارک په میاشت کښې دَچیلم څکلو څه حکم دې؟ صرف قضا به وی یا کفاره هم؟ بینوا توجروا.

المستفتی: فقیراستادبنوں......۳/ذی الحجة ۱۳۸۹ھ.

**الجواب:** په معتاد سړی باندې کفاره او قضا دواړه واجب دی، احتیاطًا، لما فی مراقی الفلاح: وعلی هذا البدعة التی ظهرت الآن وهو الدخان اذا شربه فی لزوم الکفارة ﴿۳﴾. وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۱۳ باب مایفسد الصوم ومالایفسد)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۴ فصل فی المحرمات)

﴿۳﴾ قال الشرنبلالی: واختلفوا فی معنی التغذی قال بعضهم ان یمیل الطبع الی اکله وتنقضی شهوة البطن به وقال بعضهم هو ما یعود نفعه الی اصلاح البدن وفائدته فیما اذا مضغ لقمة ثم اخرجها ثم ابتلعها فعلی القول الثانی تجب الکفارة وعلی الاول لا تجب...... وعلی هذا البدعة التی ظهرت الآن وهو الدخان اذا شربه فی لزوم الکفارة، قال الطحطاوی: قوله فی لزوم الکفارة، حال من البدعة ای البدعة التی حدثت فی لزوم الکفارة علی هذا الاختلاف فمن قال ان التغذی ما یمیل الطبع الیه وتنقضی به شهوة البطن الزم به الکفارة وعلی التفسیر الثانی لا.
(الطحطاوی علی مراقی الفلاح ۱: ۲۶۵ باب مایفسد الصوم وتجب به الکفارة)



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

**فتاوی فریدیه څلورم جلد**

# باب العوارض المبیحة للفطر



.........

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

عن ابی هریرة قال

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم

من افطر یوما من رمضان

من غیر رخصة ولا مرض

لم یقض عنه صوم الدهر کله

وان صامه.

احمد،ترمذی،ابوداؤد،ابن ماجه،دارمی،

والبخاری فی ترجمة الباب

..........



# باب العوارض المبیحة للفطر

## په حالت دَ اضطرار او مرګ ته نزدې سړی د پاره دَ روژې ماتولو حکم

**سوال:** علمائې کرام لاندې ذکرشوو مسائلوپه باره کښې څه فرمائی چه

(۱).روژه ماتول که فرضی وی یا نفلی په حالت اضطرارې کښې دَدې څه حکم دې؟

(۲). که یو سړې په ټوپک یا بل څه آله باندې اوویشتلې شی اودَهغه مرګ یقینی معلوم شی،اوس دا کس روژه نه ماتوی او وائی چه روژې ماتولو سره هسی هم ځان نه بچ کیږی،چه دَروژې په حالت کښې راته مرګ راشی نو بهتر ده.اوس دَ فتوی او تقوی په لحاظ سره دَدې کس څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی:عبدالحمید ایس وی درازنده ډی آئی خان ۱۰/ربیع الثانی ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** (۱). که دې روژه دار دَ تکلیف په حالت کښې خوراک اونکړو او مړ شو نو ګناه ګار به وی.وفی الهندیة ۵:۳۷٤ومن امتنع عن اکل المیتة حالة المخمصة او صام ولم یاکل حتی مات یاثم ﴿۱﴾.

(۲).که خوردنوش ته مضطرنه وی نوده په عزیمت باندې عمل کړې دې ګنې مجرم دې﴿۲﴾.وهو الموفق.

## مسافر ته په روژه کښې اختیار دې البته دَ عدم مشقت په صورت کښې روژه نیول افضل دی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه په دې دور کښې

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمګیریة ۵:۳۳۸ الباب الحادی عشر فی الکراهة فی الاکل)

﴿۲﴾ قال الشرنبلالی: یجوز الفطر لمن حصل له عطش شدید او جوع مفرط یخاف منه الهلاک او نقصان العقل او ذهاب بعض الحواس وکان ذلک لا باتعاب نفسه اذ لو کان به تلزمه الکفارة وقیل لا. (امداد الفتاح شرح نور الایضاح ٦۹۹ فصل فی العوارض کتاب الصوم)

هرقسمه سهولیات مسافرو ته موجود دی، خومسافرته په رمضان کښې روژې معاف دی. اوس که یو مسافر په سفر کښې روژه اونیسی، آیا دا جائز دی؟ بینواتوجروا.

المستفتی: علی گوهر، مسجد قصابان کندی هوتی خیل نوشهره ۱۹۷۴ء/۲/۷

**الجواب:** په هر دورکښې مسافر ته اختیار ورکړې شوې دې. که روژې نیسی اوکه نه نیسی. البته چه دَ مشقت خطره نه وی نو روژه نیول په نسبت دَ نه نیولو نه بهتر دی، ګناه په یو صورت کښې هم نسته دې. (معتبرات فقه) ﴿۱﴾.
وهوالموفق.

## په بل ملک کښې مقیم سړې شرعی مسافر نه دې ځکه روژې دې نیسی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی: مونږ څه کسان ایران ته راغلی یو. دلته سخته ګرمی ده، مونږ دَ یو غیرمسلم په کمپنۍ کښې کار کؤو. زما ملګرو یوه یوه دوه دوه روژې اونیولې باقی ئې پریښودې، او وائی چه په سفر کښې روژې نه نیول هم جائز دی. الحمد لله ما ټولې روژې نیولی دی. آیا په دې سفر کښې مونږ روژې پریښودې شو. او چه روستو ئې اونیسو نو دا صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محبت خان ایران بندرایران........۱۴۰۱/۲/۲۲هـ.

**الجواب:** تاسو هلته مقیم یئ. ددې وجهې نه تاسو شرعی مسافر نه یئ. لهذا تاسو به ټولې روژې نیسې. بغیر ضرورت نه روژه مه ترک کوئ. (شامی) ﴿۲﴾.
وهوالموفق.

---

﴿۱﴾ قال الشرنبلالی: وصومه ای المسافر احب ان لم یضره لقوله تعالیٰ: وان تصوموا خیرلکم (البقرة: ۱۸۴).
(امداد الفتاح شرح نورالایضاح ۶۹۹ فصل فی العوارض المسافر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وعوارض المبیحة لعدم الصوم لمسافر سفرا شرعیاً، قال ابن عابدین: ای مقدرا فی الشرع لقصر الصلاة ونحوه وهو ثلاثة ایام ولیالیها ولیس المراد کون السفر مشروعا باصله ووصفه بقرینة مابعده.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۲۶ فصل فی العوارض)



## روژې نیولو سره په مرض کښې دَ زیات والی په صورت کښې دَ روژې نه نیولو اجازت دې

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی: که یو سړې په داسې بیمارۍ کښې اخته وی چه هغه مهلک او سخته بیماری وی. اوس که دَ رمضان په دوران کښې دوائی استعمال نه کړی نو دَزیات تکلیف ورته راتلۍ شی. بلکه دَمرګ وجه ئې جوړیږی. نو داسې مریض ته څه کول پکاردی؟ بینواتوجروا

المستفتی: نامعلوم........۱۹۷۷ء/۸/۲۶.

**الجواب:** که یو دینداره طبیب یا ډاکټر دې مریض ته دا مشوره ورکړی. چه دې مرض کښې روژه نیولو سره په مرض کښې زیاتوالې راځی. نو دامریض روژه ماتولۍ شی، یعنی دَروژې نیت دې نه کوی، البته باقاعده قضاکول (په شرط دَ صحت) یا فدیه ورکول به لازم وی. (۱). وهوالموفق.

## د دمې مریض د پاره دَ روژې حکم

علمائې کرام دې مسئلې په باره کښې څه فرمائی چه زما عمر تقریباً پنځه اویا (۷۵) کاله دې، دَ اسلامی عبادتونو، مونځ، روژه، زکوة او حج پوره پابندی کوم، تقریباً پنځلس کالو نه دَزکام نه روستو د دمې مستقل مریض جوړ کړم. دګرمۍ په موسم کښې راته لږه ګزاره کیږی، البته په یخنۍ کښې دا مرض نازک صورت اختیاروی، دې نه پس دَزړه په مرض کښې اخته شوم، روزانه دوه درې دورې راباندې دَزړه راځی، چه دې سره مې لاس پښې معذوره شی، بیاپه ناسته باندې مونځ کوم، په دې کال دَ دورو اود مرض

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: او مریض خاف الزیادة لمرضه وصحیح خاف المرض...... بغلبة الظن بامارة وتجربة او باخبار طبیب حاذق مسلم...... الفطر وقضوا ما قدروا بلا فدیة وبلا ولاء، قال ابن عابدین: المریض اذا تحقق الیأس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۲۶، ۱۲۷ فصل فی العوارض)

زیات والی په وجه ډاکټرانو دَ ګرځېدو او روژه نیولو نه منع کړې یم، اوس چه رمضان مبارک نزدې دې، زړه مې غواړی چه روژې اونیسم، او په ختم کښې شریک شم، خو صحت اجازت نه راکوی، اوس زما دپاره شرعی څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: حاجی فضل ربی کوټ اسماعیل زئی مردان.....۴/۸/۱۹۷۷ء

**الجواب:** تاسو دَ روژې نیت کوئ، او دَ دورې راتلو په وخت خوراک او دوائی نه علاوه نورځیزونه (پتې وغیره) سره روژه ماتوئ، دې نه پس دوائی استعمالوئ (۱) او که دوره راتلل یقینی وی، نو روژه مه نیسئ، او بهرحال دَدې روژو قضا صحت یاب کیدو نه پس ضروری ده، او دَ قضانه کولو په صورت کښې دَ مرګ نه پس فدیه ورکول ضروری دی (۲). او کوم مریض چه دَ صحت نه نا امیده وی په ژوند هم فدیه ورکولې شی. (ماخوذ از ردالمحتار) (۳). وهو الموفق.

**مریض ته دَ لاپرواه ډاکټر په هدایت باندې دَ روژې نه نیولو اجازت نشته دې**

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَ شوګر یو مریض دې او دَ کیس بیمار هم دې، دماغی او دَ قوت باه کمزوری هم ورته لاحق ده، یو ډاکټر هغه ته وائی چه روژې مه نیسه، اوس بعض علماؤ ورته دَ نه نیولو وائی او بعض ورته دَ نیولو وائی، تاسو صاحبان تسلی بخش جواب راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملتان خان پلوسه چارسده......۳۱/۷/۱۹۷۵ء.

﴿۱﴾ وفی الهندیة: واذا ابتلع ما لا یتغذی به ولا یتداوی به عادة کالحجر والتراب لا یوجب الکفارة کذا فی التبیین، ولو ابتلع حصاة او نواة او حجرا او مدرا او قطنا او حشیشا او کاغذة فعلیه القضاء ولا کفارة کذا فی الخلاصة.

(فتاوٰی عالمگیریة ۱:۲۰۲ الباب الرابع فیما یفسد وما لایفسد)

﴿۲﴾ یعنی ورثاؤ دپاره چه کله وصیت شوې وی او د ثلث ترکه نه ........(سیف)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: او مریض خاف الزیادة ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**الجواب:** محترم المقام ملتان خان صاحب سلمه الرحمٰن السلام علیکم نه پس دې واضحه وی چه موجوده ډاکټران حضرات زیات طور باندې دَ دین پرواه نه کوی، لهذا تاسو دَ دیندار حکیمانو مثلاً لالاجی صاحب بام خیل (۱) یا متشرع او متدین ډاکټرانو سره مشوره اوکړئ، او بیا دَ هغې موافق عمل اوکړئ (۲). الله تعالی دې تاسو ته صحت نصیب کړی او دَ نیک اعمالو توفیق دې درکړی. وهو الموفق.

(بقیه حاشیه) لمرضه وصحیح خاف المرض...... بغلبة الظن بامارة او تجربة او باخبار طبیب حاذق مسلم مستور...... وقضوا لزومًا ما قدروا بلا فدیة وبلا ولاء......فان ماتوا فیه ای فی ذلک العذر فلا تجب علیهم الوصیة بالفدیة...... ولو ماتوا بعد زوال العذر وجبت الوصیة بقدر ادراکهم عدة من ایام اخر...... قال ابن عابدین: المریض اذا تحقق الیأس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۲۶ تا ۱۳۰ فصل فی العوارض)

﴿۱﴾ دَ دوی پوره نوم مولانا عبدالوارث باچا دې، دوی دَ بام خیل صوابی مشهور علمی او روحانی شخصیت مولانا عبدالقیوم باچا دویم ځوې دې، ۱۹۰۲ء په ورځ دَ زیارت دوی پیدا شو، دوی دَ مولانا عبدالمجید (تلمیذ شیخ الهند) نه تول درس نظامی په تکمیل باندې سند الفراغ حاصل کړو، علم طب ئې هم دَ دوی نه حاصل کړو، او روستو ئې دَ طب سلسله جاری اوساتله، دې نه علاوه طب دَ دوی خاندانی مشغله وه، دَ دوی پلار مولانا عبدالقیوم باچا چه دَ مولانا عبدالحق لالاجی صاحب بام خیل ځوې وو، دَ خپل زمانې مشهور طبیب وو، او روزانه به ئې په سوونو مریضانو علاج کولو، دوی علوم ظاهریه دَ تهند کوئی مولانا حمیدالله صاحب رحمه الله نه حاصل کړې وو، او دَ خپل پلار نه په طریقه قادریه کښې بیعت وو، دوی په ۱۹ ستمبر ۱۹۳۹ د پیر په ورځ وفات شو، او په باجا کښې دَ خپل والد صاحب سره خوا کښې دفن کړو، مولانا عبدالوارث باچا دَ دوی دویم ځوې وو، او دَ خپل والد صاحب د خلیفه مولانا صفی الله نه دوی ته خلافت حاصل وو، ۵/ستمبر ۱۹۸۵ء باندې دَ زړه په دورې راتلو سره دَ دوی وفات اوشو، په اولاد کښې ئې ډاکټر عبدالبدیع باچا دَ زړه دَ مرض ډاکټر، ډاکټر عبدالصمد باچا ایم ډی (امریکه) کراچی او ډاکټر عبدالاحد باچا حیات دې. دَ دوی تذکره دَ مشاهیر علمائې سرحد او شرح اسماء الحسنی قلمی از مولانا محمد زاهد ابوالوفا افغانی نه اخستلې شوې ده.............از مرتب.

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: او مریض خاف الزیادة......(باقی حاشیه په بله صفحه)

## دَ هائی بلډپریشر مریض دپاره دَ روژې مسئله

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو کس دَهائی بلډ پریشر مریض دې، ډیرو علماؤ هغه ته دَروژې نه نیولو مشوره ورکړې ده، ځکه چه بغیر اوبو ځکلو دَده مرض زیاتیږی، عمرئې تقریباً اتیا(۸۰) کاله دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: مرزاخمی جگرسرډهیرئی چارسده.......۱۹۷۹ء/۲۵/۷.

**الجواب:** تاسو نه روزانه کمزورې کیږې اونه دَصحت نه مایوس یئ، تاسو په ژوند کښې فدیه نشې ورکولې،

**کما فی ردالمحتار ۲:۴۳۷ قوله وللشیخ الفانی العاجز عن الصوم الفطر ویفدی ای الذی فنیت قوته او اشرف علی الفناء ولذا عرفوه بانه الذی کل یوم فی نقص الی ان یمیت نهر، ومثله فی القهستانی عن الکرمانی المریض اذا تحقق الیأس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض﴿۱﴾ قلت المراد من المریض العاجز عن الصوم،** البته که دَروژې په وجه ستاسو مرض زیاتیږی، دَتجربې وغیره نه دا ثابت وی، نو تاسو روژه ماتولئ شې. کمافی شرح التنویر، اومریض خاف الزیادة لمرضه الخ

---

**(بقیه حاشیه) لمرضه وصحیح خاف المرض...... بغلبة الظن بامارة او تجربة او باخبار طبیب حاذق مسلم مستور الخ.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۲۶ فصل فی العوارض)**

**﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۳۰ فصل فی العوارض)**

**﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: او مریض خاف الزیادة لمرضه وصحیح خاف المرض...... بغلبة الظن بامارة او تجربة او باخبار طبیب حاذق مسلم مستور.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۲۶ فصل فی العوارض)**



او په ژوندباندې فدیه نشې ورکولې، بلکه قضابه ئې راؤړئ. او دَ قضانه کولو په صورت کښې به دَ فدیې دپاره وصیت کوی﴿۱﴾. وهوالموفق.

## دَ روژې نه نیولو دپاره دَ مرض دَ زیاتوالی ظن غالب شرط دې، محض توهم او خطره نه

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی: یو سړې بیمار دې روژې نیولو سره ئې دَتکلیف زیاتیدو خطره ده، داسې سړی دپاره شرعی حکم څه دې؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمداقبال اوورسیرپاک پی ډبلیوډی کوهاټ ۱۹۷۲ء/۱۰/۱۰

**الجواب:** واضحه دې وی چه فقهائې کرامو په مرض کښې دَزیاتوالی په وجه باندې دَ روژې ماتولو اجازت ورکړې دې، په شرط دَدې چه دا زیاتوالی یقینی وی، صرف توهم او خطره نه﴿۲﴾. تاسو که دَیخنئ په موسم کښې دَ ماښام نه نمر راختلو پورې بغیرخوراک نه وخت تیرولئ شې، نو په دې ورځو هم دَنمر راختلو نه تردَنمرډوبیدو پورې وخت تیرولئ شې. وهوالموفق.

## د غیر متدین ډاکټرانو په مشورې سره روژه نه نیول دَ شریعت خلاف دی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی: زه په ۱۹۶۵ء کښې دَ

---

**﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وقضوا لزوما ما قدروا بلا فدیة...... فان ماتوا فیه ای فی ذلک العذر فلا تجب علیهم الوصیة بالفدیة...... ولو ماتوا بعد زوال العذر وجبت الوصیة بقدر ادراکهم عدة من ایام اخر.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۲۷ فصل فی العوارض)**

**﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (وصحیح خاف المرض) ای بغلبة الظن کما یأتی فما فی شرح المجمع من انه لا یفطر محمول علی ان المراد بالخوف مجرد الوهم کما فی البحر.**

**(ردالمحتار هامش الدر المحتار ۲:۱۲۶ فصل فی العوارض)**

تی بی مریض ووم. دَ کال ۱۹۷۹ء پورې مې په بیمارئ کښې روژې اونیولې، دې نه پس مې بیمارې زیاتیده، تردې چه په ناسته باندې مونځ کولو نه هم لاچار شوم، او وینه هم راته راتله، ۱۹۸۰ء پورې مې روژې اونه نیولې، بیا مې ډاکټرنه دَدې دَقضا په باره کښې تپوس اوکړو، نو اجازت راته ملاؤ نه شو، په سن ۱۹۸۰ء کښې مې بیا ایکسره اوکړه، نو صفا وه، خو دَ روژو اجازت راته ملاؤ نه شو، اوس په دې کال راته بیا دَ روژو اجازت ملاؤ نه شو، اوس (۱). زه دَ ډاکټر په مشوره باندې عمل اوکړم او که روژې اونیسم (۲). دَ تیرشوو دوو کالو فدیه ورکړم یا وصیت اوکړم؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد رفیق ډپټی ډائریکټر ایگریکلچر پیښور...۱۴۰۱/۷/۲۱ھ

**الجواب:** اکثر دَموجوده ډاکټرانو په زړه کښې دَدین اهمیت کم وی، لهذا صرف دَهغې ډاکټرانو دَمشورې په وجه باندې روژې نه نیول دَشریعت خلاف دی ﴿۱﴾ البته تاسو څه روژې اونیسې، اوتحری اوکړئ، که دَمرض دَزیاتوالی ظن غالب وی نو روژې مه نیسئ، اوتاسو بهرحال صحت مند کیږئ، اومرض په خپل ځائی ولاړ نه دې، نو تاسو په ژوند باندې فدیه نشې ورکولې ﴿۲﴾. وهوالموفق.

## روژه دَ عادل ډاکټرپه مشورې یا دَ تجربې په بنیاد باندې نیول نه دی پکار

**سوال:** علمائې دین څه فرمائی دې مسئلې باره کښې: چه یو سړې مثلاً دَ

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله طبیب حاذق مسلم مستور) وقیل عدالته شرط وجزم به الزیلعی وظاهر مافی البحر والنهر ضعفه، قلت واذا اخذ بقول طبیب لیس فیه هذه الشروط وافطر فالظاهر لزوم الکفارة کما لو افطر بدون امارة ولا تجربة لعدم غلبة الظن والناس عنه غافلون. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۲۶ فصل فی العوارض)

﴿۲﴾ قال الشیخ عبد الله بن المودود الموصلی: وان صح واقام ثم ما تالزمهما القضاء بقدره لانهما بذلک القدر ادرکا عدة من ایام اخر.

(الاختیار لتعلیل المختار ۱:۱۷۳ فصل فی المریض والمسافر)



مالیخولیاوغیره په مرض کښې اخته دې چه په دې کښې دَډاکټرانو په مشورې باندې به هروخت اوبه څکې، آیا داسې کس روژه نیولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حکم خان سرخ ډهیرئی مردان........۱۴۰۱/۷/۱۵ھ

**الجواب:** که یو ماهر عادل ډاکټر تاسو ته مشوره درکړی، چه ستاسو دپاره روژه نیول نقصانی ده، نو تاسو ته دَروژې نه نیولو اجازت دې، خو موجوده ډاکټرانو کښې عادل ډاکټر دکوم ځائې نه راوستلې شی، بهرحال روژه دَبرکت والا عبادت دې، پس دَتجربې په بنیاد باندې نه نیول دَشریعت یوقدم دې، اودَ ډاکټرانو په مشورې باندې عمل کول دَایمان کمزورې ده ﴿۱﴾. وهوالموفق.

## معدوم المال والنفقه او مجبوردهقان په رمضان کښې روژه نه نیولو سره مزدوری کولې شی؟

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه یو زمیندار یو سړی ته هزار روپې دَدهقانئ دپاره ورکړې، زمکه اوچیدو ته نزدې وه، زمیندار هغه ته اووئیل چه په رمضان کښې ئې ګوډ کړه، ګینې دَدهقانئ نه به دې معزول کړم، اوس که هغه په رمضان کښې ییوه (هل) چلوی، نو دَ تندې دَوجې نه دَمرګ خطره ده، هغه ته یو مفتی صاحب فتوی ورکړه چه ستادپاره دَ اولنئ ورځې نه روژه نه نیول جائز دی. آیا دا صحیح دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: محمد خان حقانی لورالائی بلوچستان......۱۹۷۸ء/۱۰/۹.

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: او مریض خاف الزیادة لمرضه وصحیح خاف المرض...... بغلبة الظن بامارة او تجربة او باخبار طبیب حاذق مسلم مستور. (قال العلامة ابن عابدین): وقیل عدالته شرط وجزم به الزیلعی وظاهر ما فی البحر والنهر ضعفه، قلت واذا اخذ بقول طبیب لیس فیه هذه الشروط وافطر فالظاهر لزوم الکفارة کما لو افطر بدون امارة ولا تجربة لعدم غلبة الظن والناس عنه غافلون. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۲۶ فصل فی العوارض)

**الجواب:** که دا دهقان عدیم المال او عدیم النفقه وی. او دَشپې په وخت کښې ئې په زمیندارئ کولو باندې وس نه وی. مختصر دَورځې په اولنۍ حصه کښې ئې بوې چلولو سره مقصد نه پوره کیږی او په زیات کار کولو سره ئې مرګ واقع کیږی. نو دا دهقان روژه ماتولې شی.

کما فی ردالمحتار ۲: ۱۵۷ ولکن لو آجر نفسه فی العمل مدة معلومة فجاء رمضان فالظاهر ان له الفطر وان کان عنده ما یکفیه اذ لم یرض المستاجر بفسخ الاجارة کما فی الظئر فانه یجب علیها الارضاع بالعقد ویحل لها الافطار اذا خافت علی الولد فیکون خوفه علی نفسه اولیٰ تامل ﴿۱﴾، قلت ولما کانت الاجارة اجارة مذکورة فی السوال فاسدة فجاز له الفسخ بلا رضاء رب الارض فلذا ذکرت قید کونه عدیم المال والنفقة. وهو الموفق

## په رمضان کښې دَ بیمارۍ زیاتیدو په صورت کښې دَ روژې ماتولو حکم

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی! چه په رمضان کښې یو کس سخت بیمار شو او ډاکټرهم ورته او وئیل چه که روژه دې ماته نکړه نو بیماری دې خطرناک شکل اختیارولئ شی. آیا دا سړې روژه ماتولې شی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محبوب الرحمٰن سول بازار کیمل پور........ ۱۹۶۹ء/۴/۲۹.

**الجواب:** په دې حالت کښې روژه ماتول جائز دی، خو په شرط دَدې چه دا خطره مثلا تجربه یا دَمسلمان غیرفاسق ډاکټر په خبر باندې وی، توهم باندې نه وی،

فی الهندیة ۱: ۲۱۹ المریض اذا خاف علی نفسه التلف او ذهاب عضو یفطر بالاجماع وان خاف زیادة العلة وامتداده فکذلک عندنا وعلیه القضاء اذا افطر کذا فی المحیط ثم معرفة ذلک باجتهاد المریض والاجتهاد........

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۲۵ قبیل فصل فی العوارض)



غیر مجرد الوهم بل هو غلبة الظن عن امارة او تجربة او باخبار طبیب مسلم غیر ظاهر الفسق ﴿۱﴾. وهو الموفق

## شرعی مسافر او مریض عاجز چه دَ روژې نیولو وس نه لری، هغه ته دَ روژې نه نیولو اجازت دې

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه دَقرآن پاک آیت (وان کنتم مریضا اوعلی سفر) الآیة، کښې کوم یو سفر او کومه بیماری مراد ده، چه په هغې کښې روژه نه نیول جائز وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: محمد طیب سخاکوټ ملاکنډ ایجنسی...... ۱۲/شوال ۱۴۰۴ه.

**الجواب:** دَهرشرعی مسافر دپاره روژه نه نیول جائزدی. او هرمریض روژه نشی ماتولې، صرف هغه مریض ته دَروژې نه نیولو اجازت دې کوم مریض چه دَ روژې نیولو طاقت نه لری یا په روژه نیولو سره ئې بیماری زیاتیږی. قضا په دواړه باندې باقاعده واجب ده. (ماخوذازشامی) ﴿۲﴾. وهوالموفق

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۲۰۷ الباب الخامس فی الاعذار التی تبیح الافطار)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: لمسافر سفرا شرعیا ای مقدراً فی الشرع لقصر الصلاة ونحوه وهو ثلاثة ایام ولیالیها...... او مریض خاف الزیادة او ابطاء البرء او فساد عضو...... وصحیح خاف المرض ای بغلبة الظن بامارة او تجربة او باخبار طبیب حاذق مسلم مستور. (ردالمحتار مع الدرالمختار ۲: ۱۲۶ فصل فی العوارض)

........

# باب الفدية

**دَ ټول رمضان فدیه تقریباً (په انګریزی سیر باندې) یونیم من غنم دی**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی! زه دَیو سید خاندان ډاکټرنه علاج کوم، او دَمونځ روژې پابند سړې یم. دَدې ډاکټرمطابق ماروژې اونه نیولې، اودابیماری مسلسل ده. اوس به دَدیرشوروژو څومره فدیه ادا کوم؟ بینوا توجروا.

المستفتی: شمشیرخان حاجی زئی شبقدر............۲۸/۱۰/۱۹۷۵ء

**الجواب:** که تاسو دَصحت یابی نه نااُمیده یئ، نوتاسو دَیوې روژې دوه سیره غنم ورکړئ، په دې حساب سره دَرمضان فدیه ۲x۳۰=۶۰ یعنی انګریزی یونیم من غنم جوړیږی ﴿۱﴾. وهو الموفق.

**دَ روژې دَ فدیې مقدار او په مختلفو مسکینانوکښې دَ تقسیم مسئله**

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی! زما دَمور دَخیټې اپریشن په رمضان کښې اوشو. چه دَهغې په وجه ئې ټولې روژې اونه نیولې. اوس ئې صحت صحیح دې. خودَروژو نیولو طاقت نه لری. اوس که فدیه ورکوی نو دَ دې مقدار به څه وی، اویو مسکین ته فدیه ورکولې شی یا

﴿۱﴾ قال الدکتور وهبة الزحیلی: واما الفدیة عند الحنفیة نصف صاع من برای قیمته بشرط دوام عجز الفانی والفانیة الی الموت ومد من الطعام من غالب قوت البلد عن کل یوم عند الجمهور بقدر ما فاته من الایام...... وتجب الفدیة ایضا بالاتفاق علی المریض الذی لا یرجی برؤه لعدم وجوب الصوم علیه.

(الفقه الاسلامی وادلته ۳:۱۷۴۳ المطلب الثالث الفدیة)



نه؟ یعنی په ډیرو مسکینانوکښې به ئې تقسیمول وی؟ بینوا توجروا.

المستفتی: عصمت خان c/o شیخ زرین کبابی

صدر بازار رسالپور چهاؤنی نوشهره.....۲۸/۱/۱۹۷۹ء

**الجواب:** دَقوت او استطاعت ساتلوپه صورت کښې پرې قضاواجب ده. اوپه دې صورت کښې دَقضانه کولو نه روستوفدیه یعنی پاؤکم دوه سیره (انګریزی) غنم دَیوې روژې په بدله کښې ورکول ضروری دی. اوچونکه کفاره دَفطر او ظهار یو شان ده. لهذه کفاره فطرکښې یومسکین ته په یوه ورځ کښې ډیرې کفارې به نه ورکولې کیږی. بې شک په بیله بیله ورځ کښې یوه یوه کفاره ورکول کافی ده.

**فی الخلاصة کفارة الفطر و کفارة الظهار واحدة ﴿۱﴾ ولو اعطی مسکینا واحدا کله فی یوم واحد لا یجزیه الاعن یومه ذلک وهذا فی الاعطاء بدفعة واحدة من غیر خلاف اما اذا ملکه بدفعات فقد قیل یجزیه وقیل لا یجزیه الاعن یومه ذلک وهو الصحیح (۱:۵۳۸ هندیة) ﴿۲﴾.فقط**

**شیخ فانی یادَ صحت نه چه مایوس نه وی نوفدیه ورکول بې قاعدې دی**

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی! امانه دَرمضان اووه(۷) روژې پاتې شوی دی. باقی روژې ما اونیولې. اوس زه مسکینانوباندې په روژه کښې روتېئ خوړل غوارم، خودَاوړو دګرانئ په وجه باندې دا کار مشکل دې. آیا اوس دَرقم په حساب سره ورکولئ شم؟ بینوا توجروا.

المستفتی: شیرمحمد قریشی پیبنور.

**الجواب:** تاسو نه شیخ فانی یئ اونه دَصحت نه مایوس یئ. لهذا ستاسو دپاره په ژوند کښې فدیه ورکول بې قاعدې کاردې، تاسو چه کله صحت یاب شې،

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۱۵ المتفرقات مطلب بیان الکفارة)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۵۱۳ الباب العاشر فی الکفارة)

نو قضابه کوئ، اوفی الحال په وصیت نامه کښې دَدې ذکر اوکړئ.﴿۱﴾ وهوالموفق.

## دَ فدیې وس چه نه لري هغه سړې دې استغفار وائی

**سوال:** علمائې دین دې مسئلې باره کښې څه فرمائی!یو سړې دَلس کالونه بیمار پروت دې. چه هغه (تقریباً) دَ اتیاؤ (۸۰) کالو دې او ډیرسخت غریب دې. دَهغه دَآمدنئ څه مستقل ذریعه نشته. دَهغه یو ځوې روزانه مزدوی کوی اودَخپل بال بچ اودَپلارصاحب کفالت کوی. او دا سړې قرض دارې هم دې. په دې صورت کښې به دَداسې سړی دَ فدیې څه کیږی؟ بینواتوجروا.

المستفتی: محمدریاض جهګړا ایبټ آباد........۲۰/۱۲/۱۹۷۱ء.

**الجواب:** که دامریض معمراومعسردې. دَصحت یاب کیدونه نااُمیده وی، نو دَهغه دپاره استغفارکافی دې.

**یدل علیه مافی الدرالمختار وللشیخ الفانی العاجز عن الصوم الفطر ویفدی وجوبا ولو فی اول الشهر وبلاتعدد فقیر کالفطرة لو موسرا والا فیستغفر الله، (وفی ردالمحتار ۲: ۱۶۳) المریض اذا تحقق الیأس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض انتهیٰ فافهم﴿۲﴾. وهوالموفق**

## دَ ګردې مریض چه وس نه لری نو فدیه ورکولئ شی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی چه زماګرده دَپنځلس

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله وللشیخ الفانی العاجز عن الصوم الفطر ویفدی وجوبا) لان عذره لیس بعرضی للزوال حتی یصیر الی القضاء فوجبت الفدیة نهر ثم عبارة الکنز وهو یفدی اشارة الی انه لیس علی غیره الفداء لان نحو المرض والسفر فی عرضة الزوال فیجب القضاء وعند العجز بالموت تجب الوصیة بالفدیة.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۳۰ فصل فی العوارض)**

**﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۳۰ فصل فی العوارض)**



شل کالونه خرابه ده، اودویمې ګردې ته هم مرض لګیدلې دې، ماپه لندن کښې دَدې اپریش اوکړو، اودګردې دریمه حصه ئې رانه کټ کړه، اوس زه دَ روژې طاقت نشم لرلئ، ډاکټرانو راته وئیلی دی چه روزانه تاسو کم ازکم دولس ګلاسه اوبه څکئ، نوآیازه دَرمضان فدیه ورکولئ شم؟ بینواتوجروا.

المستفتی: حاجی محمدرحیم متنی پیښور......یکم ربیع الاول ۱۴۰۲ھ.

**الجواب:** تاسوتجربه اوکړئ چه دَاوبه نه څکلونه ستاسوپه تکلیف کښې زیاتوالې کیږی، پس که دَتجربې په طوربانډې معلومه شوه چه په ښکاره طوربانډې په تکلیف کښې زیاتوالې راځی، نوداتجربه هم اوکړئ چه په دومره مقداراوبه دَ شپې په وخت پوره کولوسره کفایت کیدې شی اوکه نه، که کفایت نه کیږی اوستاسو وس وی، اویخې علاقې ته تلئ شې، اوبیادرته تکلیف نه وی، نوتاسوفدیه نشې ورکولئ﴿۱﴾. په صورت دَعکس که استطاعت نه وی نوورکولئ شې﴿۲﴾. وهوالموفق.

## بیمار د پاره دَ روژو فدیه. دَ فدیې مقدار اودَ فدیې دَ وخت مسئله

**سوال:** دې مسئلې باره کښې علمائې کرام څه فرمائی! په ماباندې تقریباً دَلس کالونه پیریان دی، اول طاقتور ووم، اوس کمزورې شوې یم، دَلوږې تندې په وجه مسلسل راباندې دَپیریانو دورې راځی، اوصحت مې خرابیږی. په دې وجه باندې مادې ځل شپږویشت روژې (۲۶) روژې اوخوړلې، بیاهم په

**﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وصحیح خاف المرض بغلبة الظن بامارة او تجربة او باخبار طبیب الخ، قال ابن عابدین: ای بغلبة الظن فما فی شرح المجمع من انه لا یفطر محمول علی ان المراد بالخوف مجرد الوهم کما فی البحر.**

**(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۲۶ فصل فی العوارض)**

**﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: المریض اذا تحقق الیأس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۳۰ فصل فی العوارض)**

کټ کښې پروت ووم؟ بینواتوجروا.

المستفتی:صاحبزاده سټیشنری کلرک پولیس لائن پېښور......۱۹۷۹ء

**الجواب:** تاسو به دَبیمارئ نه د صحت یاب کېدونه روستوقضا کوئ.او دَ قضا نه راؤړلوپه صورت کښې به فدیه ورکوئ.دَفدیې مقدارپه انګرېزی سیر پاؤکم دوه سیره غنم یا دَدې قیمت دې.اودَورکولو وخت دَشیخ فانی کېدو وخت دې.یادَژوندنه دَنااُمیدې وخت دې یا دَمرګ نه پس﴿۱﴾.﴿۲﴾. وهوالموفق

## دَ شل کالو نه روژه او دَ مونځ نه کولو والا دَ قضا او فدیې طریقه

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی ! مادَ شل کالونه روژه او مونځ نه دې ادا کړې.دَدې قضا به په څه طریقې سره ادا کوم؟ بینواتوجروا.

المستفتی: حاجی محمدرضا بازار دره ادم خیل کوهاټ....۱۴۰۱ھ/۷/۲۰

**الجواب:** دا سړې دې توبه او استغفار کوی اودَموځ او روژو قضا دې اوکړی، او څومره روژې چه دَ ده په ذمه باندې باقی پاتې شوې دَهغې متعلق دې دَ فدیې وصیت اوکړی﴿۳﴾.البته دَشیخ فانې په صورت کښې په ژوند کښې هم

﴿۱﴾ قال الشیخ عبد الله الموصلی الحنفی: ومن خاف المرض او زیادته افطروالمسافر صومه افضل ولو افطر جاز فان ماتا علی حالهما لاشیئ علیهما وان صح واقام ثم ماتا لزمهما القضاء بقدره ویوصیان بالاطعام عنهما لکل یوم مسکینا کالفطرة.

(الاختیار لتعلیل المختار ۱۷۳ فصل فی المرض والمسافر)

﴿۲﴾ (قال فی الهندیة: والاصل فیه ان کل صوم اذا کان اصلا بنفسه ولم یکن بدلا عن غیره جاز الاطعام بدلا عنه اذا وقع الیأس عن الصوم الخ.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۰۷ الباب الخامس فی الاعذار التی تبیح الافطار)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله ولومات وعلیه صلوات فائتة) ای بان کان یقدر علی ادائها ولو بالایماء فلیزمه الایصاء بها والا......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



فدیه ورکولئ شی.(شامی)﴿۱﴾.وهوالموفق.

## شیخ فانی دې فدیه ورکوی اودَ وس نه لرلو په وجه دې استغفارکوی

**سوال:** علمائې کرام دې مسئلې باره کښې څه فرمائی! زما عمرتقریباً سل کاله دې.مالی حالت مې ډېر کمزوې دې.خیرات اوصدقاتو سره مې قوت لایموت (ګزاره) کیږی پخپله هیڅ کارنشم کولئ.بچی مې هم نشته.په تیر کال مې معمولی کارسره دَپښۍ هډوکې مات شو.شپږمیاشتې مسلسل په کټ کښې پروت ووم.اوس دَ ډانګورو په مدد سره ګرځم راګرځم.اوس روژې نیول زمادپاره ډېرې سختې دی.لهذا زماپه باره کښې دَشریعت څه حکم دې؟ بینوا توجروا.

المستفتی: ګل رحیم باغ ارم مردان......۱۹۷۵ء/۶/۵

**الجواب:** که تاسوته په تجربې سره معلومه وی چه تاسوروژه ترماښام پورې نشې پوره کولئ نوتاسو دَشیخ فانئ په وجه سره روژه مه نیسئ.اودَ هرې روژې دپاره پاؤکم دوه سیره دَانګرېزی سیرپه مقدارغنم یا دَدې قیمت ورکوئ.اوکه دَدې فدیئ وس هم نه وی نو استغفار کوئ.(ماخوذ از ردالمحتار)﴿۲﴾.وهوالموفق.

(بقیه حاشیه) فلا یلزمه. (ردالمحتار ۱ : ۵۴۱ مطلب فی اسقاط الصلاة)

وقال الحصکفی: واما من افطر عمدا فوجوبها علیه بالاولیٰ وفدی لزوما عنه ای عن المیت ولیه الذی یتصرف فی ماله کالفطرة قدرا بعد قدرته علیه ای علی قضاء الصوم.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۲۸ فصل فی العوارض)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وللشیخ الفانی العاجز عن الصوم الفطر ویفتدی وجوبا ولوفی اول الشهر. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۳۰ فصل فی العوارض)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وللشیخ الفانی العاجز عن الصوم الفطر ویفدی وجوبا ولوفی اول الشهر وبلا تعدد فقیر کالفطرة لوموسرا والا فیستغفر الله.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۳۰ فصل فی العوارض)

## همیشه په مرض کښې پروت بیمار فدیه ورکولئ شي

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه زما پلارمحترم اپریشن کړې دې چه ددې په وجه هغه مسلسل د سلسل البول مریض جوړ شوې دې،د سترګو نظر ا و حافظه ئې دومره کمزورې شوې ده چه په مانځه کښې د رکعاتو تعدادهم یاد نه شی ساتلې. په دې صورت کښې هغه فدیه ورکولې شی یا نه؟ او د احنافو په مذهب کښې به فدیه څنګه اداکوی او مونځ به څنګه کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: میاں بشیرالدین موسسة الهنون مدینة المنوره ۱۴۰۱/۷/۲۲ھ

**الجواب:** ستا پلارمحترم که د روژو نیولو طاقت نه لری او ورځ په ورځ کمزورې کیږی نوهغه فدیه ورکولې شی یعنی دهرې روژې بدله احتیاطاً دوه انګریزی سیره غنم یا ددې قیمت مسکین ته ورکوی،(شامی) ﴿۱﴾ اود مونځ کولو په وخت څوک خادم وغیره دده سره کینی او ورته دې یادوی﴿۲﴾ او فرض دې په شرط دطاقت سره په ولاړه کوی﴿۳﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: المريض اذا تحقق اليأس من الصحة فعليه الفدية لكل يوم من المرض.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۲۶ فضل فی العوارض)

﴿۲﴾ وفی الهندية: مصل اقعد عند نفسه انسانا فيخبره اذا سها عن ركوع او سجود يجزيه اذا لم يمكنه الا بهذا كذا فی القنية.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۱۳۸ قبیل صلاة المسافر)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفی: وان قدر على بعض القيام ولو متكئا على عصا او حائط قام لزوما بقدر مايقدر ولو قدر آية او تكبيرة على المذهب لان البعض معتبر بالكل وان تعذرا لا القيام اومأ قاعدا.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۱:۵۶۰ باب صلاة المريض)



## په فدیه کښې مسکینانو ته د دوه وخته روټئ خوړلو په صورت کښې نقد قیمت کافی نه دې

**سوال:** څه فرمائی علمائې دین دې مسئلې باره کښې چه مانه دوه روژې قضا شوې دی اوس زما خیال دې چه دوه مسکینانوته یوسل شل وخته خوراک اورخروم آیا دا صورت صحیح کیدې شی؟ یا آسان صورت خودلو سره راته د شکریه موقعه راکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرشید یو اې ای دوبئ ....۱۲۵ شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په فدیه اداکولو کښې ضروری ده چه یا هرمسکین ته نیمه څټاکئ دپاسه دوه سیره (انګریزی) غنم یا ددې قیمت ورکړې شی ﴿۱﴾ اود خوراک ورکولو په صورت کښې دوه وخته خوراک ورکول ضروری دی د خوراک نقد قیمت ورکول کافی نه دې ﴿۲﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ككفارة المظاهر) مرتبط بقوله وكفر ای مثلها فی الترتيب فيعتق اولا فان لم يجد صام شهرين متتابعين فان لم يستطع اطعم ستين مسكينا لحديث الاعرابی المعروف فی الكتب الستة.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۱۹ مطلب فی الكفارة)

نوټ:......د فطرانې د مقدار تفصیل ددې فتاوې په دریم جلد ص ۵۰۲ باب صدقة الفطر کښې اوګورئ.

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: فان عجز عن الصوم اطعم ستين مسكينا كالفطرة قدرا ومصرفا او قيمة ذلك من غير المنصوص اذ العطف للمغائرة وان اراد الاباحة فغداهم وعشاهم. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲:۲۳۳ باب الكفارة)

..........

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه څلورم جلد

# باب الاعتکاف



..................



بسم الله الرحمن الرحیم

قال الله تبارک وتعالی:

ثم اتموا الصیام الی اللیل، ولا تباشروهن وانتم عٰکفون فی المسٰجد.

.......[البقرة: ۱۸۷].........

...........

# باب الاعتكاف

## سګريټ يا چيلم څکلو د پاره به معتکف د جمات نه بهرنه ؤځی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه که معتکف د سګريټ يا چيلم څکلوعادی وی، نو آيا هغه به ددې دپاره د جمات نه بهر ؤځی؟ بينوا توجرو.

المستفتی: نامعلوم ۱۰/۸/۷۲

**الجواب:** سګريټ او چيلم څکل د طبعی حاجتونو نه نه دی، ددې وجه نه دې دپاره به د جمات نه بهر نه ؤځی، البته ددې اجازت دې چه جمات کښې دې اودريږی او سردې بهر ؤباسی او لوګې د بهر پوک وهی.﴿۱﴾ لان الاعتبار للاقدام دون الراس ﴿۲﴾

﴿۱﴾ سګريټ څکل او چيلم څکل د کراهت نه خالی نه دې، او د بدبو په وجه ددې په جمات کښې څکل هم مکروه دې، ليکن دا ممنوع شرعی دې، ممنوع اعتکاف نه دې.
کما يدل عليه عبارة الهندية: واذا سكر المعتكف ليلا لم يفسد اعتكافه لانه تناول محظور الدين لا محظور الاعتكاف كما لو اكل مال الغير.(فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۲۱۳ باب الاعتكاف)
لهذا که د عادی سړې حاجت زيات شی، نو د تطبيق هم دا صورت دې، چه د جمات په احاطه کښې دې اودريږی او لوګې د بهر پريږدی، او خولهٔ دې صفا کړې او سر دې دننه کړی،
لان الاعتبار للاقدام دون الرأس كما يدل عليه عبارة الهندية: ولا بأس ان يخرج رأسه الى بعض اهله ليغسله كذا فى التتارخانية. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۲۱۳ بيان مفسدات الاعتكاف) ......(ازمرتب)

﴿۲﴾وفى المنهاج: اعلم ان المعتكف لا يخرج من المسجد لشرب الدخان فالاليق ان يمكث فى المسجد ويخرج رأسه منه لان الاعتبار للاقدام دون الرأس.
(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذى ۴:۷۴ باب المعتكف يخرج لحاجته ام لا)



## د سخت ضرورت په وجه د اعتکاف پريخودلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه که يو سړې د خپل اهل عيال د بيمارئ په وجه يا ناګهانی حادثې په وجه اعتکاف پريږدی.نو دا جائز دی او که نه؟

المستفتی: عبدالعزيز طوره وړئ کوهاټ

**الجواب:** د يقينی خطرې په وجه اعتکاف پريخودل جائز دی، پس معتکف چه په داسې حالت کښې د معتکف نه بهر ؤځی، نو اعتکاف فاسد شو.البته ګناه ګار به نه وی، ماخوذ از ردالمحتار ودر مختار ﴿۱﴾.وهو الموفق.

## د محلې په هرجمات کښې د اعتکاف مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه په رمضان کښې د محلې په هرجمات کښې اعتکاف مسنون دې، يا صرف په يو کښې؟ بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** اعتکاف په عشره اخيره کښې مسنون على الكفايه دې،
لكن انه لم يذكر فى رواية الاعتكاف فى سوى المسجد النبوى فى عهده ﷺ
وهو يشير الى انه يكفى اعتكاف شخص واحد من البلدة لكن التشبيه للاعتكاف بالتراويح مشيرا الى انه مسنون لاهل ..............

﴿۱﴾قال العلامة الحصكفى: واما ما لايغلب كانجاء غريق وانهدام مسجد فمسقط للاثم لا للبطلان والا لكان النسيان اولىٰ بعدم الفساد، وقال العلامة ابن عابدين: حيث جعل الخروج لعيادة المريض والجنازة وصلوتها وانجاء الغريق والحريق والجهاد اذا كان النفير عاما واداء الشهادة مفسدا بخلاف خروجه الى مسجد آخر الخ.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۴۵ باب الاعتكاف)

کل مسجد من البلدة فافهم وليرجع الى ردالمحتار ﴿١﴾. وهوالموفق

## د اعتکاف په دوران کښې په جمات کښې دنیاوی خبرې وغیره کول مکروه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه د اعتکاف دوران کښې جمات کښې ګپ شپ لګول او دنياوى خبرې کول څنګه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي : عبد الرحمٰن اچهره لاهور شهر ٨/٩/٨٧

**الجواب:** دا عمل مکروه دې﴿٢﴾، د اعتکاف دوران کښې د عباداتو خاص خيال ساتل ضرورى دى﴿٣﴾، وهو الموفق

---

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله سنة على الكفاية) نظيرها اقامة التراويح بالجماعة فاذا قام بها البعض سقط الطلب عن الباقين.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ١٤١ باب الاعتكاف)

قال العلامة ابن عابدين: وهل المراد انها سنة كفاية لاهل كل مسجد من البلدة او مسجدواحد منها او من المحلة ظاهر كلام الشارح الاول واستظهر الثانى ويظهرلى الثالث لقول المنية حتى لو ترک اهل محلة كلهم الجماعة فقد تركوا السنة واساؤا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ١: ٥٢١ مبحث فى التراويح)

﴿٢﴾ قال العلامة ابن عابدين: يكره للمعتكف التكلم بالمباح بخلاف غيره اى غير المعتكف...... والمراد ما يحتاج اليه من امر الدنيا اذا لم يقصد به القربة والا ففيه ثواب...... انه مكروه اى اذا جلس له كما قيده فى الظهيرية ذكره فى البحر وفى المعراج عن شرح الارشاد لا بأس بالحديث فى المسجد اذا كان قليلا فاما ان يقصد المسجد للحديث فلا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ١٤٧ قبيل مطلب فى ليلة القدر)

﴿٣﴾ قال العلامة النظام: (المعتكف) يلازم التلاوة والحديث والعلم وتدريسه وسير النبى صلى الله عليه وسلم والانبياء عليهم السلام واخبار الصالحين......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د دکانونو د پاسه جوړ شوې جمات کښې د اعتکاف مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه کوم جمات په بازار کښې د دکانونو د چت دپاسه جوړ شوې وى. اوخلق په هغې کښې پنځه وخته مونځ کوى، آيا په هغې کښې د اعتکاف دپاره کښيناستل پکار دى او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي : نامعلوم

**الجواب:** کوم جمات چه مملوک غير موقوف دکانونو باندې جوړ شوې وى. هغه مسجد عرفى دې. مسجد شرعى نه دې. كما فى وقف البحر﴿١﴾ پس داسې قسمه جماتونو کښې اعتکاف دپاره کښيناستل صحيح نه دى. لان المسجد له شرط﴿٢﴾ وهو الموفق.

---

(بقيه حاشيه) وكتابة امور الدين، فان فيه تسليم المعتكف كليته الى عبادة الله تعالىٰ فى طلب الزلفى وتبعيد النفس من شغل الدنيا التى هى مانعة عما يستوجب العبد من القربىٰ واستغراق المعتكف اوقاته فى الصلاة اما حقيقة او حكما لان المقصد الاصلى من شرعيته انتظار الصلاة بالجماعات وتشبيه المعتكف نفسه بمن لا يعصون الله ما امرهم ويفعلون ما يؤمرون وبالذين يسبحون الليل والنهار وهم لا يسأمون.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١: ٢١٢ الباب السابع فى الاعتكاف)

﴿١﴾ قال العلامة ابن نجيم: ان شرط كونه مسجدا ان يكون سفله وعلوه مسجدا لينقطع حق العبد عنه لقوله تعالىٰ وان المساجد لله بخلاف ما اذا كان السرداب او العلو موقوفا لمصالح المسجد فانه يجوز اذ لاملک فيه لاحد بل هو من تتميم مصالح المسجد.

(البحر الرائق ٥: ٢٥١ فصل فى احكام المساجد كتاب الوقف)

﴿٢﴾ قال فى الهندية: واما شروطه فمنها النية...... ومنها مسجدالجماعة الخ.

(فتاوىٰ عالمگيرية ١: ٢١١ الباب السابع فى الاعتكاف)

وقال العلامة الحصكفى: والكون فى المسجد ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## ښځو لره د اعتکاف د پاره کور کښې ځاني مخصوص کول پکار دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه د ښځو دپاره اعتکاف کول جائز دي او که نه؟ او زمونږ په علاقو کښې په کورونو کښې د مونځ دپاره ځائي يا کمره مخصوص نه وی، نو ښځه په کوم ځائي اعتکاف کوی؟ بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** ښځې هم اعتکاف کولې شی، کما فی در المختار او لبث امرءة فی مسجد بيتها ﴿۱﴾ او کور کښې چه کوم ځائي غواړي پرده د ؤلګوی او د اعتکاف دپاره دې ځائي مخصوص کړی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د جمعې مونځ د پاره بل جمات ته تلل د اعتکاف د پاره مفسد نه دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه که يو عالم يو معتکف ته حکم وکړو، چه د رمضان په آخرکښې معتکف وو، چه د ظهر او عصر دپاره بهرد انساني حاجت نه فارغيدونه پس هم په هغه بهروالاجمات کښې د جمعې سره مونځ ادا کړه، اوس اګر چه په دې جمات کښې هم د جمعې سره مونځ کيږي، په کوم کښې چه اعتکاف کوی، اوس دې مونځونو دپاره بهر تللو باره کښې په اعتکاف مسنون عشراخيره کښې علماء څه فرمائي، اعتکاف فاسد دې او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولوی امين الدين بروخيل ميرعلی وزيرستان ۲۳/۱۲/۱۹۷۱

---

(بقيه حاشيه) والنية من مسلم عاقل طاهر من جنابة وحيض ونفاس شرطان.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۴۱ باب الاعتکاف)

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۴۰ باب الاعتکاف)

﴿۲﴾ وفی الهندية: ولو لم يکن فی بيتها مسجد تجعل موضعا منه مسجدا فتعتکف فيه کذا فی الزاهدی. (فتاویٰ عالمگيرية ۱: ۲۱۱ باب الاعتکاف)



**الجواب:** معتکف د جمعې د مونځ دپاره بهر وتلې شی.

ولم اجده صريحا لکن يدل عليه ما فی ردالمحتار ثم فی الجامع قيل اذا کان يصلی فيه بجماعة فان لم يکن ففئ مسجده افضل لئلا يحتاج الی الخروج (۲: ۱۷۶) ﴿۱﴾ وجه الدلالة ان الجماعة واجبة علی العين ﴿۲﴾ فلولم يجز الخروج لقال "ففی مسجده واجب" فافهم واعلم ان عند الصاحبين فيه توسعا ﴿۳﴾ فليراجع. وهو الموفق

## معتکف د پاره د سګريټ نوشی او مريضانو له په قيمت باندې دوائي ورکولو نه بچ کيدل پکاردی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه يو سړي چه د جامع مسجد امام هم دې، سګريټ څکی او طبيب هم دې، په رمضان کښې اعتکاف دپاره کښيناستل غواړي، د اعتکاف دوران کښې دا امام سګريټ څکلې شي او مريضانو ته دوائي ورکولې شي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: محمد عبدالرحيم عزيز کبيروالا ملتان ۱۹/۳/۱۹۶۹

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۴۰ باب الاعتکاف)

﴿۲﴾ قال الشامی: قال الزاهدی ارادوا بالتاکيد الوجوب وفی النهر عن المفيد الجماعة واجبة وسنة لوجوبها بالسنة...... وقال فی شرح المنية والاحکام تدل علی الوجوب من تارکها بلا عذر يعزر وترد شهادته ويأثم الجيران بالسکوت عنه.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۴۰۸ باب الامامة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجيم: لو خرج لحاجة الانسان ثم ذهب لعيادة المريض اولصلوة الجنازة من غير ان يکون لذلک قصد فانه جائز بخلاف ما اذا خرج لحاجة الانسان ومکث بعد فراغه انه ينتقض اعتکافه عند ابی حنيفة قل او کثر وعندهما لا ينتقض مالم يکن اکثر من نصف يوم کذا فی البدائع.
(البحر الرائق ۲: ۳۰۲ بحث فان خرج ساعة بلاعذر)

**الجواب:** سګریټ څکل او مریضانو ته په قیمت باندې دوائي ورکول د ثواب په کار کښې داخل نه دی، لهذا ددې نه بچ کیدل پکاردی(بحر ۲:۳۰۴)﴿۱﴾.. وهوالموفق

## د اعتکاف د پاره د ګرمۍ په موسم کښې یخو علاقو ته د تللو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د ګرمۍ د تکلیف نه بچ کیدلو دپاره د اعتکاف دپاره یخو علاقو ته سفر کولو شرعا اجازت شته او که نه؟ هرکله چه د ګرمۍ د سختۍ په وجه د ژوند معمولات کافی متاثره کیږی، او دې سفر اختیارولو کښې هوټل ته د پیشمنی دپاره او روژه ماتی دپاره د تللو اجازت شته او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد طیب سخاکوټ ملاکنډ ایجنسی ۱۵/۷/۸۴

**الجواب:** واضحه خبره داده، چه د روژې یا اعتکاف دپاره یخو علاقو ته سفر کول نه خو مطلوب شرعی دی، او نه ممنوع شرعی، بلکه مباح دی، اذا لم یستطع الصیام الافیه، او کوم معتکف چه خادم نه ساتی نو هغه د خوراک څکاک دپاره کور وغیره ته تللې شی. کما فی ردالمحتار والبحر وغیره﴿۲﴾ لکن

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله وکره احضار المبیع والصمت والتکلم الابخیر)......: ان المراد بالخیر هنا مالا اثم فیه فیشمل المباح وبغیر الخیر ما فیه اثم...... وقال فی الهدایة لکنه یتجانب ما یکون مأثما والظاهر ما ذکرناه کما لا یخفیٰ قالوا ویلازم قراءة القرآن والحدیث والعلم والتدریس وسیرالنبی ﷺ وقصص الانبیاء وحکایات الصالحین وکتابة امور الدین.
(البحر الرائق ۲:۳۰۴ باب الاعتکاف)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله لعدم الضرورة) ای الی الخروج حیث جازت فی المسجد وفی الظهیریة وقیل یخرج بعد الغروب للاکل والشرب وینبغی حمله علی ما اذا لم یجد من یأتی له به فحینئذ یکون من الحوائج الضروریة کالبول بحر.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۴۶ باب الاعتکاف)



اصل مشهور الضروری یقدر بقدر الضرورة﴿۱﴾. په دې بناء باندې خوراک وغیره جمات ته راؤړل او خوړولې شی، وهوالموفق.

## د معتکف د اخراج ریح د پاره د جمات نه د وتلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه که معتکف ته د اخراج ریح ضرورت راشی، نود جمات نه بهربه ؤځی که نه؟ که بهر لاړو نو اعتکاف ئې فاسد شو او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید رحمن ډګر سوات

**الجواب:** د اخراج ریح دپاره د جمات نه بهر وتلو باندې اعتکاف نه متاثر کیږی. لانه من ممنوعات المسجد، اګر چه د بعضو په نزد په جمات کښې د اخراج ریح رخصت شته دې،﴿۲﴾ وهو الموفق

## د جمعې د پاره جامع مسجد ته تلل مفسد اعتکاف نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د جمعې د مونځ دپاره جامع مسجد ته تلل اعتکاف لره ماتونکې دې او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الرحمٰن دارالعلوم أیوبیه تجوړی ۷شوال/۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د جمعې مونځ دپاره جامع مسجد ته تلل مفسد اعتکاف نه دی،﴿۳﴾ وهوالموفق

﴿۱﴾ قال الخالد الاتاسی: الضرورات تقدر بقدرها یعنی کل فعل او ترک جوز للضرورة فالتجویز علی قدرها ولا یتجاوز عنها. (شرح المجلة للاتاسی ۱:۵۶ المادة ۲۲)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: سئل ابو حنیفة رحمه الله عن المعتکف اذا احتاج الی الفصد او الحجامة هل یخرج فقال لا وفی اللآلی واختلف فی الذی یفسو فی المسجد فلم یر بعضهم بأسا وبعضهم قالوا لا یفسو ویخرج اذا احتاج الیه وهو الاصح کذا فی التمرتاشی.
(فتاویٰ عالمگیریة ۵:۳۲۱ الباب الخامس فی آداب المسجد والقبلة)

﴿۳﴾ قال العلامة الموصلی: ولا یخرج من معتکفه......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## معتکف د پاره قرآن مجید اوریدلو یا اورولو د پاره بل جمات ته تلل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه که یو حافظ قران سرې اعتکاف وکړې، لیکن په کوم جمات کښې چه معتکف دې، په هغې کښې خلق د ختم فی التراویح دپاره تیار نه دی، نو آیا دا حافظ صاحب د قرآن مجید اورولو دپاره بل جمات ته تلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالرحیم تهانه ملاکنډ

**الجواب:** که دې حافظ په اعتکاف کښې کښیناستلو په وخت کښې ددې استثناء کړې وه، نو صحیح ده، ګنې د احتیاط خبره داده، چه نه د ؤځی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) الا لحاجة الانسان او الجمعة لان الاعتكاف تقرب الى الله تعالىٰ بترك المعاصى وترك الجمعة معصية فينا فيه ويخرج قدر ما يمكنه اداء السنة قبلها وقيل قدرست ركعات يعنى تحية المسجد ايضا ويصلى بعدها اربعا او ستا ولو اطال المكث جاز.

(الاختيار لتعليل المختار ۱:۱۷۸ باب الاعتكاف)

﴿۱﴾ وفى الهندية: ولو شرط وقت النذر والالتزام ان يخرج الى عيادة المريض وصلوٰة الجنازة وحضور مجلس العلم يجوزله ذلك.

(فتاویٰ عالمگيرية ۱:۲۱۲ الباب السابع فى الاعتكاف)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغينانى: ولو خرج من المسجد ساعة بغير عذر فسد اعتكافه عند ابى حنيفة لوجود المنافى وهو القياس وقالا لا يفسد حتى يكون اكثر من نصف يوم وهو الاستحسان لان فى القليل ضرورة، قال ابن الهمام (وهو الاستحسان) يقتضى ترجيحه لانه ليس من المواضع المعدودة التى رجح فيها القياس على الاستحسان ثم هو من قبيل الاستحسان بالضرورة كما ذكره المصنف الخ.

(هداية مع فتح القدير ۲:۳۱۱ باب الاعتكاف)



## د جمعې د غسل د پاره معتکف لره د جمات نه وتل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د اعتکاف دوران کښې د جمعې په ورځ غسل دپاره د جمات نه وتل جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم

**الجواب:** چونکه په بعضې جزئیاتو کښې سنت مؤکده اعتکاف لره په نفلی اعتکاف کښې شمار کړې شوې دې، لهذا دې سره اعتکاف نه فاسدیږی، فی ردالمحتار واما النفل ای الشامل للسنة المؤكدة ﴿۱﴾ البته احتیاط په دې کښې دې چه په شروع کښې دې استثناء وکړې، او یا چه کله د طهارت یا قضاء حاجت دپاره ؤځی، نو بالتبع دې په هغې کښې د جمعې غسل وکړې، کمافی البدائع﴿۲﴾. وهو الموفق

## د معتکف د پاره د ګرمۍ د وجهې نه غسل د پاره وتل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه معتکف د ګرمۍ په وجه غسل دپاره وتلې شی، او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عبدالواحد نقشبندی

**الجواب:** که دا اعتکاف منذور او واجب نه وی، نو په هغې کښې غسل دپاره وتل مفسد نه دی،

**كما فى الهندية ۱:۲۲۶ هذا كله فى الاعتكاف الواجب اما فى النفل فلا بأس بان ...**

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۴۳ باب الاعتكاف)

﴿۲﴾ قال العلامة الكاسانى: ويجوز ان تحمل الرخصة على ما اذا كان خرج المعتكف لوجه مباح كحاجة الانسان او للجمعة ثم عاد مريضا او صلى على جنازة من غير ان كان خروجه لذلك قصدا وذلك جائز.

(بدائع الصنائع ۲:۲۸۴ فصل ما يفسد الاعتكاف ومالا)

یخرج بعذر وغیره فی ظاهر الروایة وفی التحفة فلا بأس فیه بان یعود المریض ویشهد الجنازة کذا فی شرح النقایة للشیخ ابی المکارم ﴿۱﴾

او که چرې په اعتکاف کښې مودهٔ اخلیدو په وخت د ګرمۍ د غسل دپاره د وتلو استثناء اوکړي، نو د علامه شامي د رائې مطابق به هم مفسد نه وي. ځکه چه دوی د آخری عشرې اعتکاف نه د واجب په شان حکم ورکوی ﴿۲﴾

ومسئلة الاستثناء فی الهندیة ۱: ۲۲۲ فلیراجع ﴿۳﴾. وهو الموفق

## په اعتکاف کښې د استثناء مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه که یو سړي په اعتکاف

---

﴿۱﴾ (فتاوی عالمګیریة ۱: ۲۱۳ الباب السابع فی الاعتکاف)

﴿۲﴾ قال العلامة الشامي: والصحیح انه سنة مؤکدة لان النبی ﷺ واظب علیه فی العشر الاواخر من رمضان والمواظبة دلیل السنة من ان المواظبة بلا ترک دلیل الوجوب والجواب کما فی العنایة انه علیه السلام لم ینکر علی من ترکه ولو کان واجبا لانکر، وحاصله ان المواظبة انما تفید الوجوب اذا اقترنت بالانکار علی التارک ـــــ وقوله فی البحر لا یمکن حمله علیه لتصریحهم بان الصوم انما هو شرط فی المنذور فقط دون غیره فیه نظر لانهم انما صرحوا بکونه شرطا فی المنذور غیر شرط فی التطوع وسکتوا عن بیان حکم المسنون لظهور انه لا یکون الا بالصوم عادة ولهذا قسم فی متن الدرر ـــــ ثم قال والصوم شرط لصحة الاول لا الثالث ولم یتعرض للثانی لما قلنا ولو کان مرادهم بالتطوع ما یشمل المسنون لکان علیه ان یقول شرط لصحة الاول فقط کما قال المصنف فعبارة صاحب الدرر احسن من عبارة المصنف. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۳۱ باب الاعتکاف)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ولو شرط وقت النذر والالتزام ان یخرج الی عیادة المریض وصلاة الجنازة وحضور مجلس العلم یجوز له ذلک کذا فی التتارخانیة ناقلا عن الحجة.

(فتاوی عالمګیریة ۱: ۲۱۲ مفسدات الاعتکاف)



کښې کښېناستلو په وخت کښې د جنازې وغیره استثناء وکړي، نو څومره لرې پورې جنازې دپاره تللې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی محمد سلیمان نیکملا ۱۲/ اګست ۱۹۸۳ء

**الجواب:** دا شرط صحیح دې، او هره قریب او بعید جنازې دپاره تللې شي. ﴿۱﴾ البته که اکثر وخت په شپه او ورځ کښې د جمات نه بهر وو، نو هغه شپه او ورځ به په اعتکاف کښې نه شمار کیږي ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د معتکف د جنازې د پاره د وتلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړي په رمضان المبارک کښې معتکف شو، او د جنازې مونځ دپاره بهر ووتلو آیا په اعتکاف کښې فرق راځي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: پیر نجیم علی شاه حقانی ۸۳/۸/۱۲

**الجواب:** که هغه سړي اعتکاف شروع کولو په وخت کښې استثناء کړې وه، مثلاً دا نیت ئې کړې وي، چه زهٔ به جنازې ادا کولو دپاره بهر نه وځم، نو په دې صورت کښې دا اعتکاف په خپل حالې صحیح دې شرح التنویر ﴿۳﴾، او

---

﴿۱﴾ قال العلامة النظام: ولو شرط وقت النذر والالتزام ان یخرج الی عیادة المریض وصلاة الجنازة وحضور مجلس العلم یجوز له ذلک کذا فی التتارخانیة.

(فتاوی عالمګیریة ۱: ۲۱۲ مفسدات الاعتکاف)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: وعلی کل فیظهر من بحث ابن الهمام لزوم الاعتکاف المسنون بالشروع وان لزوم قضاء جمیعه او باقیه مخرج علی قول ابی یوسف اما علی قول غیره فیقضی الیوم الذی افسده لاستقلال کل یوم بنفسه ـــــ والحاصل ان الوجه یقتضی لزوم کل یوم شرع فیه عندهما بناء علی لزوم صومه بخلاف الباقی لان کل یوم بمنزلة شفع من النافلة الرباعیة وان کان المسنون هو اعتکاف العشر بتمامه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۳۳ باب الاعتکاف)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفي: لو شرط وقت النذر ان ـــــ (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

که استثناء ئې نه وه کړې، لیکن د طهارت یا قضاء حاجت دپاره ؤوتلو، او په دې دوران کښې ئې جنازه هم ادا کړه، نو په دې صورت کښې هم اعتکاف صحیح دې، (بدائع الصنائع ج۲ ص۱۱۴) ﴿۱﴾ اوکه جنازې دپاره قصدا بالذات وتلې وی، نود ظاهر روایت په وجه ددۀ اعتکاف فاسد شوې نه دې، البته کښې مسنون د منذور په حکم کښې ؤمنلې شی، نو یوه ؤرځ شپه به قضا راوړی﴿۲﴾. وهو الموفق

## د معتکف د پاره په هیره د جمات نه وتلو کښې مفتی به قول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه که معتکف په هیره د جمات نه ؤځی، نو د امام صاحب رحمه الله په نزد اعتکاف ماتیږی، خلافا لهما کما فی الهدایة، فتوی په کوم مذهب ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مبارک علی شاه مدرسه عربیه تجوری بنوں ۲۳ شوال/۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د قواعدو په اعتبار سره د صاحبینو مذهب قوی دې، لیکن احوط د امام صاحب مذهب دې. اما....

---

(بقیه حاشیه) یخرج لعیادة مریض وصلاة جنازة وحضور مجلس علم جاز ذلک فلیحفظ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۴۶ باب الاعتکاف)

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: ویجوز ان تحمل الرخصة علی ما اذا کان خرج المعتکف لوجه مباح کحاجة الانسان او للجمعة ثم عاد مریضا او صلی علی جنازة من غیر ان کان خروجه لذلک قصدا وذلک جائز.
(بدائع الصنائع ۲: ۲۸۴ فصل ما یفسده ومالایفسده)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: فلو شرع فی نفله ثم قطعه لا یلزمه قضاؤه لانه لا یشترط له الصوم علی الظاهر من المذهب وما فی بعض المعتبرات انه یلزم بالشروع مفرع علی الضعیف قاله المصنف وغیره وحرم علیه ای علی المعتکف اعتکافا واجبا اما النفل فله الخروج لانه منه له لا مبطل کما مر.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۴۳ باب الاعتکاف)



الاول فلکونها استحسانا واما الثانی فظاهر﴿۱﴾ واما مبحث ابن الهمام فیمکن ان یجاب عنه بان الملحوظ عندهم نفس الخروج لا متعلقاته. وهو الموفق

## فساد صوم سره اعتکاف مسنون تطوع جوړیږی، فاسدیږی نه

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د کوم معتکف روژه فاسده شی، آیا په هغې سره اعتکاف هم فاسدیږی؟

المستفتی: محمد خالق عنایت کلې باوجوړ ۱۷/۷/۸۴

**الجواب:** د اهل تحقیق په نزد په اعتکاف مسنون کښې روژه شرط نه ده. وهذا الراجح عند صاحب البحر﴿۲﴾. او د علامه شامی رحمه الله په نزد په دې کښې

---

﴿۱﴾ قال العلامة المرغینانی: ولو خرج من المسجد ساعة بغیر عذر فسد اعتکافه عند ابی حنیفة لوجود المنافی وهو القیاس وقالا لا یفسد حتی یکون اکثر من نصف یوم وهو الاستحسان لان فی القلیل ضرورة، قال ابن الهمام (قوله وهو الاستحسان) یقتضی ترجیحه لانه لیس من المواضع المعدودة التی رجح فیها القیاس علی الاستحسان ثم هو من قبیل الاستحسان بالضرورة کما ذکره المصنف واستنباط من عدم امره اذا خرج الی الغائط ان یسرع المشی بل یمشی علی التؤدة وبقدر البطء تتخلل السکنات بین الحرکات علی ما عرف فی فن الطبیعة وبذلک یثبت قدر من الخروج فی غیر محل الحاجة فعلم ان القلیل عفو الخ. (هدایه مع فتح القدیر ۲: ۳۱۱ باب الاعتکاف)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: واشار بالمسجد والصوم والنیة الی شرائطه لکن ذکر الصوم معها لا ینبغی لانه لا یمکن حمله علی المنذور لتصریحه بالسنیة ولا علی غیره لتصریحه بعد بان اقله نفلا ساعة فلزم ان الصوم لیس من شرطه ...... بان الصوم انما هو شرط فی المنذور فقط دون غیره الخ. (البحر الرائق ۲: ۲۹۹ باب الاعتکاف)

روژه شرط ده، ليكن د روژې د فاسديدو په وجه دا اعتكاف مسنون خارج كيدلو سره تطوع جوړ شى، باطليږى نه. كما فى ردالمحتار باب الاعتكاف﴿۱﴾. وهوالموفق

## په حالت اعتكاف كښې اخبار لوستل اور ريډيو باندې خبرونه اوريدل

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره كښې چه يو ريټائر استاذ په اعتكاف كښې ناست دې، هغه په اعتكاف كښې اخبار او رسالې ګورى، او خبرونه اوريدلو دپاره ريډيو هم ځان سره ساتى، آيا ددهٔ دپاره دا جائز دى؟ بينوا توجروا

المستفتى: نامعلوم ........

﴿۱﴾ قال العلامة الشامى: (قوله على المذهب) وهو رواية الاصل ومقابله رواية الحسن انه شرط للتطوع ايضا وهو مبنى على اختلاف الرواية فى ان التطوع مقدر بيوم اولا ففى رواية الاصل غير مقدر فلم يكن الصوم شرطا له وعلى رواية تقديره بيوم وهى رواية الحسن ايضا يكون الصوم شرطا له كما فى البدائع وغيرها قلت ومقتضى ذلك ان الصوم شرط ايضا فى الاعتكاف المسنون لانه مقدر بالعشر الاخير حتى لو اعتكفه بلا صوم لمرض او سفر ينبغى ان لا يصح عنه بل يكون نفلا فلا تحصل به اقامة سنة الكفاية ويؤيده قول الكنز سن لبث فى مسجد بصوم ونية فانه لا يمكن حمله على المنذور لتصريحه بالسنية ولا على التطوع لقوله بعده واقله نفلا ساعة فتعين حمله على المسنون سنة مؤكدة فيدل على اشتراط الصوم فيه وقوله فى البحر لا يمكن حمله عليه لتصريحهم بان الصوم انما هو شرط فى المنذور فقط دون غيره فيه نظر لانهم انما صرحوا بكونه شرطا فى المنذور غير شرط فى التطوع وسكتوا عن بيان حكم المسنون لظهور انه لا يكون الا بالصوم عادة ولهذا قسم فى متن الدرر الاعتكاف الى الاقسام الثلاثة المنذور والمسنون والتطوع ثم قال والصوم شرط لصحة الاول لا الثالث ولم يتعرض للثانى لما قلنا ولو كان مرادهم بالتطوع ما يشمل المسنون لكان عليه ان يقول شرط لصحة الاول فقط الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۴۱ باب الاعتكاف)



**الجواب:** دا د مقاصدو او ادابو د اعتكاف نه خلاف كارونه دى﴿۱﴾، معتكف دپاره د تلاوت، د نوافلو كثرت او د دينى مسائلو مطالعه شوق كول پكار دى، كمافى شرح التنوير﴿۲﴾. وهوالموفق

## داعتكاف مسنون د قضا صورتونه اوپه جمات كښې ګرزيدل اوغسل كولومسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلو باره كښې چه:

(۱) په آخرى عشره د رمضان كښې اعتكاف مسنون كه د څه مجبورى مثلا بيمارى، يره يا په اهل عيال كښې د چا بيمارې يا د حادثې يا مرګ په وجه پريخودلې شى، نو دهغې قضا كله او څرنګه كيدې شى؟

(۲) آيا په بل رمضان كښې په آخرى عشره كښې قضا كيدې شى؟

(۳) كه په آتمه يا لسمه ؤرځ اعتكاف پريخودلې شى، نو آيا قضا به لس ؤرځې وى، او كه باقي پاتې ؤرځې؟

(۴) آيا د قضا په بدله كښې به صرف اعتكاف كولې شى او كه فديه به وركولې شى؟

(۵) په اعتكاف كښې د ګرمۍ په وجه غسل كول، اودمعتكف ځائې پريخودل او په جمات كښې بل ځائې كښې سملاستل يا ګرزيدل جائز دى او كه نه؟

المستفتى: قارى سعيد الرحمٰن راولپنډى ۱۷شوال ۱۴۰۱ھ

﴿۱﴾ وفى الهندية: واما محاسنه فظاهرة فان فيه تسليم المعتكف كلية الى عبادة الله تعالىٰ فى طلب الزلفى وتبعيد النفس من شغل الدنيا التى هى مانعة عما يستوجب العبد من القربىٰ واستغراق المعتكف اوقاته فى الصلوٰة اما حقيقة او حكماً.

(فتاوىٰ عالمگيرية ۱: ۲۱۲ الباب السابع فى الاعتكاف)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى: وتكلم الا بخير وهو ما لا اثم فيه ومنه المباح عند الحاجة اليه لا عند عدمها...... وقراءة قرآن وحديث وعلم وتدريس فى سير الرسول عليه السلام وقصص الانبياء عليهم السلام وحكايات الصالحين وكتابة امور الدين.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۱۴۷ باب الاعتكاف)

**الجواب:** (۱، ۲، ۳، ۴) د اعتکاف مسنونه په فاسدولو کښې یوه ورځ او شپه اعتکاف قضا کول دی، وهو قول ابی حنیفة ومحمد، او د امام ابویوسف رحمۃ اللہ علیہ په نزد د باقی ورځو قضا راوړل هم ضروری دی، (ماخوذ از شامی)﴿۱﴾ او بهرحال دا قضا علی الاحوط به په غیر رمضان کښې کول وی، نه په دې کښې د څه مودې تعین شته، او نه فدیه ورکول کافی ده.﴿۲﴾

---

﴿۱﴾قال العلامة محمد امین: ومقتضی النظر لو شرع فی المسنون اعنی العشر الاواخر بنیته ثم افسده ان یجب قضاءه تخریجا علی قول ابی یوسف...... ای یلزمه قضاء العشر کله لو افسد بعضه..... واما علی قول غیره فیقضی الیوم الذی افسده لاستقلال کل یوم بنفسه..... والحاصل ان الوجه یقتضی لزوم کل یوم شرع فیه عندهما بناء علی لزوم صومه بخلاف الباقی لان کل یوم بمنزلة شفع من النافلة الرباعیة وان کان المسنون هو اعتکاف العشر بتمامه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۴۳ باب فی الاعتکاف)

﴿۲﴾ چونکه د علامه شامی رحمۃ اللہ علیہ په نزد په اعتکاف کښې روژه شرط ده. اګر چه د علامه ابن نجیم په نزد صرف په اعتکاف منذور کښې روژه شرط ده، لیکن د دلائلو په اعتبار سره د علامه شامی رحمۃ اللہ علیہ قول راجح معلومیږی، نو ګویا چه دهغوی په نزد اعتکاف مسنون د اعتکاف منذور سره نزدې دې.

کما یفهم من عباراته حیث قال: ومقتضی ذلک ان الصوم شرط ایضا فی الاعتکاف المسنون لانه مقدر بالعشر الاخیر حتی لو اعتکفه بلا صوم لمرض او سفر ینبغی ان لا یصح عنه بل یکون نفلا فلا تحصل به اقامة سنة الکفایة ویؤیده قول الکنز...... فتعین حمله علی المسنون سنة مؤکدة فیدل علی اشتراط الصوم فیه الخ (ردالمحتار ۲: ۱۴۱ باب الاعتکاف)

او په دې صفحه کښې فرمائی:

ان المواظبة انما تفید الوجوب اذا اقترنت بالانکار علی التارک, او ۲: ۱۴۳ کی فرمائی: اقول لکن بعد ما صرح صاحب البدائع بلزومه بالشروع ذکر روایة الحسن ووجهها وهو ان الشروع فی التطوع موجب للاتمام علی اصل اصحابنا صیانه للمؤدی عن البطلان الخ.

پس د تحقیق په رڼا کښې د حضرت مفتی صاحب رجحان دې طرف ته دې،

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه).........



(۵) د ګرمی په وجه غسل کول اعتکاف نه فاسد کوی، البته احوط داده، چه په اول کښې دې استثناء وکړی، او مسنون دادی، چه په معتکف کښې دې اوده شی، لیکن په جمات کښې په نورو ځایونو کښې اوده کیدل مفسد نه دی. (شامی)﴿۱﴾. وهوالموفق

## د تولې میاشتې معتکف لره د جمات نه بغیر د عذر نه وتلو په صورت کښې د قضا مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه بنده د رمضان په شروع کښې د تولې میاشتې د اعتکاف نیت وکړو، د اعتکاف دوران کښې بنده یو څو منټو دپاره د جمات حجرې ته، چه په هغې کښې امام صاحب بیمار پروت وو، د عیادت دپاره لاړو، احساس کیدلو سره زر جمات ته واپس راغلو، د شریعت مطابق په اعتکاف کښې نقصان راغلو او که نه؟ واضحه دې وی چه دا اعتکاف د نذر نه وو؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی سخی بادشاه حقانی مدرسه تعلیم القران کرک ۱۳ اګست ۱۹۸۳ء

**الجواب:** که دا معتکف په عشره اولی یا وسطی کښې د عیادت دپاره د جمات نه بهر تلې وی، نو په هغه باندې هیڅ قضا نشته، لانه انتهی الاعتکاف بالخروج ثم انشاه بالدخول﴿۲﴾. او که په عشره اخیره کښې بهر ته تلې وو، نو

---

(بقیه حاشیه)......د احتیاط په وجه ددې قضا په غیر رمضان کښې کول پکار دی.

قال العلامة الحصکفی: وان لم یعتکف رمضان المعین قضی شهرا غیره بصوم مقصود لعود شرطه الی الکمال الاصلی (۲: ۱۴۲) ......(ازمرتب)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وخص المعتکف باکل وشرب ونوم وعقد احتاج الیه لنفسه او عیاله فلو لتجارة کره.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۴۶ باب الاعتکاف)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: اذا دخل المسجد بنیة الاعتکاف فهو معتکف ما اقام تارک له اذا خرج وظاهره ان مستند ظاهر الروایة ما ذکره فی الکتاب ولا یمتنع ان یکون مستنده صریحا آخر بل هو الظاهر لنقل الثقات...... ان ظاهر الروایة ...(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

د امام ابوحنیفه او امام محمد په نزد د یوې ورځې شپې قضا به کوی، لان التحقیق انه کالمنذور﴿۱﴾. وهو الموفق

## د رمضان اعتکاف ماتیدلو په صورت کښې د قضا مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ په علاقه کښې په تیر رمضان کښې د څه وجه نه اعتکاف مات شو، اوس قوم په دې مسئله کښې دوؤ ډلو کښې تقسیم دې، څوک وائي، چه د باقی ورځو قضا کول ضروری دی، او څوک وائي چه د پوره اعتکاف قضا کول ضروری دې، د صحیح مسئلې نه مونږ خبر کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: لعل محمد مرغانی جنرل ټائر سروس پېښاور ۲/۱/۲۹

**الجواب:** د محقق ابن الهمام ترجیح پوره لسو ورځو طرف ته ده، یعنی آخری عشره او قضا د رمضان نه پس په نورو میاشتو کښې ضرور کوی. قال العلامة الشامی ۲:۱۳۵ ثم

---

(بقیه حاشیه)مروی لا مستنبط واشار الی انه لو شرع فی النفل ثم قطعه لا یلزمه القضاء فی ظاهر الروایة لانه غیر مقدر فلم یکن قطعه ابطالا.

(البحر الرائق ۲:۳۰۰،۳۰۱ باب الاعتکاف)

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدین: (قوله اما النفل) ای الشامل للسنة المؤکدة...... انها مقدرة بالعشر الاخیر...... ومفاد التقدیر ایضا اللزوم بالشروع تامل ثم رأیت المحقق ابن الهمام قال ومقتضی النظر لو شرع فی المسنون اعنی العشر الاواخر بنیته ثم افسده ان یجب قضاءه تخریجا علی قول ابی یوسف فی الشروع فی نفل الصلاة ناویا اربعا لاعلی قولهما...... فیظهر من بحث ابن الهمام لزوم الاعتکاف المسنون بالشروع وان لزوم قضاء جمیعه او باقیه مخرج علی قول ابی یوسف اما علی قول غیره فیقضی الیوم الذی افسده لاستقلال کل یوم بنفسه...... والحاصل ان الوجه یقتضی لزوم کل...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



رأیت المحقق ابن الهمام قال ومقتضی النظر لو شرع فی المسنون اعنی العشر الاواخر بنیته ثم افسده ان یجب قضاءه الخ﴿۱﴾ ودلیل الثانی ان الشروع فیه ملزم کالنذر وفی صورة النذر یلزم القضاء فی غیر رمضان فکذا ههنا، قال فی الدر المختار وان لم یعتکف رمضان المعین قضی شهرا غیره بصوم مقصود لعود شرطه الی الکمال انتهی﴿۲﴾، قلت ویؤیده ما رواه ابو داؤد عن عائشة فامر ببناءه فقوض وامر ازواجه بابنیتهن فقوضت ثم اخر الاعتکاف الی العشر الاول یعنی من شوال﴿۳﴾. وهوالموفق

## د عشره آخیره د اعتکاف قضا او عدم قضا مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د عشره اخیره اعتکاف سنت که فاسد شی، نو دهغې قضا لازم ده او که نه؟ که لازم وی، نو د څومره ورځو لزوم به وی؟ په فتاوی دارالعلوم دیوبند کښې ئې د ردالمحتار حواله ورکولو سره لیکلې دی، چه قضا نشته، او په خلاصة الفتاوٰی کښې ئې لیکلې دی، چه قضا لازم ده. په دې کښې به ترجیح کوم قول ته وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مبارک شاه دارالعلوم تجوړی بنوں ۱۸ شوال ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د درالمختارد عبارت نه معلومیږی، چه غیر منذور اعتکاف چه مسنون لره هم شامل دې، په وتلو سره باطل او فاسدیږی نه، لیکن د .....

---

(بقیه حاشیه) یوم شرع فیه عندهما بناء علی لزوم صومه الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۴۳ باب الاعتکاف)

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۴۳ باب الاعتکاف)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۴۲ باب الاعتکاف)

﴿۳﴾ (سنن ابی داؤد ۱:۳۴۱ باب الاعتکاف کتاب الصوم)

ابن الهمام د کلام نه ددې مسنون د شروع نه واجب کیدل معلومیږي.
ملخص کلامه المذکور فی ردالمحتار ۱:۱۸۰ انه اذا افسد المنذور یلزمه قضاء الباقی، واذا افسد المسنون (بالجماع مثلا) یلزمه قضاء الیوم الواحد عند ابی حنیفة ومحمد رحمهم الله وعند ابی یوسف رحمه الله یقضی العشر اوالایام الباقیة ﴿۱﴾.

وهوالموفق

## د معتکف په مړ کیدلو سره د اعتکاف پوره کیدلو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید د اعتکاف دپاره کښېنولې شوې وو، لیکن درې ورځې پس وفات شو، اوس د دوؤ سړو جهګړه ده، یو وائي، چه اعتکاف شوې دې، او دویم وائي، چه اوس به دویم سړې کښېنول پکار وی، اوس ددې نزاع حل څه دې؟ او د اهل محله ذمه فارغه ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد نثار کوثر سدو خیل پړانګ چارسده ۵/۵/۲۹

**الجواب:** چونکه دې دواړو کښې یو کس هم د عشره اخیره اعتکاف نه دې کړې، او په آخری عشره کښې د پوره لسو ورځو اعتکاف مسنون دې، او دا اعتکاف لسو ته ونه رسیدو، لهذا که په ټوله محله کښې بل سړې اعتکاف ونه کړو، نو د پوره محلې خلق به تارک السنت وی. ﴿۲﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۴۳ باب الاعتکاف)

﴿۲﴾ قال العلامة محمد امین: (قوله ای سنة کفایة) نظیرها اقامة التراویح بالجماعة فاذا اقام بها البعض سقط الطلب عن الباقین فلم یأثموا بالمواظبة علی الترک بلا عذر ولو کان سنة عین لا ثموا بترک السنة المؤکدة.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۴۱ باب الاعتکاف)



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

**فتاوی فریدیه څلورم جلد**

# کتاب الحج

## باب تفسیر الحج وشرائطه وارکانه

..........

بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

....قال الله تعالی:......

وللہ علی الناس

حج البیت من استطاع

الیه سبیلا.

....[آل عمران: ۹۷]......

.......



# کتاب الحج

## باب تفسیر الحج وشرائطه وارکانه

### د سفر حج اسرار او منافع

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې د حج باره کښې وائي چه حج دې دپاره فرض کړې شوې دې، چه سړې خپله بستره په خپلو اوږو باندې واچوی او د سفر د سختو نه خبر شی، او د وخت خوراک بې وخته ؤخوری، دې دپاره چه واپس راشی، او د مسافرۍ احساس ورته وی، ایا واقعی حج دې دپاره فرض کړې شوې دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبدالوهاب

**الجواب:** د حج د فرضیت (راز او) سبب تعظیم د بیت الله دې﴿۱﴾، او په سفر حج کښې ډیر منافع او برکات وی، چه په هغې کښې بعضې هغه دی، کوم چه دې صاحب ذکر کړې دی.

**یشیر الی الاول ما فی الدر المختار، فرض مرة لان سببه البیت وهو واحد﴿۲﴾ وهوالموفق**

---

﴿۱﴾ قال الامام ولی الله الدهلوی: المصالح المرعیة فی الحج امور منها تعظیم البیت فانه من شعائر الله وتعظیمه هو تعظیم الله تعالیٰ.

(حجة الله البالغة ۲: ۵۶ مبحث من ابواب الحج)

﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۵۱ کتاب الحج)

## حدیث ''من لم یحج فلیمت ان شاء یهودیا او نصرانیا''،

## په تغلیظ باندې محمول دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین ددې حدیث د تشریح باره کښې چه چا بغیر د عذر نه حج ؤنکړو، نو که هغه مړ شو، نو یا یهودی مړ شو یا نصرانی مړ شو، حدیث دادې:

وعن امامة رضی الله عنه قال، قال رسول الله ﷺ من لم یمنعه من الحج حاجة ظاهرة او سلطان جابر او مرض...... فمات ولم یحج فلیمت ان شاء یهودیا او ان شاء نصرانیا (رواه الدارمی). بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم............ ۱۹۷۳/۹/۳

**الجواب:** د خانه کعبې زیارت او تعظیم یهود او نصاری نه کوی، دا مسلمانان کوی، پس چه کوم مسلمان د استطاعت باوجود بغیر د څه عذر نه حج د بیت الله نه کوی، نو هغه د مسلمانانو په لاره باندې تلل ؤنکړل، یعنی په هغه کښې د یهود ونصاری عمل موجود شو، ګنی که اعتقاد ئې صحیح وی، منکر نه وی، نودا سړې به مسلمان وی، او حدیث په تغلیظ باندې محمول دې. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## صرف نیت کولو سره حج نه فرض کیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه څو سړو زید ته ؤوئیل

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: (ان یموت یهودیا او نصرانیا) ای فی الکفر ان اعتقد عدم الوجوب وفی العصیان ان اعتقد الوجوب وقیل هذا من باب التغلیظ الشدید والمبالغة فی الوعید...... والاظهر ان وجه التخصیص کونهما من اهل الکتاب غیر عاملین به فشبه بهما من ترک الحج حیث لم یعمل بکتاب الله تعالیٰ ونبذه وراء ظهره کانه لا یعلمه، قال الطیبی والمعنیٰ ان وفاته علی هذه الحالة ووفاته علی الیهودیة والنصرانیة سواء والمقصود التغلیظ فی الوعید کما فی قوله تعالیٰ ومن کفر.......

(مرقاة المفاتیح شرح المشکوٰة ۵: ۲۷۳ کتاب المناسک الفصل الثانی)



چه مونږ به تا دې کال حج ته لیږو، تهٔ د حج نیت وکړه، بیا هغه د حج درخواست ورکړو منظوری راغله، نو آیا په زید باندې صرف په نیت سره حج فرض شو او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا غلام مجتبی دارالعلوم عثمانیه راول پارک لاهور ۱۰ رمضان ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** حج صرف نیت کولو سره نه فرض کیږی، ترڅو پورې چه تلبیه ئې نه وی وئیلې. ﴿۱﴾. وهوالموفق

## په حج او عمره کښې د نیت الفاظ غلط وئیل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې حج تمتع کونکې وو، هغه د ناپوهی په وجه د کراچۍ نه د حج نیت وکړو، یعنی اللهم انی ارید الحج الخ، حالانکه هغه له ره اللهم انی ارید العمرة الخ، وئیل پکار وو، هلته کښې حرم ته لاړو او طواف او سعی ئې وکړه، او ویښتهٔ ئې ؤخرول، یعنی د حج نیت کولو سره ئې عمره وکړه، په اتمه ذی الحجه ئې بیا د حج نیت وکړو، دهغه دا حج او عمره اذا شوې دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: زاهد الرحمٰن خانه صواتی کلې کرک ۸۴/۴/۳۲

**الجواب:** نیت د زړهٔ د ارادې نوم دې، نه د الفاظو﴿۲﴾، پس په دې سړې باندې

﴿۱﴾ قال العلامة النظام: ولا یصیر شارعا بمجرد النیة مالم یأت بالتلبیة او ما یقوم مقامها من الذکر او سوق الهدی او تقلید البدنة کذا فی المضمرات.

(فتاوٰی عالمگیریة ۱: ۲۲۲ الباب الثالث فی الاحرام)

﴿۲﴾ قال العلامة الشرنبلالی: النیة فی اللغة مطلق القصد وفی الشریعة قصد کون الفعل لما شرع له ......وقال شیخ الاسلام الدیری: النیة هی الارادة الجازمة لان النیة فی اللغة العزم والعزم هو الارادة الجازمة القاطعة، وقال الشیخ الخطابی: معنی النیة قصدک الشیی بقلبک وتحرک الطلب منک، وقال البیضاوی: النیة عبارة......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

دم وغیره لازم نه دی، او نه په هغه باندې اعاده د حج یا عمرې شته﴿۱﴾.
وهو الموفق

## دبل په مال باندې حج کولو والا دوباره په خپل مال سره حج کولو کښې په نیت څنګه کوی؟:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ما یو ځل حج د خپل والد صاحب سره ادا کړې دې، خرچه هغه راکړې وه، او هغه وخت کښې زۀ مالدار نه ووم، نن زۀ په خپله غني یم، دديې وجه نه دوباره د حج کولو اراده ده، لیکن اوس د نیت باره کښې فکر مند یم، چه زۀ د فرض حج نیت وکړم یا د نفل حج نیت وکړم؟ بینوا توجروا

المستفتی: امان الله خان

**الجواب:** که تا په اول ځل د فرض حج نیت کړې وو، نو ستا ذمه فارغه شوې ده، او که فرض کړه تا د نفل حج نیت کړې وی، نو اوس دوباره فرض حج ادا کړه. (شامی ۲:۱۹۵)﴿۲﴾_

**ملاحظه:**...... زمونږ د علاقو خلق د فرض حج نیت کوی. وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) عن انبعاث قلبک نحو ما تراه موافقا لفرض من جلب نفع او دفع ضرحالا او مآلا والشرع خصصها بالارادة للتوجه نحو الفعل ابتغاء لوجه الله تعالیٰ وامتثالا لحکمه ...... وقال الکمال النية قصد الفعل ...... وقال عبد الواحد: اذا علم ای صلاة يصلی قال محمد بن سلمة هذا القدر نية والاصح انه لا يكون نية لان النية غير العلم بها الخ.
(امداد الفتاح شرح نورالایضاح ۲۳۴ باب شروط الصلاة وارکانها)

﴿۱﴾ قال فی الشامية: فيصح الحج بمطلق النية ای بالنية المطلقة عن التقييد بالحج بان نوی النسک من غير تعيين حج او عمرة ثم ان عين قبل الطواف فبها والاصرف للعمرة، قال فی اللباب وتعيين النسک ليس بشرط فصح مبهما وبما احرم به الغير ثم قال فی موضع آخر ولو احرم بما احرم به غيره فهو مبهم فليزمه حجة او عمرة ...... وكذا لو اطلق نية الحج صرف للفرض. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۷۲ قبيل مطلب فيما يصير به محرما)

﴿۲﴾ قال العلامة الشامی: فالتقييد بالفقير لظهور عجزه ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د حاجت اصلی نه زیاته زمکه ساتلو په وجه د حج د فرضیت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زمکه په حاجت اصلی کښې داخله ده او که نه؟ او په دې کښې د حج کولو څه طریقه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عمرزاده هیډماستر چمتلی سوات ۱۲/۲/۷۵ ۱۱۲

**الجواب:** څومره مقدار زمکې سره چه سالانه ضروریات پوره کیږی، هغه په حاجت اصلی کښې داخل ده، او دهغې نه زیاته به د حج دپاره خرڅولې شی.

کما فی الهندیة (۲:۲۱۸) وان کان صاحب ضيعة ان كان له من الضياع ما لو باع مقدار ما يكفی الزاد والراحلة ذاهبا وجائيا ونفقة عياله واولاده يبقى له من الضيعة قدر ما يعيش بغلة الباقی يفترض عليه الحج والا فلا﴿۱﴾. وهو الموفق

## د کورونو او دکانونو په صورت کښې د حج د فرضیت حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړي سره د کروندې د زمکې نه علاوه کورونه او دکانونه هم دی، چه دهغې باقاعده امدن د کرائې په صورت کښې وصولوی، ایا په هغه باندې حج فرض دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......... ۱۹۷۳|۴|۳

**الجواب:** د کروندې زمکه، کورونه او دکانونه وغیره نور جائداد که ددۀ حاجت

---

(بقیه حاشیه) عن المركب وليفيد انه يتعين عليه ان لا ينوی نفلا علی زعم انه لا يجب عليه لفقره لانه ما كان واجبا وهو آفاقی فلما صار كالمكی وجب عليه فلو نواه نفلا لزمه الحج ثانيا. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۵۵ كتاب الحج قوله للآفاقی لاالمكی)

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۱۸ کتاب المناسک بیان شرائط وجوبه)

اصلیه او د حج نه واپس راتلو پورې ددۀ د اهل عیال د نفقې نه زیاتی وی، نو په دې باندې حج فرض دې.

**وفی الهداية: اذا قدر على الزاد والراحلة فاضلا عن المسكن ومالا بد منه وعن نفقة عياله الى حين عوده ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## قرض اخستلو سره د حج کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې ماته د حج دپاره او ولس زره روپۍ راکړې وې، هغه وخت کښې ورکونکی دا وضاحت نه وو کړې، چه دا قرضه ده، که ماته هغه وخت کښې معلومه وې نو ما به په دې باندې هیچرې هم حج نه وو کړې، ځکه چه قرض اخستل او حج ته تلل بالکل جائز نه دی، اوس سوال دادې، چه آیا قرض اخستل او حج کول جائز دی او که نه؟ اوس زۀ څه وکړم؟ بینوا توجروا

المستفتی :حاجی علی محمد هائي سکول رسالپور نوشهره ۱۹/۱۱/۸۴

**الجواب:** کوم سړې چه پیدل یا په قرض مال باندې حرم ته ؤرسی، او د عام پاکستانیانو پشان عمره کولو نه پس په اتمه ذی الحجه باندې د حج نیت وکړی، نو دهغه سړې ذمه د فریضې نه فارغه کیږی﴿۲﴾، آئنده که دا سړې مالداره هم شی، نو په هغه به دوباره حج فرض نه وی﴿۳﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (هدایه ۱:۲۱۳ کتاب الحج)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: والفقير الآفاقى اذا وصل الى ميقات فهو كالمكى...... فالتقييد بالفقير لظهور عجزه عن المركب وليفيد انه يتعين عليه ان ينوى حج الفرض ليقع عن حجة الاسلام ولا ينوى نفلا على زعم انه فقير لا يجب عليه الحج...... ان قولنا الحج لا يجب على الفقير انما المراد به الآفاقى قبل وصوله الى الميقات فانه حينئذ اذا اراد دخول الحرم يجب عليه احرام احد النسكين وبدخوله الى مكة ووصوله الى الكعبة تعين عليه فرضية الحج سواء احرم به ام لا. (ارشاد السارى ۲۸ مبحث فى الفقير اذا وصل الى مكة اوالميقات)

﴿۳﴾ وفى الهندية: الفقير اذا حج ماشيا ثم ايسر لاحج عليه هكذا فى فتاوىٰ قاضى خان. (فتاوىٰ عالمگیریة ۱:۲۱۷ کتاب المناسک الباب الاول)



## د جمات د پاره زمکه ئې خرڅه کړه. په هغې پیسو باندې د حج د فرضیت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې پخوانی جمات له پوخ جوړولو دپاره زمکه خرڅۀ کړه، او ډیرې پیسې دهغه لاس ته راغلې، آیا ددې پیسو په وجه په هغه باندې حج فرض شو او که جمات جوړ کړی؟ او ددې پیسو نه کیدلو سره دا سړې مفلس دې؟ بینوا توجروا

المستفتی : راز محمد وزیر c/o حافظ رب نواز جنوبی وزیرستان ۲/۴/۸۲

**الجواب:** دا پیسې دهغه سړې ملکیت دې،﴿۱﴾ په هغه باندې باقاعده حج او زکوة فرض دې، البته که د حولان حول یا اعلان داخله په وخت کښې دا پیسې پوره نه وې،نو دا فرض به پرې نه وی﴿۲﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ چونکه دغه پیسې اوسه پورې هغه د جمات جوړولو کښې خرچ کړې نه دی، یعنی باقاعده ئې جمات نه دې جوړ کړې، نودا دهغه د ملکیت نه خارج نه دی، بلکه ددۀ په ملکیت کښې دی،او که چنده ئې جمات ته ورکړې وی،نو بیاهم دا پیسې وقف نه دی، بلکه ددۀ مملوک دی، کما صرح به الشاه اشرف علی تھانوی رحمه الله فی امداد الفتاوی او هم په دې فتاوی کښې ئې د تصحیح الاغلاط په حوالې سره لیکلې دی،چه دامسئله اوسه پورې صفاشوې نه ده، چه چنده د جماتونو او مدرسو وغیره د معطی د ملک نه خارج ده او که نه،که اهل علم غور وکړی نوپه دې حوالې باندې بنده په الملتقط فی الفتاوی الحنفیه کښې یوه جزئیه موندلې ده،دهغې جزئیه نه معلومیږی،چه صحیح داده چه خرچ کولو نه مخکښې چنده دمعطی دملک نه نه ؤځی.

**كما فى الملتقط ۲۷ اذا جمع دراهم لكفن ميت ففضل او كفنه غيره، يصرف الى المعطين فان لم يوجدوا يصرف الى كفن مثله فان تعذر ذلك يتصدق به انتهىٰ، وفى الهندية ۲:۴۶۰ رجل اعطى درهما فى عمارة المسجد او نفقة المسجد او مصالح المسجد صح لانه وان كان لا يمكن تصحيحه تمليكا بالهبة للمسجد فاثبات الملك للمسجد على هذا الوجه صحيح فيتم بالقبض...... (ازمرتب)**

﴿۲﴾ **قال العلامة الحصكفى: والعبرة لوجوبها وقت خروج اهل بلدها وكذا سائر الشروط قال الشامى اى يعتبر وجودها فى ذلك الوقت. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۱۵۹ مطلب فى فروض الحج وواجباته)**

## په مشترک مال کښ د حج د فرضيت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښ چه دڅو سرو مشترکه مال وی، نو په هغې کښ به کوم يو شراکت دار حج ادا کوی، او په چاباندې حج فرض دې، په صحيح سند سره ئې ؤليکئ؟ بينوا توجروا

المستفتي: علی محمد خسرووروی ريگی غزا بند کوئټه ۹/۳/۸۲

**الجواب:** که د هر شريک حصه مقدار فرضيت ته رسی نو هر يو باندې حج فرض دې، گنی په چا باندې هم فرض نه دې. (معتبرات فقه)﴿۱﴾. وهو الموفق

## په مشترک مال کښې د حج د فرضيت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښ چه مونږ څلور رونړه يوځائي ؤسيږو، درې ورونړه وادۀ کړې دی، او يو وادۀ نه دې کړې، اوس مونږ دومره مال لرو چه يو ورور حج کولې شی، نو په دې باندې مشر ورور حج وکړی او که کشر ورور له وادۀ وکړو؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل الرحيم لس نائيک دته خيل بنوں ۲۴ رمضان ۱۳۹۹ھ

**الجواب:** تاسو د ټولو مشترک مال نقد او زر وغيره فرضی تقسيم وکړئ، دهغې نه پس تاسو اندازه ؤلګوئ، چه په هر يو ورور باندې حج فرض دې او که نه؟ د مشترک مال نه د حج د فرضيت اندازه لګولو داسې طريقه ده﴿۲﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة محمد امين الشامي: (قوله ذی زاد وراحلة) افاد انه لا يجب الا بملک الزاد وملک اجرة الراحلة فلا يجب بالاباحة او العارية كما فی البحر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۵۴ كتاب الحج)

﴿۲﴾ دې فرضی تقسيم سره چه هر کله د يو ورورحصه معلومه شی که د هر يو په حصه کښې دومره رقم راشی چه په دې سره دحج ټول اخراجات پوره کيږی نوپه هرحصه دار باندې حج فرض دې.........(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د مشترک مال نه د حج کونکې فقير ذمه د فريضه حج نه ساقطيږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښ چه دمحمد رفيق والد، والده او کشرانو ورونړود مشترکه مال نه حج وکړو، اوس والد محمد رفيق ته ؤوئيل چه دا کال تۀ حج ته لاړ شه، ليکن محمد رفيق ؤوئيل چه زما دا حج د فرض حج بدل نشی کيدې، ځکه چه دا مشترک مال دې، اوس سوال دادې، چه که محمد رفيق ددې اشتراک نه جدا حالت کښ مالدار شی، نو په هغه به دوباره حج لازم وی او که نه؟ يا هم هغه د مشترک مال نه کړې شوي حج کافي دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد رفيق مردان ۲۵/۷/۷۵

**الجواب:** که دمشترک مال نه ستاحصه (دفرضی تقسيم په اعتبارسره) دحج دپاره کافی وی، نو په تا باندې حج فرض دې، تۀ ددې مشترک مال نه حج کولې شې، او که ستا حصه کمه وی، او د ميقات نه دعام حاجيانو شان د عمرې نيت وکړې، او په اتمه ذی الحجه د حج نيت وکړې، نو په دې صورت کښ به هم ستا فريضه ادا شی، په تا باندې به آئنده حج فرض نه وی﴿۲﴾. وهو الموفق

## د حج د نصاب په اندازه د مال مالک نه وی، په هغې کښ صرف د تصرف اجازت وی، نو حج به فرض نه وی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښ چه يوې ښځې ته د والدينو

---

(بقيه حاشيه) گنی دمال مشترکه په کل نفع باندې مجموعی طورسره حج نه فرض کيږی. (ازمرتب)

﴿۱﴾ وفی الهندية: ومنها القدرة علی الزاد والراحلة بطريق الملک او الاجارة دون الاعارة والاباحة سواء كانت الاباحة من جهة من لامنة له عليه كالوالدين والمولودين او من غيرهم كالاجانب. (فتاویٰ عالمگيريه ۱: ۲۱۷ كتاب المناسک الباب الاول)

﴿۲﴾ وفی الهندية: الفقير اذا حج ماشيا ثم ايسر لا حج عليه هكذا فی فتاویٰ قاضی خان.

(فتاویٰ عالمگيريه ۱: ۲۱۷ كتاب المناسک الباب الاول)

د میراث نه هیڅ ملاؤ نشو، او دهغې خاوند هم وفات شو، البته ددې ښځې زامن ښه پیسې ګټي، او مور ته ورکوي، آیا ددې په وجه په هغې باندې حج فرض دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: خیال حنان اورکزئ ابوظهبی امارات ۱۲ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که هغې ښځې ته خاوند یا اولاد بطور تملیک کافی مال ورکړې وی، نود شرط موجودیدلو په وجه په هغې حج فرض دې، او که اولاد صرف اختیار ورکړې وی، نودا په هغې باندې مالداره کیدې نشی ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د حرامو سره مخلوط مال باندې د حج کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې غلا کولو سره مال جمع کړو، بیا ئې دخپل حلال مال سره ګډ کړو او تجارت ئې شروع کړو، او ډیر مال ئې وګټلو، آیا په دې مال باندې حج کول جائز دی؟

المستفتی: عبد الرحمٰن وزیرستانی

**الجواب:** چونکه دا مخلوط مال دهغه سړې ملکیت دې، لهذا دطاقت لرلو په صورت کښې هغه باندې حج فرض دې، په مال حرام سره حج ادا کیږی، لیکن د ثواب نه به محرومه وی. ﴿۲﴾ (کمافی الهندیة ۲:۲۲۰)﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة محمد امین الشامی: (قوله ذی زاد وراحلة) افاد انه لا یجب الا بملک الزاد وملک اجرة الراحلة فلا یجب بالاباحة او العاریة کما فی البحر.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۵۴ کتاب الحج)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: ویجتهد فی تحصیل نفقة حلال فانه لا یقبل بالنفقة الحرام کما ورد فی الحدیث مع انه یسقط الفرض عنه معها ولا تنافی بین سقوطه وعدم قبوله فلا یثاب لعدم القبول ولا یعاقب عقاب تارک الحج.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۵۲ مطلب فی من حج بمال حرام)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ویجتهد فی تحصیل نفقة حلال فانه......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## قرض اخستلو سره حج ادا کول او بیا د حرام

## او حلال مخلوط مال نه قرضه ادا کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړې په مال کښې اویا فیصده د حرام مال ګډون دې، ددې وجه نه هغه قرضه واخستله او حج ئې ادا کړو، او د حج کولو نه پس په دې مخلوط مال سره قرضه ادا کوی، آیا دا حج په حلال مال سره شوې دې او که په حرام مال سره؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......... ۲۲ ذی الحجه ۱۴۹۴ھ

**الجواب:** دې سړې په حلال مال سره حج ادا کړو، او قرضه ئې د خپل پلیت مال نه بالاختلاط ادا کړه﴿۱﴾، البته په دهٔ باندې د حقوقو ادا کول واجب دی، دې دپاره چه د مال حرام نه ئې ذمه فارغه شی﴿۲﴾.

**نوټ:** په خالص مال حرام سره چه په هغې کښې د حلالو ګډون نه وی، نه لږ نه ډیر، دهغې نه قرض ادا کول ناجائز او حرام دی، لیکن داسې مال اقل قلیل وی. وهو الموفق

## په مال حرام سره د حج د ادا کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په حرام او ناجائزه

---

(بقیه حاشیه) لا یقبل الحج بالنفقة الحرام مع انه یسقط الفرض معها وان کانت مغصوبة کذا فی فتح القدیر.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۲۰ الباب الاول فی تفسیر الحج)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: اذا اراد الرجل ان یحج بمال حلال فیه شبهة فانه یستدین للحج ویقضی دینه من ماله کذا فی فتاویٰ قاضی خان فی المقطعات.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۲۰ کتاب المناسک الباب الاول)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: ان ماوجب التصدق بکله لا یفید التصدق ببعضه لان المغصوب ان علمت اصحابه او ورثتهم وجب رده علیهم والاوجب التصدق به.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۸ مطلب فی التصدق من المال الحرام)

دولت سره حج ادا کیږی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مقدس خان کرکله بنوں ۱۳۹۸/۹/۲۸ه

**الجواب:** دهغه حج ادا کیږی، لیکن دثواب نه محرومه کیږی. (شامی)﴿۱﴾ وهوالموفق

## په حرام مال سره حج کونکی د ذمې نه د حج فریضه ساقطیږی، لیکن ثواب ورته نه حاصلیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د یو سړې افعال او کردار ډیر خراب دې، دهغه جائیداد او زمکه ټوله د دهوکې او د فراډ ده، د یتیمانو مال اخستل، دروغ وئیل، وغیره دا ټول دهغه کسب دې، یعنی ټول مال ئې د حرامو دې، اوس ئې د حج دپاره داخله لیږلې ده، آیا دا حج ادا کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد رحمن سیر غربی باړیان ۸ شوال ۱۳۹۵ه

**الجواب:** کوم سړې چه په مال حرام حج کوی دهغه حج به قبول نه وی، د ثواب نه به محرومه وی، اګر چه د ذمې نه ئې فریضه ساقطه شوه.

**کما فی ردالمحتار ۲: ۱۹۱ وفی البحر ویجتهد فی تحصیل نفقة حلال فانه لا یقبل بالنفقة الحرام کما ورد فی الحدیث مع انه یسقط الفرض عنه معها ولا تنافی بین سقوطه وعدم قبوله فلا یثاب لعدم القبول ولا یعاقب عقاب تارک الحج﴿۲﴾. وهوالموفق**

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی البحر ویجتهد فی تحصیل نفقة حلال فانه لا یقبل بالنفقة الحرام کما ورد فی الحدیث مع انه یسقط الفرض عنه معها ولا تنافی بین سقوطه وعدم قبوله فلا یثاب لعدم القبول ولا یعاقب عقاب تارک الحج ای لان عدم الترک یبتنی علی الصحة وهی الاتیان بالشرائط والارکان والقبول المترتب علیه الثواب یبتنی علی اشیاء کحل المال والاخلاص کما لو صلی مرائیا او صام واغتاب فان الفعل صحیح لکنه بلا ثواب. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۵۲ مطلب فی من حج بمال حرام)**

**﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۵۲ مطلب فی من حج بمال حرام)**



## په سرکاری امداد سره حج کولو سره فریضه ادا کیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په یو سړې حج فرض شو، او اوسه پورې ئې ادا کړې نه وی، او حکومت هغه لره د سرکاری ملازمت په وجه حج دپاره ؤلیږی، چه ځلورمه حصه خرچ خپله وکړه، او درې حصې به حکومت برداشت کړی، نو آیا په دې طریقې سره به دهغه نه د حج فریضه ساقطه شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاضی سعید احمد چوهړ هریال پنډی ۲۲ شعبان ۱۴۰۳ ه

**الجواب:** ددې ملازم نه به د حج فریضه ساقطه شی، او ذمه به ئې فارغه شی، ځکه چه دا ملازم دچا نه حج بدل نه کوی، تردې پورې چه تبرع ضررسان شی﴿۱﴾. وهوالموفق

## د حکومت په امداد سره نفلی حج دپاره د تللو حکم:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې حج ادا کړې دې، اوس که حکومت پاکستان داسې سړې د حج دپاره لیږی، او حکومت خرچه برداشت کوی، داسې سړې دپاره د حرمین شریفین د زیارت نه مشرف کیدل شرعا صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد حسن برهانی مدرسه دارالهدیٰ
ټنډوالا یارحیدرآباد ۲۴ شعبان ۱۴۰۲ه

**الجواب:** د چا په امداد سره حج کول ممنوع نه دی﴿۲﴾ په دې کښې څه شرعی

---

**﴿۱﴾ وفی الهندیة: ومنها القدرة علی الزاد والراحلة بطریق الملک او الاجارة دون الاعارة والاباحة سواء کانت الاباحة من جهة من لامنة علیه کالوالدین والمولودین او من غیرهم کالاجانب کذا فی السراج...... الفقیر اذا حج ماشیا ثم ایسر لاحج علیه هکذا فی قاضی خان (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۱۷ کتاب المناسک الفصل الاول)**

﴿۲﴾ چه دا سیاسی رشوت نه وی ګنی بیا به دا امداد قبلول جائز نه وی (سیف الله حقانی)

قباحت نشه، حکومت چاله په خوشامد یا مداهنت باندې مجبورولې نه شی﴿۱﴾. وهو الموفق

## په سرکاری امداد سره حج نه تلل جائز دی.

## هرکله چه دا سیاسی رشوت نه وی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه بعضې خلق په سرکاری امداد سره حج دپاره ځی، آیا شرعا دا جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا ناموس خان باره ۲۳/۵/۸۷

**الجواب:** د حکومت په امداد سره حج دپاره تلل ناجائز نه دی﴿۲﴾، که حکومتی خزانه په لهو ولعب او ناجائز عیاشو کښې خرچ کولې شی، نو آیا دا د قوم خوش قسمتی نه ده، چه ددې خزانې نه یوه حصه په اسلامی مدرسو او حج باندې خرچ شی﴿۳﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة محمد امین: قوله ولو وهب الاب لابنه الخ وكذا عكسه وحيث لا يجب قبوله مع انه لا يمن احدهما على الآخر يعلم حكم الاجنبى بالاولىٰ ومراده افادة ان القدرة على الزاد والراحلة لابد فيها من الملک دون الاباحة والعارية كما قدمناه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۵٦ کتاب الحج)

﴿۲﴾ وفى الهندية: ومنها القدرة على الزاد والراحلة بطريق الملک او الاجارة دون الاعارة والاباحة سواء كانت الاباحة من جهة من لامنة له عليه كالوالدين والمولودين او من غيرهم كالاجانب كذا فى السراج الوهاج. (فتاوىٰ عالمگیریه ۱: ۲۱۷ کتاب المناسک)

﴿۳﴾ وفى الهندية: مايوضع فى بيت المال اربعة انواع...... الثالث الخراج والجزية وما صولح عليه بنو نجران ...... وما اخذه العاشر من المستأمنين...... وتصرف تلک الى عطايا المقاتلة وسد الثغور ...... والى بناء الرباطات والمساجد...... والى ارزاق الولاة واعوانهم والقضاة والمفتين والمحتسبين والمعلمين والمتعلمين ويصرف الى كل من تقلد شيأ من امور المسلمين والى مافيه صلاح المؤمنين كذا فى المحيط.

(فتاوىٰ عالمگیریه ۱: ۱۹۰، ۱۹۱ فصل ما یوضع فی بیت المال کتاب الزکوٰة)



## په هبې سره د مالداره کیدلو په صورت کښې د حج د ادا کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید صاحب جائیداد او غنی سړې دې، او خپله ئې حج کړې دې، د زید څلور ځامن بالغ دی، لیکن مفلسان دی، هغه یو ځوی ته پیسې ورکړې او حج دپاره ئې ؤلیږو، چه کله زید وفات شو، نو د هغه ځامن دولت مند او مالدار شو، اوس د زید ځوی چه په حالت د غریبۍ کښې کوم حج ادا کړې وو، آیا اوس په هغه باندې د غنی کیدلو نه پس دوباره حج فرض دې او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد افضل شاه لکی مروت ۱۰/۱۰/۱۹۷۵

**الجواب:** دا غریب د پلار د بخشش په وجه مالدار شوې دې، او میقات پورې رسیدلو نه پس دا سړې په حکم د مکی کښې دې، بهرحال دا سړې به د فرضو نیت وکړی، او دوباره په دهٔ باندې حج اداکول واجب نه دی. (ماخوذ از شامی ج۲ ص۱۹۵)﴿۱﴾. وهو الموفق

## په حج بدل کښې بیت الله شریف لیدلو سره په فقیرباندې حج نه فرض کیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه

(۱) که یو فقیر سړې د حج بدل دپاره ؤلیږلې شی، نو د لیږونکی ذمه خلاصیږی او که نه؟

(۲) که دغې فقیر د مخکښې نه حج نه وی کړې نو بیا څه حکم دې؟

(۳) په حج بدل کښې که مامور به تنګدست او غریب وی، چه په هغه باندې خپل حج فرض نه وی، او نه ئې مخکښې حج کړې وی،

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: الفقير الآفاقى اذا وصل الى ميقات فهو كالمكى...... وليفيد انه يتعين عليه ان لاينوى نفلا على زعم انه لا يجب عليه لفقره لانه ما كان واجبا وهو آفاقى فلما صار كالمكى وجب عليه فلو نواه نفلا لزمه الحج ثانيا الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۵۵ کتاب الحج قوله للآفاقی لالمکی)

آیا د بیت الله شریف په لیدلو سره په هغه باندې خپله حج فرض کیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی : حافظ عبدالرزاق محل سکون ایاز قلعه بنون ۱/۲/۷۴

**الجواب**: (۱) داسې سړي لره د حج بدل دپاره لیږل جائز دی. (شامی)

(۲) ذمه ئې فارغه کیږی. ﴿۱﴾

(۳) دا مختلف فیه مسئله ده، البته د اکثر اهل تحقیق په نزد په هغه باندې حج نه فرض کیږی. والتفصیل فی الشامية ﴿۲﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (فجاز حج الصرورة من لم يحج) يراد به الذى لم يحج عن نفسه اى حجة الاسلام. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲ : ۲۶۱ مطلب فى حج الصرورة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: (تنبيه) قال فى نهج النجاة لابن حمزة النقيب بعد ما ذكر كلام البحر المار اقول وظاهره يفيد ان الصرورة الفقير لا يجب عليه الحج بدخول مكة وظاهر كلام البدائع باطلاقه الكراهة اى فى قوله يكره احجاج الصرورة لانه تارك فرض الحج يفيد انه يصير بدخول مكة قادراً على الحج عن نفسه وان كان وقته مشغولا بالحج عن الآمر وهى واقعة الفتوىٰ فليتأمل، قلت: وقد افتى بالوجوب مفتى دار السلطنة العلامة ابو السعود وتبعه فى سكب الانهر وكذا افتى به السيد احمد بادشاه والف فيه رسالة وافتى سيدى عبد الغنى النابلسى بخلافه والف فيه رسالة لانه فى هذا العام لا يمكنه الحج عن نفسه لان سفره بمال الآمر فيحرم عن الآمر ويحج عنه وفى تكليفه بالاقامة بمكة الى قابل ليحج عن نفسه ويترك عياله ببلده حرج عظيم وكذا فى تكليفه بالعود وهو فقير حرج عظيم ايضا واما ما فى البدائع فاطلاقه الكراهة المنصرفة الى التحريم يقتضى ان كلامه فى الصرورة الذى تحقق الوجوب عليه من قبل كما يفيده ما مر عن الفتح نعم قدمنا اول الحج عن اللباب وشرحه ان الفقير الآفاقى اذا وصل الى ميقات فهو كالمكى فى انه ان قدر على المشى لزمه الحج ولا ينوى النفل على زعم انه فقير لانه ما كان واجبا ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د حج د منظورې نه مخکښ اېښودلې شوې رقم امانت وی

**سوال**: څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه کومو خلقو تیر کال د حج دپاره پیسې په بینک یا چا سره جمع کړې وی، او دحج منظوری ئې نه وی شوې، او هم په هغې پیسو ئې آئنده کال د تلو اراده وی، نو په هغې پیسو به سالانه زکوة واجب وی او که نه؟

المستفتی : نامعلوم ......

**الجواب**: دحج دپاره داخل شوې رقم د منظورې نه مخکښ امانت وی، لهذا په دې باندې به باقاعده زکوة واجب وی﴿۱﴾. وهو الموفق

## دفاعی فنډ کښ پیسې ورکولو سره د فریضه حج نه ذمه نه خلاصیږی

**سوال**: څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه راقم الحروف د دوؤ کالو نه د بیت الله د حج درخواستونه ورکړی دی، لیکن منظور شوې نه دی، اوس

---

(بقيه حاشيه) عليه وهو آفاقى فلما صار كالمكى وجب عليه حتى لو نواه نفلا لزمه الحج ثانيا، لكن هذا لا يدل على ان الصرورة الفقير كذلك لان قدرته بقدرة غيره كما قلنا وهى غير معتبرة بخلاف مالو خرج ليحج عن نفسه وهو فقير فانه عند وصوله الى الميقات صار قادرا بقدرة نفسه فيجب عليه وان كان سفره تطوعا ابتداء ولو كان الصرورة الفقير مثله لما صح تقييد ابن الهمام كراهة التحريم بما اذا كان حجه عن الغير بعد تحقق الوجوب عليه وتعليله لكراهة بانه تضيق الوجوب عليه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۶۲ قبيل مطلب العمل على القياس دون الاستحسان)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجيم: ويخالفه ما فى معراج الدراية فى فصل زكاة العروض ان الزكاة تجب فى النقد كيفما امسكه للنماء او للنفقة وكذا فى البدائع فى بحث النماء التقديرى.

(البحر الرائق ۲: ۲۰۶ كتاب الزكوٰة)

دحج پیسې په بینک کښ جمع دی او بل طرف ته کافرانو سره جنګ هم شروع دې، نو آیا زه دا پیسې د حج په ځائې په دفاعی فنډ کښ ورکړم، یا حج اداکړم، زما عمر دوه اویا کاله دې، د ژوند بهروسه نشته، چه بل کال ته به ژوندې یم او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد نعیم صاحب لاله رخ واه کینټ ۳۰/۱۲/۷۱

**الجواب:** په دفاعی فنډ کښ د پیسو ورکولو ډیر لوئې اجر دې، لیکن په دې کښ پیسې ورکولو سره د حج نه ذمه نه خلاصیږی﴿۱﴾. لکه څرنګه چه په دې فنډ کښ پیسې ورکولو سره د سرکاری بل او ټیکس نه ذمه نه فارغه کیږی. لهذا اهم فالاهم لره مقدم کړه﴿۲﴾. وهو الموفق

## د بالغ کیدلو نه پس دوباره د حج د فرضیت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه ما د خپلو والدینو سره تقریبا د پنځو شپږو کالو په عمر کښ حج کړې وو. اوس الحمد لله زه بالغ او غنی یم. بعضې خلق وائي چه هغه حج نفل وو. په تا دوباره حج فرض شوې دې، آیا دا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: میر هشیم وزیرستانی ۹/۱۲/۱۹۸۲

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: وان ملکه فیه ای فی الوقت فلیس له صرفه الی غیر الحج فلو صرفه لم یسقط الوجوب عنه وهذا تصریح بما علم ضمنا ومنطوق لما عرف مفهوما. (ارشاد الساری ۱:۳۳ باب شرائط الحج)

﴿۲﴾ قال العلامة النووی: (قوله فقال رجل یا رسول الله ﷺ ان امرأتی خرجت حاجة وانی اکتتبت فی غزوة کذا وکذا قال انطلق فحج مع امرأتک) فیه تقدیم الاهم من الامور المتعارضة لانه لما تعارض سفره فی الغزو وفی الحج معها رجح الحج معها لان الغزو یقوم غیره فی مقامه عنه بخلاف الحج معها.

(شرح النووی فی ذیل مسلم ۱:۴۳۴ قبیل باب مایقول اذا رجع من الحج)



**الجواب:** دفرض حج دپاره بالغ کیدل شرط دی، د بلوغت نه مخکښ حج کولو سره فرض حج نه ساقط کیږی، د صاحب استطاعت دپاره د بلوغت نه پس دوباره حج کول ضروری دی(لباب﴿۱﴾ هدایه ﴿۲﴾. وهو الموفق

## د فریضه حج د تاخیر دپاره د اولاد لونډان کیدل شرعی عذر نه دې:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه زۀ د خپل کور والا سره حج دپاره تلل غواړم، لیکن زما کشر ځوی ناوادۀ کړې دې، ددې وجه نه دهغه لونډ کیدل زما په حج کولو کښ حائل کیدې شی؟ زما عمر پنځه اویا کالو نه زیات دې، ددې وجه نه د زړۀ د اطمینان دپاره ددې کار پوښته کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: ډاکټر محمد نعیم خان صوبیدار میجر واه کینټ

**الجواب:** د ستاسو د فریضه حج د ادا کولو دپاره د اولاد لونډ کیدل شرعی

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: الثالث البلوغ وهو شرط الوجوب والوقوع عن الفرض لا عن الجواز او الصحة فلا یجب علی صبی ممیز او غیر ممیز، فلو حج...... فهو نفل لا فرض لکونه غیر مکلف فلو احرم ثم بلغ فلوجدد احرامه یقع عن فرضه والافلا الخ.

(ارشادالساری ۲۵ باب شرائط الحج)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغینانی: وانما شرط الحریة والبلوغ لقوله علیه الصلاة والسلام ایما عبد حج عشر حجج ثم اعتق فعلیه حجة الاسلام وایما صبی حج عشر حجج ثم بلغ فعلیه حجة الاسلام. قال ابن الهمام: روی الحاکم من حدیث محمد بن المنهال حدثنا یزید بن زریع حدثنا شعبة عن الاعمش عن ابی ظبیان عن ابن عباس رضی الله عنهما قال، قال رسول الله ﷺ ایما صبی حج ثم بلغ الحنث فعلیه ان یحج حجة اخری...... وقال صحیح علی شرط الشیخین.

(الهدایة مع فتح القدیر ۲: ۳۲۵ کتاب الحج)

عذر نه دي﴿۱﴾، تاسو ضرور د حج دپاره تیاری وکړئ. وهو الموفق

## ورومبې د ځوی واده وکړی او که حج ادا کړی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلې باره کښې چه زما رور ناواده کړې دې، نو والد صاحب د مشر ورور واده وکړی او که اول حج ادا کړی؟

المستفتی: شاه جهان تبوک سعودی عرب /یکم ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که په والد صاحب باندې حج فرض شوې وی، نو په دې صورت کښې د ځوی د واده نه مخکښې دې د حج فریضه ادا کړی. (کما فی الدر المختار ج۲ ص۳۳۲)﴿۲﴾. وهو الموفق

## د محرم نه بغیر د حج د پاره تللو کراهت کښې عرب او عجم برابردی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلې باره کښې چه د کنډو بوډې ګانو ښځو طبعی حالت د نکاح دپاره قابل نه وی، لهذا که هغه د معتمد سړې سره حج دپاره لاړه شی، نو ولې جائز نه ده؟ او دا د عدم جواز مسئله صرف د عجمو دپاره ده، یا که د عربو دپاره هم ده، ځکه چه په مکه مکرمه کښې به هم کنډې ښځې وی، چه دهغوی به څوک محرم نه وی. هغوی خو هلته حج ادا کوی، آیا دهغوی دپاره هم د محرم نه بغیر حج ادا کول ممنوع دی؟ زمونږ په علاقه کښې دا مشهوره ده، چه د داسې کنډو بوډې ګانو حج قبول نه دې، چه نکاح اونه کړی، یا محرم ورسره نه وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الکریم پیښور

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: اذا وجد مایحج به وقد قصد التزوج یحج به ولا یتزوج لان الحج فریضة اوجبها الله تعالیٰ علی عبده کذا فی التبیین.
(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۱۷ بحث ومنها القدرة علی الزاد والراحلة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وفی الاشباه معه الف وخاف العزوبة ان کان قبل خروج اهل بلده فله التزوج ولو وقته لزمه الحج. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۵٦ کتاب الحج)



**الجواب:** د ښځې دپاره د خاوند یا محرم نه بغیر حج دپاره تلل مکروه تحریمی دی، په دې حکم کښې د عرب او عجم هیڅ فرق نشته. البته د کومې ښځې چه مقام د مقدار سفر نه کم وی، نو هغې دپاره خاوند یا محرم شرط نه دې.

فی الدر المختار مع زوج او محرم بالغ عاقل غیر مجوسی ولا فاسق...... لامرأة حرة ولو عجوزاً فی سفر...... ولو حجت بلا محرم جاز مع الکراهة (مختصراً)﴿۱﴾.
وهو الموفق

## بوډۍ ښځه غیر محرم سره حج ته نشی تلې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلې باره کښې چه دیوې ښځې نوسې پیدا شوې دی، یعنی د اتیاؤ کالو نزدې ده، آیا دا ښځه د کلې غیر محرم سړې سره حج دپاره تللې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی مشرف خان سیدو سوات

**الجواب:** بوډۍ ښځه د غیر محرم سره حج دپاره نشی تللې.

کما فی شرح التنویر ومع زوج او محرم بالغ عاقل غیر مجوسی ولا فاسق...... لامرأة حرة ولو عجوزا فی سفر، وفی ردالمحتار ۲:۱۹۹ (قوله ولو عجوزاً) ای لاطلاق النصوص بحر، وقال الشاعر ؎

لکل ساقطة فی الحی لاقطة
وکل کاسدة یوما لها سوق ﴿۲﴾. وهو الموفق

## یو پردي سړې خپل دینی ورور جوړولو سره هغه سره حج دپاره تلل جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلې باره کښې چه یوه ښځه چه دهغې

---

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۵۸ کتاب الحج)

﴿۲﴾ (الدر المختار مع ردالمحتار ۲:۱۵۸ کتاب الحج)

خاوند یا محرم نه وی، یو پردی سړي لره خپل دیني ورور جوړولو نه پس هغه سره حج یا عمرې ته تللي شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: مدرسه اشاعت قران شامی بالا پیښور ۱۶/۸/۱۹۷۷

**الجواب:** دښځې دپاره د خاوند یا محرم نه بغیر د حج په سفر باندې تلل حرام دی، پردي سړي په زباني ورور خور جوړولو سره محرم نه جوړیږي.

**کما فی شرح التنویر ومع زوج او محرم بالغ عاقل غیر مجوسی ولافاسق مع وجوب النفقة لمحرمها علیها لامرأة حرة ولو عجوزاً (بحذف یسیر) هامش ردالمحتار ۲:۱۹۹ ﴿۱﴾. وهوالموفق**

## که په ائر پورټ باندې محرم موجود وی. بیا هم سفر بغیر د محرم نه جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید په سعودی عرب مدینه منوره کښې مقیم دې، هغه وائي چه زما ښځه دې خپل پلار د کراچۍ ائرپورټ نه په هوائي جهاز کښې سوره کړې، او زه به په مقرره وخت کښې د جدې په هوائي اډه باندې موجود یم، نو ښځه به بوځم، او وائي چه ددې ځای علماؤ فتوی ورکړې ده، چه د ضرورت په وخت کښې ځوانه ښځه بغیر د محرم نه په هوائي جهاز کښې سفر کولې شی، لیکن دهغه د ښځې پلار وائي چه زما د لورعمر اتلس کاله دې.اود سفر نه واقف نه ده، لهذا شرعا دا بغیر د محرم نه سفر نشی کولې،او بله داچه د زید مجبوری هم نشته.هغه مالدار سړې دې دلته دې راشی او خپله ښځه دې بوځی.او خپل مور پلار سره دې ملاقات هم وکړی، چه اعلی عبادت دې، اوس په دې دواړو کښې د چا قول حق دې؟

بینوا من کتب الحنفیة بیانا شافیا توجروا اجرا وافیاً.

المستفتی: عبد الواحد ملتان

**الجواب:** د ښځې د پلارخبره حقه ده،دحدیث او فقه سره مطابق ده.........

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۵۸ کتاب الحج).



**قال رسول الله ﷺ لا یحل لامرأة تؤمن بالله والیوم الآخر ان تسافر سفرا فوق ثلثة ایام فصاعداً الا ومعها ابوها او اخوها او زوجها او ابنها او ذومحرم منها (رواه ابوداؤد) ﴿۱﴾. وبمعناه فی سائر کتب الاحادیث ﴿۲﴾. وفی الهندیة ۵:۳۶۶ ولا تسافر المرأة بغیر محرم ثلثة ایام فما فوقها ﴿۳﴾ وهکذا فی سائر کتب الفقه.**

البته دضرورت په وخت کښې د امام شافعی رحمه الله او حماد رحمه الله په قول باندې فتوی ورکول جائز دی، امام شافعی رحمه الله فرمائي چه د باوری ښځو سره تلل جائز دی، هرکله چه هغه ښځو سره محارم وغیره موجود وی.﴿۴﴾ او حماد فرمائي چه نیکانو سړو سره تللې شی.

**کما فی الهندیة ۵:۳۶۶ قال حماد رحمه الله لابأس للمرأة ان تسافر بغیر محرم مع الصالحین ﴿۵﴾. وهوالموفق**

## د حج د پاره بغیر د محرم نه سفر کول ګناه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې د سعودی عرب

﴿۱﴾ (سنن ابی داؤد ۱:۲۳۸ باب فی المرأة تحج بغیر محرم کتاب الحج)

﴿۲﴾ عن ابن عباس قال سمعت رسول الله ﷺ یخطب یقول: لا یخلون رجل بامرأة الا ومعها ذومحرم ولا تسافر المرأة الا مع ذی محرم فقام رجل فقال یارسول الله، ان امرأتی خرجت حاجة وانی اکتتبت فی غزوة کذا وکذا فقال انطلق فحج مع امرأتک.

(صحیح مسلم ۱:۴۲۴ کتاب الحج، صحیح البخاری ۱:۲۵۰ کتاب الحج)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۵:۳۶۶ الباب السادس والعشرون من الکراهیة)

﴿۴﴾ قالوا الشافعیة: ان یکون مع المرأة زوجها او محرمها او نسوة یوثق بهن اثنتان فاکثر، فلو وجدت امرأة واحدة فلا یجب علیها الحج وان جاز لها ان تحج معها حجه الفریضة بل یجوز لها ان تخرج وحدها لاداء الفریضة عند الامن.

(الفقه علی المذاهب الاربعة ۱:۵۵۲ شروط صحة الحج)

﴿۵﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۵:۳۶۶ قبیل الباب السابع والعشرون فی القرض والدین)

نه د خپل مور دپاره څو ځله د حج داخله وکړه، ليکن محرم نه کيدلو په وجه دهغې ښځې حج مؤخر کيدلو. اوس د محلې يو نيک او ايماندار سړې حج دپاره ځی، د ښځې د وارثانو دا اراده ده، چه حاجی کيمپ او جهاز پورې به ورسره اولياء لاړشی. او په جده ائيرپورټ باندې به دهغې ځوې هغې باندې حج وکړي، ليکن په هوائي جهاز کښې به دا ثلور پنځه ګنټې سفر بغير د محرم نه وی، شرعا ددې څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: سيد رحمٰن شاه حقانی ٢۴ جمادی الثانی ١۴٠٢ هـ

**الجواب:** بغير د محرم يا خاوند نه هر سفر کول معصيت دې، حـديث ورد بذالک﴿١﴾ وصرح به جميع ارباب الفتاوى﴿٢﴾.وهو الموفق

## د حاجنړې د پاره ليور يا د خاوند تره محارم نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه يوه ښځه حج ته تلل

﴿١﴾ عن ابن عباس رضى الله عنهما، قال: سمعت رسول الله ﷺ يخطب يقول: لا يخلون رجل بامرأة الا ومعها ذومحرم، ولا تسافر المرأة الا مع ذى محرم، فقال رجل، فقال يا رسول الله، ان امرأتى خرجت حاجة، وانى اكتتبت فى غزوة كذا وكذا، فقال انطلق فحج مع امرأتک، متفق عليه واللفظ لمسلم.
(بلوغ المرام ٢٢٥ كتاب الحج)

﴿٢﴾ قال العلامة الموصلى: ولا تحج المرأة الا بزوج او محرم اذا كان سفرا، لقوله عليه الصلاة والسلام، لا يحل لامرأة تؤمن بالله واليوم الآخر ان تسافر ثلاثة ايام فما فوقها الا ومعها زوجها او ذورحم منها، (رواه البخارى ومسلم ومالک وابوداؤد والترمذى واحمد) وقال عليه السلام لا تحج المرأة الا ومعها زوجها او ذورحم محرم منها والمحرم كل من لايحل له نكاحها على التابيد الخ.
(الاختيار لتعليل المختار ١٨٢:١ كتاب الحج)



غواړی، آيا هغه خپل ليور يا د خاوند تره سره تلې شی؟ بينوا توجروا

المستفتی: نجم الرحمٰن بقلم خود ٢٣/٥/١٩٧٢

**الجواب:** دا سړې نه محارم دی، او نه ازواج دی، لهذا دا ښځه ددې سړې سره حج ته نشی تلې﴿١﴾.وهو الموفق

## بغير د محرم نه حج ناجائز دې. ليکن د حج په صحيح کيدلو او ذمه خلاصيدلو کښې مانع نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه يو سړې د خپلې مور دپاره د حج داخله وکړې، حالانکه ځوی ئې په سعوديه کښې دې، که هغه کراچۍ نه جدې پورې صرف په جهاز کښې بغير د محرم نه سفر وکړې، نو ددې څه حکم دې. او دا حج ادا کيږی او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولوی محمد نبی رياض سعوديه ٢٨ سفر ١۴٠٣ هـ

**الجواب:** د کراچۍ نه جدې پورې دا بغير د محرم نه سفر ناجائز دې، ليکن د حج په صحيح کيدلو او ذمه فارغه کيدلو کښې مانع نه دې. (ماخوذ ازشاميه ﴿٢﴾.وهو الموفق

## په ډير حق مهر سره د حج د فرضيت مسئله او د هبې په صورت کښې د حج د فرضيت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه شاهد د خپلې لور

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله ومع زوج او محرم) ...... والمحرم من لايجوز له مناكحتها على التأبيد بقرابة اورضاع او صهرية كما فى التحفة.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ١٥٧:٢ كتاب الحج)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصكفى: ولو حجت بلا محرم جاز مع الكراهة ، قال ابن عابدين: اى التحريمية للنهى فى حديث الصحيحين لا تسافر امرأة ثلاثا الا ومعها محرم زاد مسلم فى رواية اوزوج. (الدر المختار مع ردالمحتار ١٥٩:٢ قبيل مطلب فى فروض الحج وواجباته

شاهدې نکاح د مشهود سره په يو لاکهـ او اويا زره روپۍ حق مهر باندې وکړه، شاهدې يو لاکهـ اويا زره روپۍ قبضه کړې، او ډير زر شاهدې دا پيسې خپل پلار ته ؤبخلې، اوس سوال دادې، چه په شاهدې باندې ددې پيسو په وجه حج فرض دې او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: قاري مولوی محمد زمان خطيب جامع مسجد ميران شاه شمالی وزيرستان ۱۹۹۰ء/۱۳/۵

**الجواب:** که دې جينۍ دا مهر د شوال د مياشتې داخليدو نه پس يعنی د حج د داخلې ؤرځو نه پس هبه کړې دې نو په پلار او لور دواړو باندې حج فرض شوې دې، او که د شوال يعنی د داخلې ؤرځو نه مخکښې ئې هبه کړې دی، نو صرف په پلار باندې حج فرض دې﴿۱﴾.وهوالموفق

## د حج ادا کولو د پاره د خاوند نه اجازت غوختلو ضرورت نشته

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه يوه ښځه مالداره شوې ده، او په هغې باندې حج فرض شوې دې، دا ښځه به د حج ادا کولو دپاره د خاوند نه اجازت غواړی او که نه؟

المستفتي: خيال حنان اورکزئ ابوظهبی امارات ۱۲ ربيع اول ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** که په دې ښځې باندې حج فرض وی، او محرم ورسره وی، نو د خاوند نه اجازت اخستل ضروری نه دی، د خاوند د اجازت نه بغير حج دپاره تلې شی.(ردالمحتار ۲:۲۰۰)﴿۲﴾.وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن الهمام: والوقت ايضا فلا يجب قبل اشهر الحج حتى لو ملک مابه الاستطاعة قبلها کان فی سعة من صرفها الی غيره وافاد هذا قيدا فی صيرورته دينا اذا افتقر وهو ان يکون مالکا فی اشهر الحج فلم يحج والاولیٰ ان يقال اذا کان قادرا وقت خروج اهل بلده ان کانوا يخرجون قبل اشهر الحج لبعد المسافة او قادرا فی اشهر الحج ان کانوا يخرجون فيها ولم يحج حتى افتقر تقرر دينا وان ملک فی غيرها وصرفها الی غيره لا شيئ عليه. (فتح القدير ۲: ۳۲۱ مقدمه يکره الخروج الی الحج اوذکره احد ابويه الخ)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: (قوله وليس لزوجها منعها) ای اذا کان معها محرم والا فله منعها کما يمنعها عن غير حجة الاسلام ولو واجبة ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د کمپنۍ نه اجازت اخستلو نه بغير نفلی حج کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه ما فرض حج ادا کړې دې،او اوس مې د نفلی حج دپاره پخه اراده کړې ده، زۀ حاضر وخت کښې په مدينه منوره کښې په يوه کمپنۍ کښې کارکوم،اوکمپنې راته اجازت نه راکوی، لهذا که چهټی ملاؤ نشی، او زۀ د کمپنۍ د اجازت نه بغير حج وکړم، نو ايا دا حج به صحيح وی؟ بينوا توجروا

المستفتي: صوفی فضل دين مدينه منوره ۲۱ شوال ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** که د کمپنۍ نه د چهټی اخستلو کوشش وکړې نو ډيره ښه ده، ګنې د اجازت نه بغير هم دا نفلی حج کول صحيح دی.وهوالموفق

ليکن د غير حاضرۍ د ؤرځو د تنخواه به حقدار نه وی. (سيف الله حقانی)

## د صحت د اميد په صورت کښې حج بدل صحيح نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه زما د والدې صحت کمزروې دې، او د زړۀ مريضه ده، دهغې د حج څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: شاه جهان تبوک سعودی عرب /يکم ربيع الثانی ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** که والده دې د زړۀ مريضه وی، او د صحت اميد ئې نه وی، او خپله حج نشی کولې،او په هغې حج فرض شوې دې، نوهغه به حج بدل کوی، ځکه چه صحتمند کيدل د حج دپاره شرط دې.که د صحت اميد وی،نو بيا حج بدل صحيح فه دې. (لما فی شرح التنوير علی هامش ردالمحتار. ج۲ ص۱۹۲)

---

(بقيه حاشيه) بصنعها کالمنذورة ...... وکذا لو دخلت مکة بعد مجاوزة الميقات غير محرمة لان حق الزوج لاتقدر علی منعه بفعلها بل بايجاب الله تعالیٰ فی حجة الاسلام رحمتی. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۵۸ قبيل مطلب فی فروض الحج وواجباته)

مکلف صحیح البدن، وفی الشامیة تحت قوله صحیح البدن فلا یجب علی مقعد ومفلوج وشیخ کبیر﴿۱﴾. وهوالموفق

## د عمرې په ادا کولو سره فریضه حج نه ادا کیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په یو سړي حج فرض شوې دې. لیکن هغه حج نه کوی، صرف هلته کښې لاړ شی او عمره ادا کړی، او واپس راشی، ددغې سړي څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالودود بائمال شریف بټګرام ۱۹ شوال ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په دغه سړي لازم دی چه حج ادا کړی ګنی د وعید مستحق دې﴿۲﴾. وهوالموفق

## په زمین حل کښې اوسېدونکو دپاره د طواف قدوم مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په اهل مکه طواف قدوم نشته، لیکن کوم خلق چه په حل صغیر یعنی د میقات او زمین حرم په مینځ کښې اوسیږی، په هغوی طواف قدوم شته او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی سید کرم شاه صوابی

**الجواب:** طواف قدوم یعنی طواف تحیة الکعبه د آفاقی دپاره چه مفرد بالحج یا قران کونکی وی، دهغوی دپاره سنت دې، او په اهل مکه او افاقی متمتع او معتمر باندې طواف قدوم نشته. (ارشاد الساری)﴿۳﴾ او فقهاؤ حل صغیر

﴿۱﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۵۴ کتاب الحج)

﴿۲﴾ عن علی رضی الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من ملک زادا وراحلة تبلغه الی بیت الله ولم یحج فلا علیه ان یموت یهودیا او نصرانیا وذلک ان الله تبارک وتعالیٰ یقول" ولله علی الناس حج البیت من استطاع الیه سبیلا" رواه الترمذی ومثله رواه الدارمی. (مشکواة المصابیح ۱: ۲۲۲ الفصل الثانی کتاب المناسک)

﴿۳﴾ قال العلامة الملا علی القاری: الاول طواف القدوم ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



د اهل مکې په حکم کښې شمار کړې دې. خلافا للقهستانی﴿۱﴾ فلیراجع الی ردالمحتار﴿۲﴾. وهوالموفق

## په زمین حل کښې اوسېدونکو دپاره د طواف وداع مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په حل صغیر یعنی میقات کښې دننه اوسېدونکو باندې طواف وداع واجب ده که نه؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولوی سید کرم شاه صوابی

**الجواب:** طواف وداع (طواف صدر) د میقات نه بهر آفاقی حاجی باندې واجب دی، او په اهل میقات او اهل مکه او معتمر باندې واجب نه دې. (ردالمحتار)﴿۳﴾ وهو الموفق

(بقیه حاشیه) ویسمی طواف التحیة...... وهو سنة...... للآفاقی دون المیقاتی والمکی المفرد بالحج والقارن...... بخلاف المعتمر ای المفرد بالعمرة والمتمتع ولو آفاقیا والمکی ای وبخلاف المکی اذا کان مفردا بالحج ومن بمعناه ای ومن سکن او اقام من اهل الآفاق بمکة وصار من اهلها فانه لا یسن فی حقهم. (ارشاد الساری ۹۶ باب انواع الاطوفة)

﴿۱﴾ قال العلامة شمس الدین الخراسانی القهستانی: وقد سن هذا الطواف للآفاقی ای الخارجی کما فی المتداولات لکن فی خزانة المفتیین انه واجب علی الاصح فلا یسن للمکی اذ لا قدوم له ویسن لاهل المواقیت وداخلها. (جامع الرموز ۱: ۴۵۵ کتاب الحج)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله للآفاقی) ای لا غیر فتح فلا یسن للمکی ولا لاهل المواقیت ومن دونها الی مکة سراج وشرح اللباب الا ان المکی اذا خرج للآفاق ثم عاد محرما بالحج فعلیه طواف القدوم لباب فهذا خلاف مافی القهستانی من انه یسن لاهل المواقیت وداخلها فافهم.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۸۱ مطلب فی طواف القدوم)

﴿۳﴾ قال العلامة الشامی: (ثم اذا اراد السفر طاف للصدر ای الوداع) وهو واجب الاعلی اهل مکة) افاد وجوبه علی کل حاج آفاقی مفرد او متمتع او......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د حیض په حالت کښې د طواف زیارت او سعی مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوه ښځه د حج دپاره لاړه، د حج په دوران کښې یعنی اتمې ذی الحجې نه اتلسمې ذی الحجې پورې په حیض کښې وه، طواف رکن چه فرض دې په مسجد حرام کښې کولې شی او که نه؟ بینوا توجروا!

المستفتی : جهانزیب جمال ګړهی مردان ۴/۱/۱۹۸۸

**الجواب:** داسې حائضه ښځه به ټول افعال د حج ادا کوی، سوا د طواف او سعی نه، او چه کله پاکه شی، نو طواف وغیره به کوی، که په اتلسم تاریخ باندې پاکه شی یا ددې نه مخکښې (شامی وغیره)﴿۱﴾ وهو الموفق

## په عرفات کښې د جمع بین الصلاتین مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې په عرفات کښې چه کومه جمع بین الصلاتین کیږی، که دا مونځونه بغیر د جمعې نه په خپل خپل وخت کښې ادا کړې شی، نو په حج کښې به نقصان راځی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی : حاجی ظفر الحق ۱۱/۱۲/۱۹۸۵

---

(بقیه حاشیه) قارن...... فلا یجب علی المکی ولا علی المعتمر مطلقا...... (ومن فی حکمهم) ای ممن کان داخل المواقیت وکذا من نوی الاستیطان قبل حل النفر کما مر. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۰۲ مطلب فی طواف الصدر)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وحیضها لا یمنع نسکا (من اعمال الحج) الا الطواف (والسعی فهو حرام من وجهین دخولها المسجد وترک واجب الطهارة) ولا شیئ علیها بتاخیره اذا لم تطهر الا بعد ایام النحر فلو طهرت فیها بقدر اکثر الطواف لزمها الدم بتاخیره لباب. (الدر المختار مع توضیح ردالمحتار ۲:۲۰۶ قبیل باب القران)



**الجواب:** په دې کښې هیڅ نقصان نشته﴿۱﴾. وهو الموفق

## په عرفات یا لاره کښې به د ماښام او ماسخوتن مونځ نه کوی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې که یو حاجی په عرفات کښې د ماښام مونځ وکړی، او مزدلفې ته لاړشی، یا ئې په لاره کښې په وخت کښې ادا کړی، او د ماسخوتن مونځ هلته کښې ادا کړی، آیا دا طریقه صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی : عبد الرحمٰن مشیط سعودیه

---

﴿۱﴾ په عرفات کښې د ماسپښین او مازیګر مونځ د جمع کولو بعضې شرطونه متفق علیه دی او بعضې مختلف فیه دی دهغې تفصیل دادې:

(۱)...... ددې دواړو مونځونو جمع کولو په وخت دحج په احرام کښې کیدل دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد شرط دی او د صاحبینو په نزد دواړو جمع کولو دپاره صرف د مازیګر د مونځ په وخت احرام کښې کیدل شرط دی.

(۲)......دواړه مونځونه جمعې سره اداکول دامام ابوحنیفه رحمه الله په نزد شرط دی د صاحبینو په دې کښې اختلاف دې او صحیح د امام ابوحنیفه رحمه الله قول دې.

(۳)......په دواړو مونځونو کښې د بادشاه وخت (خلیفه) یا دهغه د نائب امام جوړیدل که هغه مقیم وی او که مسافر، پس ددې نه علاوه بل امام سره ددې دواړو مونځونو جمع کول جائزنه دی، دبل چا په امامت کښې دجماعت کولو حکم د ځانله مونځ کونکی په شان دې، د صاحبینو په نزد دا جمع کول جائزدی.

(۴)......ماسپښین په مازیګر باندې مقدم کول یعنی اول د ماسپښین مونځ کول بیا د مازیګر، پس مازیګر په ماسپښین باندې مقدم کول جائزنه دی دا شرط متفق علیه دې.

(۵)......دجمع بین الصلاتین وخت کیدل او دا دعرفې په ورځ یعنی په نهم ذی الحجه د آفتاب د زوال نه پس د مازیګر د وخت داخلیدو نه مخکښې دې دا شرط هم متفق علیه دې.

(۶)......مکان او دا عرفات یا دې سره نزدې ځائې دې دا شرط هم متفق علیه دې. پس دجمع بین الصلاتین فی العرفات ټول شپږ شرطونه دی که په دې شرطونو کښې یو شرط هم بیا نه مونده شی نو دواړه مونځونه به ځانله ځانله په خپل خپل وخت کښې خپل ځائې کښې لوستلې شی (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**الجواب:** حاجی به د ماښام او ماسخوتن مونځ په عرفات کښې یا د مزدلفې په لاره کښې نه ادا کوی، که دا مونځونه ئې هلته ادا کړل، نو په مزدلفه کښې به دوباره ادا کوی، او د ماسخوتن په وخت کښې به دا دواړه مونځونه ادا کولې شی، اګر که د ماښام په وخت کښې مزدلفې ته رسیدلې وی. (شرح لباب﴿۱﴾ شامی﴿۲﴾). وهوالموفق

## د رمی جمرات دپاره کوتکاڼی د مزدلفې نه او که د لار نه راواخلی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه بعضې خلق د شیطان ویشتلو دپاره کوتکاڼی هم دهغه ځائي نه اوچتوی، ددې څه حکم دې؟ او دا کاڼی د کوم ځائي نه راخستل مستحب دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم......۱۹۷۳ء

---

[بقیه حاشیه] که یواځې وی نوځانله دې اوکړی اوکه دوه یا زیات سړی وی نو ماسپښین او مازیګردې په خپل خپل وخت کښې جماعت سره اداکړی. (عمدة الفقه ۴:۲۱۹)

منهاج السنن شرح جامع السنن کی دی: **وقال ابویوسف ومحمد لا یشترط له الامام ولا نائبه وفی البرهان ان قولهما اظهر من حیث الدلیل، وفی عصرنا وقع الاذن العام من السلطان بالجمع فی الخیام فافهم.**

(منهاج السنن شرح جامع السنن ۴:۱۳۹) ...... ازمرتب

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: **واما الوقت فوقت العشاء...... فلو وصل الی مزدلفة قبل العشاء لا یصلی المغرب حتی یدخل وقت العشاء.** (ارشاد الساری ۱۴۶ باب احکام المزدلفة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: **وصلی العشاءین باذان واقامة...... ولو صلی المغرب والعشاء فی الطریق او فی عرفات اعاده للحدیث...... والمکان مزدلفة والوقت وقت العشاء حتی لووصل الی مزدلفة قبل العشاء لم یصل المغرب حتی یدخل وقت العشاء.**

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۹۱،۱۹۲ قبیل مطلب فی الدفع من عرفات)



**الجواب:** د رمی جمار دپاره د مزدلفې نه یا د لارې نه کاڼی راؤچتول مستحب دی، او د مزدلفې نه سوا بل ځائي نه اوچتول هم جائز دی (شرح لباب)﴿۱﴾ او کوم ځائي کښې چه شیطانان ویشتلې کیږی، هلته نه راؤچتول مکروه تنزیهی دی (هندیه)﴿۲﴾. وهوالموفق

## ټول سر یا څلورمه حصه خرول یا کمولو نه بغیر د احرام نه نه وځی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړې ویښته درې یا څلور انچه لوئې وی، اوعمره یا حج کولو نه پس ئې په قینچۍ سره د دوه درې ځائي کټ کړی، نوآیا دا سړې په دې باندې د احرام نه وتلې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الحق سعودی عرب c\o دفتر اهتمام ۱۳ محرم ۱۴۰۳ ه

**الجواب:** د احنافو په نزد ټول سر یا څلورمه حصه خریل یا کمول ضروری دې،﴿۳﴾ او ددې نه کم خرئیلو یا کمولو والا د احرام نه نه وځی. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: **یستحب ان یرفع من المزدلفة سبع حصیات...... او من الطریق ای طریق مزدلفة فهو جائز وقیل مستحب...... ویجوز اخذها من کل موضع ای بلا کراهة الا من عند الجمرة فانه مکروه...... قال فی الفتح وماهی الاکراهة تنزیه.**

(ارشاد الساری ۱۴۸ فصل فی رفع الحصی)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: **ویستحب ان یأخذ حصی الجمار من المزدلفة او من الطریق ولا یرمی بحصاة اخذها من عند الجمرة فان رمیٰ بها جاز وقد اساء کذافی السراج الوهاج.** (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۳۳ الکلام فی الرمی)

﴿۳﴾ قال العلامة المودود الموصلی الحنفی: **والسنة حلق الجمیع فان نقص من ذلک فقد اساء لمخالفة السنة ولا یجوز اقل من الربع ونظیره مسح الرأس فی الوضوء فی الاختلاف والدلائل والتقصیر ان یأخذ من رؤس شعره واقله مقدار الانملة.**

(الاختیار لتعلیل المختار ۱:۱۹۸ فصل فی افعال الحج)

## د احرام په حالت کښ دیو بل حلق او قصر کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ که حجاج حضرات دیو بل دپاره حلق یا قصر وکړی، نو ددې څه حکم دې، او هغه په خپله احرام کښ وی، آیا په دهٔ باندې د احرام په حالت کښ د بل محرم دپاره حلق یا قصر کولو سره دم لازمیږی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عنایت الله ریاض سعودی عرب ۳ رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** واضحه دې وی چه مناسک ادا کولو نه پس او د مناسک د رفض د ارادې په وخت کښ محرم خپل سر په خپله او د بل محرم سر هم خرئلې شی. اما الثانی فلما رواه البخاری ۱: ۳۸۰ فی حدیث عمرة الحدیبیة وجعل بعضهم یحلق بعضا حتی کاد بعضهم یقتل بعضا غما ای ازدحاما ﴿۱﴾، واما الاول فلما فی ارشاد الساری ۱۵۴ الی مناسک الملا علی قاری: واذا حلق ای المحرم راسه ای رأس نفسه او رأس غیره ای ولو کان محرما عند جواز التحلل ای الخروج من الاحرام باداء افعال النسک لم یلزمه شیئ انتهی ﴿۲﴾ قلت ویدل علیه الحدیث لانه لما جاز حلق بعض المحرمین لبعض عند قصد الانتهاء جاز عند حقیقة الانتهاء بطریق اولیٰ فافهم. وهوالموفق

## په حج کښ د ښځو او سړې د سر ویښته کټ کولو مقدار

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه د حج په

---

﴿۱﴾ (الصحیح للبخاری ۱: ۳۸۰ باب الشروط فی الجهاد والمصالحة مع اهل الحرب الخ)

﴿۲﴾ (ارشاد الساری الی مناسک القاری ۱۵۴ قبیل فصل فی زمان الحلق ومکانه وشرائط جوازه)



دوران کښ به ښځې او سړې څومره ویښته کټ کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: انیس احمد ۲۴ شوال ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د سړې دپاره ټول سر خرئیل یا کمول پکار دی، او د ښځې دپاره د ګوتې د یو بند په مقدار کمول (د ټول سر نه) پکار دی﴿۱﴾، د څلورمې حصې نه کم باندې اکتفا کول جنایت دې، د سړې او ښځې دواړو دپاره﴿۲﴾. وهوالموفق

## د محرم په حالت د احرام کښ سر خرئیلو کښ د شافعی رحمه الله او د حنفی د مذهبونو تفصیل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه کله یو محرم د احرام په حالت کښ سر ؤخرولو، نو په دې حالق باندې د امام شافعی رحمه الله په نزد صدقه نشته، او د امام اعظم رحمه الله په نزد په حالق باندې صدقه ده، د امام شافعی رحمه الله دپاره دلیل دادې، چه یو ځل ابوطلحه رضی الله عنه د احرام په حالت کښ د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سر مبارک ؤخرولو، او ویښته مبارک دهغه سره وو، نبی کریم صلی الله علیه وسلم ؤفرمائیل: چه ځان سره څه ویښته ؤساته او باقی پاتې په صحابه کرامو باندې د تبرک دپاره تقسیم کړه، او امام ابوحنیفه رحمه الله فرمائي چه که یو محرم بل محرم لره د احرام په حالت کښ سر ؤخروی، نو په دې حالق باندې صدقه ورکول دی. کما ذکره کنز الدقائق باب الجنایات،

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: والتقصیر ان یأخذ الرجل والمرأة من رؤس الشعر ربع الرأس مقدار الانملة وفی البدائع قالوا یجب ان یزید فی التقصیر علی قدر الانملة...... وحلق الکل افضل اقتداء بالنبی صلی الله علیه وسلم کذا فی الکافی.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۳۱ الباب الخامس فی کیفیة اداء الحج)

﴿۲﴾ قال العلامة الموصلی: والسنة حلق الجمیع فان نقص من ذلک فقد اساء لمخالفة السنة ولا یجوز اقل من الربع ونظیره مسح الرأس فی الوضوء فی الاختلاف والدلائل.

(الاختیار لتعلیل المختار ۱: ۱۹۸ فصل فی افعال الحج)

که د امام صاحب رحمه الله دپاره په دې مسئله کښې څه دلیل وی نو وضاحت ئې وکړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا زاهد الرحمن صورتی کله ضلع کرک ۴/۱۰/۱۹۸۴

**الجواب:** مناسک ختمیدو په وخت کښې یو محرم د بل محرم سر خرؤلې شی، کما فی حدیث صلح الحدیبیة فی البخاری ۱: ۳۸۰ ﴿۱﴾ وصرح به فی ارشاد الساری ۱۵۴ ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د حج افعال ختم کیدلو نه پس د خپل او د بل د سر حلق کول جائزدی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د رمی جمره عقبه اونحر نه پس خپله د خپل ځان حلق کول جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا شهزاده صاحب ترنګزئ

**الجواب:** افعال د حج ختمیدلو نه پس هر محرم خپل سر او د نورو محرمینو سرونه خرؤلې شی.

کما فی ارشاد الساری ۱۵۴ عند الخروج من الاحرام باداء افعال النسک جاز للمحرم حلق رأسه ومحرم آخر انتهیٰ ﴿۳﴾ وبدلیل حدیث عمرة الحدیبیة ﴿۴﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (بعد حدیث طویل) فلما راوا ذلک قاموا فنحروا وجعل بعضهم یحلق بعضا حتی کاد بعضهم یقتل بعضا غما. (صحیح البخاری ۱: ۳۸۰ باب الشروط فی الجهاد والمصالحة مع اهل الحرب کتاب الشروط)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: واذا حلق المحرم رأسه او رأس غیره ولو کان محرما عند جواز التحلل ای الخروج من الاحرام باداء افعال النسک لم یلزمه شیئ.
(ارشاد الساری ۱۵۴ قبیل فصل فی زمان الحلق ومکانه)

﴿۳﴾ (ارشاد الساری ۱۵۴ قبیل فصل فی زمان الحلق ومکانه)

﴿۴﴾ (بعد حدیث طویل) فلما راوا ذلک قاموا...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د کمزورو ښځو د پاره یا د بیمار دپاره د رمې جمراتو پریخودل یا وکیل مقررول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د ښځو دپاره د رش د وجه نه رمی جمرات پریخودل جائز دی او که نه؟ او بیمار سړې یا ښځه د رمې دپاره وکیل مقررولې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: رشید ګل سعودیه عربیه ۱۹/۴/۱۹۸۴

**الجواب:** کمزورې خلق او زنانه د شپې په وخت کښې رمې جمرات کولې شی، تر د سحرختلو پورې، په هغوی نه دم واجب دې، او نه په دې کښې څه کراهیت شته. (مناسک ملا علی قاری ص۱۵۸) ﴿۱﴾ او هر کله چه د ښځې دپاره د رش د ویرې نه رمې جمرات پریخودل جائز دی، او په هغې باندې دم نه لازمیږی، (کما فی ردالمحتار ۲ ص۵۱۲) ﴿۲﴾ نو وکیل مقررول ورلره په طریقه اولی جائز دې، او بیمار دپاره هم وکیل مقررول جائز دی. هرکله چه خپله په رمې

---

(بقیه حاشیه) فنحروا وجعل بعضهم یحلق بعضا حتی کاد بعضهم یقتل بعضا غما. (صحیح البخاری ۱: ۳۸۰ کتاب الشروط باب الشروط فی الجهاد)

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: ووقت الکراهة مع الجواز من الغروب الی طلوع الفجر الثانی من غده ولو اخره الی اللیل کره الا فی حق النساء وکذا حکم الضعفاء ولا یلزمه شیئ ای من الکفارة لکن یلزمه الاساءة لترکه السنة وان کان بعذر لم یکره ای تأخیره ولو اخره ای رمی الیوم الی الغد لزمه الدم والقضاء ای فی ایامه.
(ارشاد الساری ۱۵۸ قبیل فصل فی وقت الرمی فی الیومین)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله کزحمة) عبارة اللباب الا اذا کان لعلة او ضعف او یکون امرأة تخاف الزحام فلا شیئ علیه...... قلت وهو شامل لخوف الزحمة عند الرمی فمقتضاه انه لو دفع لیلا لیرمی قبل دفع الناس وزحمتهم لا شیئ علیه......فالاولیٰ تقیید خوف الزحمة بالمرأة ویحمل اطلاق المحیط علیه لکون ذلک عذرًا ظاهرا فی حقها یسقط به الواجب بخلاف الرجل او یحمل علی ما اذا خاف الزحمة...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

باندې قدرت نه لري. (هندیه ۱:۲۳۶)﴿۱﴾. وهوالموفق

## یو سړي حرم شریف ته لاړو، او پولیس ونیولو او واپس ئې ولیږلو

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړي سعودي ته لاړو، بیائې احرام وتړلو او په اشهرالحج کښې حرم شریف ته لاړو، لیکن حکومت هغه لره افعال حج ته پرې نخودو، او دهغه ترحیل ئې وکړو، یعنی واپس پاکستان ته ئې راؤلیږه، اوس دهغه سره دومره مال نشته، چه حج وکړي، په هغه حج واجب دې او که نه..؟ بینوا توجروا

المستفتی: فرید الله حقانی /۲ ربیع الثانی ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا سړې محصر دې، که دۀ لره د احرام تړلو نه پس افعال حج نه منع کړې شوې وی،﴿۲﴾

وهو کفقیر آفاقی وصل الی میقات فی وجوب الحج ان لم یحرم و کان اشهر الحج.

(ماخوذ از ردالمحتار ۲:۳۳۶)﴿۳﴾. وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه) لنحو مرض ولذاقال فی السراج الا اذا کانت به علة او مرض او ضعف فخاف الزحام فدفع لیلا فلا شیئ علیه.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۹۳ مطلب فی الوقوف بمزدلفة)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: مریض لا یستطیع الرمی توضع الحصاة فی کفه لیرمی به او یرمی عنه غیره بامره کذا فی محیط السرخسی فی صفة الرامی.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۳۶ فصل فی المتفرقات)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: المحصر من احرم ثم منع عن مضی فی موجب الاحرام سواء کان المنع من العدو اوالمرض اوالحبس اوالکسر اوالقرح اوغیرها من الموانع من اتمام ما احرم به حقیقة او شرعا کذا فی البدائع. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۵۵ الباب الثانی عشر فی الاحصار)

﴿۳﴾ قال العلامة الشامی: وفی اللباب الفقیر الآفاقی......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## نفلي حج بهتر دې او که نفلي صدقه

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړي فرض حج کړې دې، اوس نفلي حج کوی، هغه دپاره دا نفلي حج کول بهتردی او که داپیسې په غریبانانو او مسکینانو باندې صدقه کول بهتردی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اشرف علی صوابی اډه /۳/۳/۱۹۸۲

**الجواب:** کومو اهل علمو چه خپل عمر تعلیم او تعلم ته وقف کړې دې، په هغوی باندې صدقه کول د بیشمیره نفلي حجونو نه بهتر دہ، البته هغه حاجت مند چه په رسمونو او رواجونو کښې د مال خرچ کولو ارمان کوی، په هغوی باندې د صدقه کولو نه نفلي حج کول بهتر دی. (ماخوذ از ردالمحتار ۲:۳۴۸)﴿۱﴾. وهوالموفق

## د یوم عرفه او یوم جمعه په مطابقت سره د حج اکبر مسئله او په وارد شده حدیث کښې کلام

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه کله یوم عرفه

---

(بقیه حاشیه) اذا وصل الی میقات فهو کالمکی...... وینبغی ان یکون الغنی الآفاقی کذلک اذا عدم الرکوب بعد وصوله الی احد المواقیت فالتقیید بالفقیر لظهور عجزه عن المرکب ولیفید انه یتعین علیه ان لا ینوی نفلا علی زعم انه لا یجب علیه لفقره لانه ما کان واجبا وهو آفاقی فلما صار کالمکی وجب علیه فلو نواه نفلا لزمه الحج ثانیًا.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۵۵ کتاب الحج)

﴿۱﴾ قال العلامة محمد امین الشامی: قال الصدقة افضل من الحج تطوعا کذا روی عن الامام لکنه لما حج وعرف المشقة افتی بان الحج افضل ومراده انه لو حج نفلا وانفق الفا فلو تصدق بهذه الالف علی المحاویج فهو افضل...... قال الرحمتی والحق التفصیل فما کانت الحاجة فیه اکثر والمنفعة فیه اشمل فهو الافضل......واذا کان الفقیر مضطرا او من اهل الصلاح او من آل بیت النبی ﷺ فقد یکون اکرامه افضل من حجات وعمر وبناء ربط.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۷۵ مطلب فی تفضیل الحج علی الصدقة)

او یوم جمعه په یوه ؤرځ واقع شی، نو هغې ته حج اکبر وائي، او دهغې باره کښې یو حدیث هم دې، چه په دغه ؤرځ باندې حج کول د اویاؤ حجونو برابر ثواب لری، ددې مسئلې تفصیل څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: راجه ګل حسن حقانی بنوں لکی مروت ۱۹۸۳/۱۰/۱۳/

**الجواب:** د فقه مطابق ددې حج د اویاؤ حجونو برابر ثواب دې، البته ددې متعلق وارد شده حدیث کښې کلام دې.

**كما فى شرح التنوير على هامش الشامية ۲:۳۴۸ لو قفة الجمعية مزية سبعين حجة، وفى ردالمحتار: وفى الشرنبلالية عن الزيلعى افضل الايام يوم عرفة اذا وافق يوم الجمعة وهو افضل من سبعين حجة فى غير جمعة رواه رزين بن معاوية فى تجريد الصحاح ولكن نقل المناوى عن بعض الحفاظ ان هذا حديث باطل لا اصل له﴿۲﴾﴿۳﴾. وهو الموفق**

---

**﴿۱﴾ وفى المنهاج: اعلم انه ليس الحج الاكبر فى تعبير القرآن والحديث ما اشتهر على السنة العوام ان الحج الاكبر ماكان فيه يوم عرفة يوم الجمعة بدليل ان الله تعالىٰ طلق الحج الاكبر على حج الصديق الاكبر، فالحج الاكبر هو الحج مطلقا ويقال للعمرة الحج الاصغر، نعم للحج الذى يكون يوم عرفة فيه يوم الجمعة له فضل كبير روى رزين فى تجريد الصحاح عن طلحة بن عبيد الله بن كريز مرسلا افضل الايام يوم عرفة اذا وافق يوم جمعة فهو افضل من سبعين حجة فى غير يوم جمعة كذا فى جمع الفوائد وقالوا لم نقف على اسناده نعم اقره الفقهاء. (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذى ۴:۱۸۲ قبيل باب ماجاء فى الكلام فى الطواف)**

**﴿۲﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۲۷۵ مطلب فى فضل وقفة الجمعة)**

**﴿۳﴾ وقال الملا على قارى: رواه رزين بن معاوية فى تجريد الصحاح واما ما ذكره بعض المحدثين فى اسناد هذا الحديث بانه ضعيف فعلى تقدير صحته لا يضر فى المقصود فان الحديث الضعيف معتبر فى فضائل الاعمال عند جميع العلماء من ارباب الكمال، واما قول بعض الجهال بان هذا الحديث موضوع فهو باطل ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)**



## د حج په وجه د ګناهونو د معافئ مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې قاتل دې، او حرام خور دې، دحج په ادا کولو سره به ددهٔ دا ټول ګناهونه معاف شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد حقانی ۵ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که دې حاجی توبه ؤویستله، نو هغه ته د حقوق العباد نه علاوه ټول صغائر او کبائر معاف کیږی. لنصوص ورد بذلک، او که توبه ئې نه وی ویستلې، نو د حج په ادا کولو سره صغائر په اتفاق سره معاف کیږی، او په کبائرو کښې اختلاف دې.﴿۱﴾

**كما فى شرح التنوير: هل الحج يكفر الكبائر قيل نعم كحربى اسلم وقيل غير المتعلقة بالآدمى كذمى اسلم، وقال عياض اجمع ..........**

---

**(بقيه حاشيه) مصنوع مردود عليه ومنقلب اليه لان الامام رزين بن معاوية العبدرى من كبراء المحدثين ومن عظماء المخرجين ونقله سند معتمد عند المحققين وقد ذكره فى تجريد صحاح الست فان لم يكن رواية صحيحة فلا اقل من انها ضعيفة كيف وقد اعتضد بما ورد ان العبادة تضاعف فى يوم الجمعة مطلقا بسبعين ضعفا بل بمأة ضعف على ما سيأتى الخ. (الحظ الاوفر فى الحج الاكبر فى ذيل ارشاد السارى ۳۱۹ باب المتفرقات)**

**﴿۱﴾ وفى المنهاج: ان الاصل فى تكفير الكبائر التوبة كما صرح به القاضى عياض فلا يقطع بتكفير الحج الكبائر لظاهر الاحاديث ولكن ليس معنى التكفير انه سقط عنه قضاء مافات منه من الصلاة والصوم والزكاة وسقط عنه الدين وحقوق العباد بل معنى التكفير سقوط اثم تاخير العبادات واثم مطل الدين وغيره، وعفو الكبائر التى لا بدل لها كالزنا وشرب الخمر، وعفو حقوق الله تعالىٰ اذا مات قبل القدرة على ادائها، وعفو حقوق العباد بارضاء الخصوم عنه هذا ملخص كلام الفقهاء والمحدثين. (منهاج السنن شرح الترمذى ۴:۸۶ باب ثواب الحج والعمرة)**

اهل السنة ان الكبائر لا يكفرها الا التوبة (۲: ۳۴۹) ﴿۱﴾. وهو الموفق

## په حج سره د ګناهونو د معاف کيدلو تفصيل:

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه په حديث نبوی ﷺ کښې دی من حج فلم يرفث ولم يفسق رجع كيوم ولدته امـه، آيا ددې حديث مطلب دا دې، چه د حج نه مخکښې دده نه چه کوم عبادات ماليه او بدنيه پاتې شوې دی، هغه معاف کيږی، يا افعال مذمومه معاف کيږی؟ بينوا بالتفصيل توجروا عند الجليل

المستفتی: عبد القدوس ماله ډهيری، رستم مردان ۱۹۷۳/۲/۲۴

**الجواب:** په حج سره ګناه صغيره او هغه حقوق الله چه دهغې دپاره قضا نه وی، معاف کيږی، او حقوق العباد او هغه عبادتونه چه دهغې دپاره قضا شته، نه معاف کيږی، او د کبيره ګناهونو د معاف کيدلو هم اميد شته ﴿۲﴾ وهو الموفق

## په حج سره د حقوق العباد د معاف کيدلو صورت

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه په حج سره

﴿۱﴾ (الدر المختار على هامش ردالمحتار ۲: ۲۷۲ مطلب فی تكفير الحج الكبائر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: هل الحج يكفر الكبائر قيل نعم كحربی اسلم وقيل غير المتعلقة بالآدمی كذمی اسلم وقال عياض اجمع اهل السنة ان الكبائر لا يكفرها الا التوبة ولا قائل بسقوط الدين ولو حقا لله تعالىٰ كدين صلاة وزكاة نعم اثم المطل وتاخير الصلاة ونحوها يسقط وهذا معنى التكفير على القول به.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۲۷۲ مطلب فی تكفير الحج الكبائر)

(وهكذا فی البحر الرائق ۲: ۳۳۸ باب الاحرام مبحث العرفات كلها موقف)



ټول صغيره او کبيره دواړه قسمه ګناهونه معاف کيږی، او س بعضې عالمان فرمائي چه حقوق العباد نه معاف کيږی، ليکن د احاديثو د عموم په وجه په دې کښې د صغيره او کبيره هيڅ تخصيص نشته، ددې مسئلې وضاحت مطلوب دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: ارشاد الرحمن خميس مشيط ۱۹۷۴/۷/۱۱

**الجواب:** د بعضو په نزد د ابن ماجه حديث: فاجيب الى ما سال، په بناء باندې په حج سره حقوق العباد هم معاف کيږی، په دې معنی سره چه الله تعالى به دې مظلوم ته يوه لويه درجه ورکولو سره راضی کړی، او دې ظالم لره به معاف کړی، والتفصيل فی ردالمحتار ج۲ ص ۳۴۹، ۳۵۱ فليراجع. ﴿۱﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: لحديث ابن ماجه فی سننه المروی عن عبد الله بن كنانة بن عباس بن مرداس ان اباه اخبره عن ابيه ان رسول الله ﷺ دعا لامته عشية عرفة فاجيب انی غفرت لهم ماخلا المظالم فانی آخذ للمظلوم منه فقال ای رب ان شئت اعطيت المظلوم الجنة وغفرت للظالم فلم يجب عشية عرفة فلما اصبح بالمزدلفة اعاد الدعاء فاجيب الى ما سال الحديث، وقال ابن حبان ان كنانة روى عنه ابنه منكر الحديث و كلاهما ساقط الاحتجاج وقال البيهقی هذا الحديث له شواهد كثيرة ذكرناها فی كتاب الشعب فان صح بشواهده ففيه الحجة والا فقد قال تعالىٰ ويغفر مادون ذلك لمن يشاء وظلم بعضهم بعضا دون الشرك، وروى ابن المبارك انه ﷺ قال ان الله عزوجل قد غفر لاهل عرفات واهل المشعر وضمن عنهم التبعات فقام عمر فقال يارسول الله هذا لنا خاصة قال هذا لكم ولمن اتى من بعدكم الى يوم القيامة فقال عمر رضی الله عنه كثر خير ربنا وطاب وتمامه فی الفتح وساق فيه احاديث اخر والحاصل ان حديث ابن ماجه وان ضعف فله شواهد تصححه والآية ايضا تؤيده ومما يشهد له ايضا حديث البخاری مرفوعا من حج ولم يرفث ولم يفسق رجع من ذنوبه كيوم ولدته امه وحديث مسلم مرفوعا ان الاسلام يهدم ماكان قبله وان الهجرة تهدم ماكان قبلها وان الحج يهدم ماكان قبله الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۷۲ مطلب فی تكفير الحج الكبائر

# چهل مسائل حج

د مسائل حج متعلق مختلف قسم کتابونه لیکلي شوي دي، په پښتو ژبه کښې مفتي صاحب لیکلي شوي رساله (مسائل حج) هم ضروري او په اهمو مسائلو باندې مشتمله ده، په هغې کښې د حج او عمرې هغه مسائل ذکر کړي شوي دي، چه ډېر ضروري دي، او عوام په هغې کښې اکثر غلطي کوي، د هغې رسالې نه یو څو اهم او ضروري مسئلې د عوامو د فائدې دپاره په فتاوی کښې شاملولې شي. از مرتب

**مسئله:**(۱) **احرام:** د حج یا عمرې نیت کولو ته وائي چه دهغې نه پس تلبیه اوویلې شي، عوام څادرونو ته احرام وائي، دا غلطه ده، څادرونو ته داحرام څادرونه وئیلې شي. (معتبرات فقه)

**مسئله:** (۲) **اضطباع:** دې ته وائي چه د طواف په وخت کښې اووه واړه چکرو کښې ښي لاس او اوږه د څادر نه بهر پریخودلې شي.

**مسئله:**(۳) **رمل:** هغې عمل ته وئیلې شي، چه د طواف په اولنی درې چکرو کښې په ټوپونو سره اوګې خوزولو سره نزدې نزدې قدمونه ایښودلو سره تیز تیز تلل، لیکن منډه به نه وهي.

**مسئله:** (۴) **هدی:** هغې ګډه، چیلې، غوا، مینبه او اوښ ته وئیلې شي، چه په منی اوحرم کښې ذبح کولې شي، او په هغې کښې د قرباني شرائط موجود وي.

**مسئله:** (۵) **جنایت:** د احرام یا حرم بې حُرمتی کولو ته وئیلې شي.

**مسئله:** (۶) **جزا او کفاره:** د جنایت سزا ته وئیلې شي.



**مسئله:** (۷) **دم:** د ګډې وغیره حلالولو ته وئیلې شي.

**مسئله:** (۸) **صدقه:** د سرسایه په مقدار غله وغیره خیراتي ورکولو ته وئیلې شي.

**مسئله:** (۹) **زمین حرم:** مکه معظمه او د مکې معظمې نه څلور واړو طرفونو ته یو معلومې زمکې ته وئیلې شي.

**مسئله:**(۱۰) **زمین حل:** د حرم د زمکې نه تر بهرمیقاته پورې زمکې ته وئیلې شي.

**مسئله:** (۱۱) **میقات:** هغې مقام ته وئیلې شي، د کوم ځائي نه چه د حج یا عمرې احرام تړلې شي. (معتبرات فقه)

**مسئله:** (۱۲) **آفاق:** د میقات نه بهر زمکې ته وئیلې شي.

**مسئله:** (۱۳).. که یو متمتع عمره ادا کړي، او بیا مکه کښې پاتې شي، نو دا متمتع ددې عمرې او حج په مینځ کښې عمرې کولې شي، او په هغه باندې دم لازم نه دې. (ارشاد الساری، منحة الخالق وغیره)

**مسئله:** (۱۴) په رمضان کښې عمره مستحب ده، او ددې عمرې ثواب د حجة الوداع برابر دې. (ابوداؤد)

**مسئله:** (۱۵) چاسره چه دومره مال وي، چه دهغه د حیثیت مطابق د هغه کرایه، نفقه او دهغه د اهل عیال د نفقې دپاره د واپس کیدو پورې کافی وي، نو په هغه باندې حج فرض دې. (شامی)

**مسئله:**(۱۶) په چاباندې چه قرض وي، لکه مهر وغیره، ددې قرض نه علاوه که مخکښې مقدار مال دهٔ سره وي، نو په دهٔ باندې حج فرض دې، ګني نه دې. (شامی)

**مسئله:** (۱۷) که د یو تاجر ذریعه معاش تجارت وي، نو په هغه به حج هغه وخت کښې فرض وي، چه د کرایئ او نفقې نه علاوه دهٔ سره دومره مال باقی وي، چه په هغې باندې د تجارت کاروبار چلیدې شي. (هندیه)

**مسئله:** (۱۸) د چا سره چه دومره مال وی، چه د حج دپاره کافی وی، لیکن د مدینې منورې ته د تللو او د تبرکاتو وغیره گنجائش ورسره نه وی، نو په هغه حج فرض دې. (قواعد الفقه)

**مسئله:** (۱۹) که د چا سره مال وی، لیکن د اوسیدو کور ئې نه وی، نو که هغه د قافلو د روانیدو نه مخکښ یا د. شوال شروع کیدو نه مخکښ کور وانه خستلو، نو په هغه حج فرض شو. (هندیه)

**مسئله:** (۲۰) که فقیر سړې تکلیف برداشت کړی، او میقات ته خپل ځان ؤرسوی، او د حج نیت وکړی، یا د فرض حج نیت وکړی، نو دهغه ذمه د حج د فریضې نه خلاصه شوه، که ددې نه پس غنی شو، نو په هغه دوباره حج فرض نه دې، او که دا فقیر په میقات کښ د نفلی حج نیت وکړی، نو دا نفل حج شو، او فرض حج به بیا ادا کوی. (شرح لباب)

**مسئله:** (۲۱) که ښځه د خاوند یا محرم نه بغیر د حج سفر اختیار کړی، نو حج ادا شو، لیکن دا سفر د گناه سفر دې، اګر چه په بندرګاه یا ائرپورټ باندې محرم یا خاوند ولاړ وی.

**مسئله:** (۲۲) محرم هرهغه سړې ته وئیلې شی چه دهغه سره نکاح همیشه دپاره حرام وی، البته ددې فتنې په زمانه کښ رضاعی ورور، دیوث او بې غیرته خاونداودځوانې ښواخې خپل ځوم سره په هرسفرباندې تلل جائزنه دی (شامی)

**مسئله:** (۲۳) د حاجیانو سره جلب کول د ثواب کار دې، که د ثواب یا اکرام یا امداد په ارادې سره وی، او که د ریا، فخر یا د حاجیانو د نزدیکت حاصلولو دپاره وی، نو د عذاب کار دې، دغه رنګه د حاجیانو استقبال که د دعا کولو یا اکرام کولو یا امداد کولو دپاره وی نو د ثواب کار دې، او که د نورو غرضونو دپاره وی، نو رسم قبیح او کارعذاب دې. (قواعد شرع)

**مسئله:** (۲۴) دصلاة احرام په وخت کښ به اوږې او سرپټوی. (شرح لباب، قواعدفقه)

**مسئله:** (۲۵) د صلاة احرام نه پس متصل نیت کول یا تلبیه وئیل نه فرض دی



او نه شرط دی، لهذا که د موسم د خرابۍ په وجه سره صلاة احرام په ائرپورټ کښ ادا کړی، او نیت او تلبیه د جهاز د روانیدو نه پس وکړی، نو په دې کښ هیڅ ګناه نشته. (قواعد فقه)

**مسئله:** (۲۶) کوم خلق چه د حج تمتع اراده لری، لکه پاکستانی حاجیان، نو د عمرې احرام ؤتړی، دهغه دپاره او دغه رنګه د نورو محرمو دپاره د طواف نه مخکښ اضطباع کول خلاف سنت دی. (شرح لباب)

**مسئله:** (۲۷) چه کله مکې معظمې ته ؤرسی، نو هغه ته اجازت دې چه اول سامان وغیره مناسب ځائې ته ؤرسوی، او دهغې نه پس طواف یا عمره وکړی. (شرح لباب)

**مسئله:** (۲۸) د طواف د نیت کولو نه پس دې د حجر اسود طرف ته لاړ شی، او خوله او دواړه لاسونه او تندې دې په حجر اسود باندې کیږدی، او درې ځله دې ښکل کړی خو چه د چپ چپ آواز رانشی.

**مسئله:** (۲۹) په حجر اسود خوشبو وغیره وی، ددې وجه نه محرم دپاره احتیاط پکار دې، چه دهغې نه چپه وانخلی. (قواعد فقه)

**مسئله:** (۳۰) چه کله رکن یمانی ته ؤرسی، نو دواړه لاسونه یا صرف یو لاس به په هغې ایګدی، نه به هغه ښکلوی او نه به پرې تندې ایږدی، البته د امام محمد رحمه الله په نزد د رکن یمانی ښکلول سنت دی، او که لاس ایښودل مشکل وی، نو اشاره نه دی کول پکار، د اشارې نه بغیره دې روان شی.

**مسئله:** (۳۱) که د رش د وجه نه رمل نه کیږی، نو طواف لره دې مؤخر کړی، او که د رش د کمیدلو امید نه وی، نو طواف دې شروع کړی، او په اول دریو چکرو کښ که موقع ملاؤشی نو رمل دې وکړی. (شامی)

**مسئله:** (۳۲) خانه کعبې ته کتل عبادت دې، لیکن د طواف دوران کښ به خانه کعبې ته نه ګوری. (غنیه، ایضاح نووی)

**مسئله:** (۳۳) که طواف کونکې دمونځ ګزارومخې ته تیریږی، نو جائز دی. (شامی)

**مسئله:** (۳۴) که چا په ناپاکه کپړه کښ طواف وکړو، نو دا مکروه دی، لیکن په دهٔ باندې نه دم واجب دې، او نه صدقه، که دا طواف فرض وی او که واجب یا سنت یا نفل وی، او که لږه کپړه ناپاکه وی او که ټوله ناپاکه وی.

**مسئله:** (۳۵) صلاة طواف په مسجد حرام، زمین حرم، او زمین حل هر ځائي کښ کول جائز دی، البته افضل دادی، چه د مقام ابراهیم علیه السلام شاته وی، یا د میزاب رحمت لاندې وی. (شامی) **مسئله:** (۳۶) که چا زیات طوافونه وکړل، او په آخر کښ د هر طواف دپاره دوه دوه رکعته مونځونه ادا کړل نو ذمه ئې فارغه شوه، اګر چه دا طریقه مکروه ده، (شامی، شرح لباب)

**مسئله:** (۳۷) په آب زمزم سره تبرکا چار اندام او غسل کولې شی، البته په دې باندې استنجاء او د بې اودسه سړې اودس کول، د جنابت غسل کول، او پلیتی وینځل مکروه دی، (شرح لباب) په جمات کښ اودس او غسل کول مکروه دی، ددې وجه نه په آب زمزم د جمات نه بهر په پاک ځائي کښې اودس او غسل کول پکار دی. (بحر، شامی)

**مسئله:** (۳۸) د آب زمزم په ولاړه څکل بغیر د کراهت نه جائز دی، او داسې نه ده چه ددې په ولاړه باندې څکل مستحب دی. (شامی)

**مسئله:** (۳۹) که چا د څلورمې حصې نه کم سر ؤخرؤلو، یا کم ئې کړو، نو دې د احرام نه وتلې نه دې، که کپړې واغوندی یا خوشبو استعمال کړی، نو په دهٔ باندې صدقه یا دم لازم کیږی. (شامی وغیره)

**مسئله:** (۴۰) چا چه فرض حج نه وی کړې، دهغه دپاره افضل دادی، چه اول حج اداکړی، اودحج نه پس دې د روضې مبارکې زیارت ته لاړشی، اوکه داحج نفلی وی، نوهغه ته اختیاردې، چه اول د زیارت دپاره مدینې منورې ته لاړ شی، یا اول حج ادا کړی، او د کوم حاجی چه لاره په مدینه منوره وی، هغه دې اول د روضې مطهرې زیارت وکړی، (شرح لباب) په مدینه منوره کښ حجره شریف ښکلول، لاس پرې ایږدل، سجده ورته کول، ټیټیدل او زمکه ښکلول وغیره ټول ناجائز دی. (شرح لباب)



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه څلورم جلد

# مسائل منثوره



.............

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

.....قال الله تعالى:.....

ويطوف عليهم ولدان مخلدون، اذا رايتهم حسبتهم لؤلؤا منثورا.

......[الدهر: ۱۹]......

............



# مسائل منثوره

## د دارالحرب د اثر لاندې چه کوم ملکونه دی. د هغې نه د حج د پاره تلل ممنوع نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ د مهمند ایجنسی نه خلق د افغانستان په لاره حج د پاره ځی، ځکه چه سهولتونه هم زیات دی، او پیسې هم کمې خرچ کیږی، او س بعضې خلق وائی، چه په افغانستان باندې د روسیانو د قبضې نه پس د مسلمان د پاره د کابل په لاره باندې حج ته تلل جائز نه دی، دا مسئله کومه حده پورې صحیح ده؟ او زمونږ خلق هم دغسې کابل ته ځی راځی، لکه څرنګه چه مخکښې تلل راتلل؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی نورالرحمٰن یکه غنډ مهمند ایجنسی ۲۰ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** هرکله چه د روس او چین نه د بیت الله شریف حج ته تلل ممنوع شرعی نه دی، نو د هغوی د اثر لاندې ملکونو نه به څرنګه ممنوع وی(۱)، او چه کوم اسلامی ملکونه د امریکې ذهنی غلامان بلکه محکوم دی، هلته نه به د سفر حج څه حیثیت وی؟ وهو الموفق

---

(۱) قال العلامة ابن عابدين: كل مصر فيه وال من جهتهم (اى الكفرة) تجوز فيه اقامة الجمع والاعياد واخذ الخراج وتقليد القضاة وتزويج الايامى لاستيلاء المسلم عليه...... واما بلاد عليها ولاة كفار فيجوز للمسلمين اقامة الجمع والاعياد ويصير القاضى قاضيا بتراضى المسلمين فيجب عليهم ان يلتمسوا واليا مسلما منهم.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۴: ۳۴۲ مطلب فى حكم تولية القضاء فى بلاد تغلب الكفار)

## د عمرې په ویزې باندې سعودی عرب ته تلل
## او هلته کښې مزدوری کول شرعا ممنوع نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې د عمرې دپاره لاړ شی، بیا په هغې ویزې سره هلته کښې مزدوری کوی، هغه دپاره دا مزدوری کول څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمود خان ترناب فارم پشاور ۱۸ ذی قعده ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** په مسلمان باندې یو اسلامی ملک ته تلل راتلل بندول یو کافرانه نظام دې، چه د بعضې مصلحتونو په وجه مسلمانانو بادشاهانو خپل کړې دې، پس ددې قانون مخالفت کول قانونی جرم دې، اسلامی جرم نه دې، او د جائز ملازمت نفع بهرحال حلاله ده(۱)، او که دا وسیدل شرعا ممنوع وی، بیاهم په نفع کښې د حرمت هیڅ وجه نشته. وهو الموفق

## عمره اداکولونه پس محنت مزدورې د پاره قیام کول اسلامی جرم نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه بنده د عمرې په ویزې باندې سعودی عرب ته تلل او هلته کښې عمره کول غواړی، د عمرې نه پس د بنده اراده هلته کښې د محنت مزدورې ده. آیا په اسلام کښې دا جائز دی، چې سړې د عمرې دپاره لاړ شی. او هلته کښې د محنت مزدورې دپاره قیام وکړی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عطا محمد اضاخیل نوښار ۲۱ رمضان ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دا طریقه صرف قانونی جرم دې(۲) اسلامی جرم نه دې، لکه څرنګه

(۱) عن رافع بن خدیج قال قیل یا رسول الله ای الکسب اطیب قال عمل الرجل بیده وکل بیع مبرور رواه احمد.

(مشکواة المصابیح ۱:۲۴۲ باب الکسب وطلب الحلال الفصل الثالث)

(۲) اګرچه دا دسعودی حکومت د قانون خلاف ورزی ده، اودا انتهائي غیر مناسب طریقه ده. څکه چه بیا دحکومتی سزاپه وجه تکلیف اوچتول وی، اوعزت نفس مجروح کیږی، اود تذلیل اوتحقیر هر وخت کښې خطره موجوده وی. (از مرتب)



چه د حج او عمرې دپاره تللو کښې د تجارت اراده ساتل اسلامی جرم نه دې. (۱) وهو الموفق

## د حاجی د پاره د سعودی عرب نه سرهٔ زر راوړلو کښې هیڅ ګناه نشته

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه که یو سړې حج ته لاړ شی، او په واپسی کښې هغه د ځان سره په پټه سرهٔ زر راوړی، بیا دلته کښې د هغې کاروبار وکړی او نفع وګټی، او په دې نفع باندې لوئې کاروبار شروع کړی، دا حلال دې او که حرام؟ تاسو په دې باندې دلائل پیش کړئ، او په مسئله باندې د دارالعلوم مهر او دستخط کیدل ضروری دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اشتیاق حسین طورو روډ هوتی مردان ۸/۴/۱۹۲۹

**الجواب:** د سعودی عرب نه د حاجی دپاره سره زر راوړلو کښې هیڅ ګناه نشته، هرکله چه مقصود بالذات حج وی، قال الله تعالی لیس علیکم جناح ان تبتغوا فضلا من ربکم (الایة)(۲) بیشکه که یو کس داسی وی، چه د هغه مقصد په سروزرو کښې وی، یعنی که د سرو زرو راوړلو امیدنه وی نو بیا حج

(۱) عن ابی امامة التیمی قال قلت لابن عمر: انا نکری فهل لنا من حج؟ قال الیس تطوفون بالبیت، وتأتون المعرف، وترمون الجمار، وتحلقون رؤوسکم؟ قال قلنا: بلی، فقال ابن عمر: جاء رجل الی النبی ﷺ فسأله عن الذی سألتنی، فلم یجبه، حتی نزل علیه جبریل بهذه الآیة "لیس علیکم جناح ان تبتغوا فضلا من ربکم" فدعاه النبی ﷺ فقال: انتم حجاج.

(تفسیر ابن کثیر ۱:۴۸۶ البقرة آیت: ۱۹۲)

(۲) قال العلامة الخلوتی الصاوی المالکی: فلا بأس بالتجارة بالحج اذا کانت لا تشغله عن افعاله واختلف هل التجارة تنقص ثواب الحج اولا، قال بعضهم ان کانت التجارة اکبرهمه ومبلغ علمه سقط الفرض عنه ولیس ثوابه کمن لا قصد له الا الحج، وان استوی الامران فلا یذم ولا یمدح وان کانت التجارة تبعا للحج فقد حاز خیر الدنیا والآخرة. (حاشیة الصاوی علی الجلالین ۱:۱۵۳ سورة البقرة آیت: ۱۹۸)

## د عمرې په ویزې باندې سعودی عرب ته تلل او هلته کښ مزدوری کول شرعا ممنوع نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه یو سړې د عمرې دپاره لاړ شی، بیا په هغې ویزې سره هلته کښ مزدوری کوی، هغه دپاره دا مزدوری کول څنګه دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمود خان ترناب فارم پشاور ۱۸ ذی قعده ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** په مسلمان باندې یو اسلامی ملک ته تلل راتلل بندول یو کافرانه نظام دې، چه د بعضې مصلحتونو په وجه مسلمانانو بادشاهانو خپل کړې دې، پس ددې قانون مخالفت کول قانونی جرم دې، اسلامی جرم نه دې، او د جائز ملازمت نفع بهرحال حلاله ده(۱)، او که دا ؤسیدل شرعا ممنوع وی، بیاهم په نفع کښ د حرمت هیڅ وجه نشته. وهو الموفق

## عمره اداکولونه پس محنت مزدورې د پاره قیام کول اسلامی جرم نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه بنده د عمرې په ویزې باندې سعودی عرب ته تلل او هلته کښ عمره کول غواړی، د عمرې نه پس د بنده اراده هلته کښ د محنت مزدورې ده.آیا په اسلام کښ دا جائز دی، چی سړې د عمرې دپاره لاړ شی.اوهلته کښ د محنت مزدورې دپاره قیام وکړی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عطا محمد اضاخیل نوښار ۲۱ رمضان ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دا طریقه صرف قانونی جرم دې(۲) اسلامی جرم نه دې، لکه څرنګه

(۱) عن رافع بن خدیج قال قیل یا رسول الله ای الکسب اطیب قال عمل الرجل بیده وکل بیع مبرور رواه احمد.

(مشکواة المصابیح ۱:۲۴۲ باب الکسب وطلب الحلال الفصل الثالث)

(۲) اګرچه دا د سعودی حکومت د قانون خلاف ورزی ده، اودا انتهائي غیر مناسب طریقه ده.ځکه چه بیا دحکومتی سزاپه وجه تکلیف اوچتول وی، اوعزت نفس مجروح کیږی، اود تذلیل اوتحقیر هر وخت کښ خطره موجوده وی.(از مرتب)



چه د حج او عمرې دپاره تللو کښ د تجارت اراده ساتل اسلامی جرم نه دې.

(۱) وهو الموفق

## د حاجی د پاره د سعودی عرب نه سرۀ زر راؤړلو کښ هیڅ ګناه نشته

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه که یو سړې حج ته لاړ شی،او په واپسی کښ هغه د ځان سره په پټه سرۀ زر راؤړی، بیا دلته کښ دهغې کاروبار وکړی او نفع وګټی.او په دې نفع باندې لوئې کاروبار شروع کړی.دا حلال دې او که حرام؟ تاسو په دې باندې دلائل پیش کړئ، او په مسئله باندې د دارالعلوم مهر او دستخط کیدل ضروری دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اشتیاق حسین طورو روډ هوتی مردان ۸/۴/۱۹۲۹

**الجواب:** د سعودی عرب نه د حاجی دپاره سره زر راؤړولو کښ هیڅ ګناه نشته، هرکله چه مقصود بالذات حج وی. قال الله تعالی لیس علیکم جناح ان تبتغوا فضلامن ربکم (الآیة)(۲) بیشکه که یو کس داسی وی،چه د هغه مقصد په سروزرو کښ وی، یعنی که د سرو زرو راؤړولو امیدنه وی نو بیا حج

(۱) عن ابی امامة التیمی قال قلت لابن عمر: انا نکریٰ فهل لنا من حج؟ قال الیس تطوفون بالبیت، وتأتون المعرف، وترمون الجمار، وتحلقون رؤوسکم؟ قال قلنا: بلی، فقال ابن عمر: جاء رجل الی النبی ﷺ فسأله عن الذی سألتنی، فلم یجبه، حتی نزل علیه جبریل بهذه الآیة "لیس علیکم جناح ان تبتغوا فضلامن ربکم" فدعاه النبی ﷺ فقال: انتم حجاج.
(تفسیر ابن کثیر ۱:۴۸۶ البقرة آیت: ۱۹۲)

(۲) قال العلامة الخلوتی الصاوی المالکی: فلا بأس بالتجارة بالحج اذا کانت لا تشغله عن افعاله واختلف هل التجارة تنقص ثواب الحج اولا، قال بعضهم ان کانت التجارة اکبرهمه ومبلغ علمه سقط الفرض عنه ولیس ثوابه کمن لا قصد له الا الحج، وان استویٰ الامران فلا یذم ولا یمدح وان کانت التجارة تبعا للحج فقد حاز خیر الدنیا والآخرة. (حاشیة الصاوی علی الجلالین ۱:۱۵۳ سورة البقرة آیت: ۱۹۸)

دپاره نه ځی، په دې صورت کښې به دا سړې د سفر حج د ثواب نه محرومه وی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

**د مقامات مقدسه په نمونو سره د مناسک حج تعلیم ورکول جائزدی**

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د آسانی دپاره که یو سړې د خانه کعبې او نورو مقامات مقدسه د نمونو په ذریعې سره د مناسک حج تعلیم ورکول غواړی، نو ددې شرعی حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: پروفیسر محبوب ګل اکوړه خټک ۲ شوال۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په دې طریقې سره یعنی طریقه تمثیل سره تعلیم ورکول فائده مند او مؤثر وی، ددې وجه نه په قرآن مجید او حدیث کښې ډیر تمثیل ذکرشوې دې. **کالتمثیل بالکلب ﴿۲﴾ وبیت العنکبوت﴿۳﴾ وتشبیک الاصابع﴿۴﴾ والخط المحیط بالخطوط وغیر ذلک﴿۵﴾.** وهو الموفق

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: وتجرید السفر عن التجارة احسن ولو اتجر لا ینقص ثوابه کالغازی اذا اتجر کما ذکره الشارح فی السیر واما عن الریاء والسمعة والفخر ظاهرا او باطنا ففرض وخلط التجارة بهذا القسم کما فی فتح القدیر مما لا ینبغی.**

(البحر الرائق ۲:۳۰۹ کتاب الحج قبیل فرض مرة علی الفور)

**﴿۲﴾ قال الله تبارک وتعالیٰ: فمثله کمثل الکلب ان تحمل علیه یلهث او تترکه یلهث.**

(سورة الاعراف :پاره: ۹ آیت:۱۷٦)

**﴿۳﴾ قال الله تبارک وتعالیٰ: مثل الذین اتخذوا من دون الله اولیاء کمثل العنکبوت.**

(سورة العنکبوت آیت: ۴۱پاره: ۱۰)

**﴿۴﴾ عن ابی سعید قال قال رسول الله ﷺ...... قال فیلتأم علیه حتی یلتقی علیه وتختلف اضلاعه قال قال رسول الله ﷺ باصابعه فادخل بعضها فی جوف بعض الخ. (سنن الترمذی ۲:٦۹ بعید باب ماجاء فی صفة اوانی الحوض)**

**﴿۵﴾عن عبد الله قال خط النبی ﷺ خطا مربعا وخط...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**



**د وی سی آر وغیره په ذریعې په جماتونو کښې د مناسک حج او عمرې تعلیم ورکول**

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه په جماتونو کښې د وی سی آر وغیره د فلم په ذریعې سره د مناسک حج وعمره تربیت ورکول جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: ډاکټرریاض الرحمٰن سټیلائټ ټاون راولپنډی ۱۷ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** دا بصری تربیت د ساه لرونکی په تصویر اخستلو باندې موقوف دې ﴿۱﴾ لهذا دا د تربیت طریقه بهر حال ناجائز ده، که په جمات کښې وی یا د جمات نه بهرپه کور کښې، د دینی کارونو تعلیم په غیر دینی طریقې سره ورکول جائز نه دی، اود اعتراض قابل دی ﴿۲﴾ تعجب دې چه د تیرې زمانې

---

**(بقیه حاشیه) خطا فی الوسط خارجا منه وخط خططا صغارا الی هذا الذی فی الوسط من جانبه الذی فی الوسط فقال هذا الانسان وهذا اجله محیط به وهذا الذی هو خارج امله وهذ الخطط الصغار الاعراض فان اخطأه هذا نهسه هذا وان اخطأه هذا نهسه هذا، وعن انس قال خط النبی ﷺ خطوطا فقال هذا الامل وهذا اجله فبینما هو کذلک اذ جاءه الخط الاقرب رواهما البخاری.** (مشکوٰة المصابیح ۲:۴۴۹ باب الامل والحرص الفصل الاول)

**﴿۱﴾ وفی المنهاج: اعلم ان صناعة صور الحیوانات حرام مطلقا صغیرة کانت او کبیرة لورود اللعنة علی المصور رواه البخاری ولورود تعذیبه بنفخ الروح فیها رواه البخاری، وفرق الصورة من العکس واضح لان الصورة تکون باقیة والعکس لا یبقی بعد زوال المحاذاة کعکس الرائی فی المرآة والماء وبالصناعة الجدیدة یبقی ویقال له الصورة فحکمه حکم الصورة. (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۵:۲۱۵ باب ماجاء فی الصورة)**

﴿۲﴾ د حج فلم جوړولو او اورولو کښې چه کومې فائدې بیانولې شی، مثلا د حج شوق پیدا کول، او د حج په طریقه کښې آسانی وغیره، لیکن بل طرف ته ددې ګناه د فائدو نه زیاته ده، مثلا د سا لرونکی تصویرونه، غیر محرمات او شعائر حج لره د تماشې په طور باندې پیش کول، وغیره ټول حرام دی، بلکه دا د پیران پیر شیخ عبدالقادر جیلانی رحمة الله علیه ددې قول مصداق دې، (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

باندیسیانو به په سمعی طریقې سره تربیت حاصلولې شو، او د نننې زمانې هوښیار خلق دا تربیت نشی حاصلولې، بهرحال مناسب داده، چه حکومت د سرکاری ملازمینو نه علاوه د هرو سلو کسانو دپاره یو مستند عالم امیر مقرر کړی، او دهغه د هدایاتو مطابق په هغوی حج کوی. وهو الموفق

## د ملازمینو د حج کمیټۍ د پاره شرائط وضوابط او پالیسی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه ملازمینو یوه حج کمیټی جوړه کړې ده، (۱) د هر خواهشمند ملازم نه به پنځلس روپۍ ماهوار کټوتی کیږی. (۲) ددې پیسو نه به هر کال د جمع شوې پیسو مطابق ملازمینو لره حج ته لیږلې شی.

(۳) د دې سړو انتخاب به قرعه اندازۍ سره کیږی.

(۴) د چا نوم چه په قرعه کښې راؤتو، هغه ته اجازت دې چه هغه خپل پلار یا ښځه وغیره ؤلیږی.

---

(بقیه حاشیه) قال الشیخ عبد القادر الجیلی: لو قال عادتی انی متی شربت الخمر کففت عن الحرام لم یبح له ولو قال عادتی اذا شهدت المرد والاجنبیات وخلوت بهم اعتبرت فی حسنهم لم یجوز له ذلک واجیب ان الاعتبار بغیر المحرمات اکثر من ذلک وانما هذه طریقة من ارادة الحرام بطریق الله عز وجل فیرکب هواه فلا نسلم لاصحابها ولا نلتفت الیهم. (غنیة الطالبین ۲۵)

بهرحال د حج د فلم جوړولو ضرر عام دې، او د حج د احکاماتو نه د یو حاجی نه خبریدل ضرر خاص دې، چه په ډیرو جائزو طریقو سره لرې کولې شی، او دې قسمه حالاتو کښې د فقهاؤ مسلمه قاعده ده، چه:

یتحمل الضرر الخاص لدفع الضرر العام، وقال الشیخ محمد خالد الآتاسی: وهذه قاعدة مهمة من قواعد الشرع مبنیة علی المقاصد الشرعیة فی مصالح العباد استخرجها المجتهدون من الاجماع ومعقول النصوص، فقد ذکر حجة الاسلام الامام الغزالی فی المستصفیٰ ما ملخصه ان الشرع انما جاء لیحفظ علی الناس دینهم وانفسهم وعقولهم وانسابهم واموالهم فکل ما یکون بعکس هذا فهو مضرة یجب ازالتها ما امکن. (شرح المجله للآتاسی ۱:٦٦ الماده: ۲٦) ...... ازمرتب



(۵) که په قرعه کښې د اداري نه هم نوم راؤوتو، او د ملازمینو دطرف نه هم، نوپه دې صورت کښې هم ملازمین د طرف نه خپل پلار یا ښځه حج ته لیږلې شی.

(٦) ریټائرمنټ پورې که د یو ملازم نوم په قرعه کښې راؤنوتهٔ، نو په دې صورت کښې که هغه ملازم غواړی نو خپلې پیسې واپس اخستلې شی، په شرط ددې چه دهغې کټوتې پنځو کالو پورې شوې وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مرزا الیاس احمد واه کینټ ورکس راولپنډی. ۹ رمضان ۱۴۰۹هـ

**الجواب:** (۱) دا شرط او ضابطه خلاف شرع نه ده.

(۲) دویم شرط هم خلاف شرع نه دې.

(۳) دا قرعه جائز ده په دې کښې ګټل بیلل نشته.

(۴، ۵) دا شرائط هم جائز دی.

(٦) دا خلاف شرع دې، ځکه چه دا کټوتی د ملازم د ملکیت نه خارج (وقف) نه ده، بلکه د کمیټۍ سره امانت دې، د ملازم یا د هغه د وارثانو د اجازت نه بغیره به هیڅ کټوتی اخستلې نشی. وهو الموفق

## د حج کمیټۍ شرعی حیثیت

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه دلته کښې د غوړو په ملز کښې مزدورانو متفقه طور باندې د حج کمیټۍ په نوم باندې یو تنظیم جوړ کړې دې، چه هر کال د قرعه اندازۍ په ذریعه منتخب شده ملازمینو لره د بیت الله شریف د حج دپاره لیږی، او د غوړو د ملز ملازمینو دپاره دا ضروری مقرر کړې شوې دې، چه هغوی به هره میاشته په خوښه یا په ناخوښه لس روپۍ لازما کمیټۍ کښې جمع کوی، ګنی د حج کمیټۍ په قانون کښې د یونین په بنیاد چنده نه ورکونکی ملازم خلاف تادیبی کاروائۍ کولو سفارش هم شوې دې. او تاسو ته درخواست دې، چه د قرآن و حدیث او فقه او اجماع امت په رڼرا کښې په حوالې سره ؤلیکۍ چه دا کار کوم حده

پورې صحیح دې، ایا په دې صورت کښې به دهغه عازم حج حج ادا شی، او دا حج به نفلی وی او که فرضی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حمید الرحمٰن خطیب فضل ویجیټیبل ګهی ملز اسلام اباد.

**الجواب:** داسې تنظیم جوړول بذات خود نه ممنوع دی، او نه مطلوب، البته په جبرې طریقه سره بغیره د خوښې نه چنده اخستل ممنوع دی. لحدیث **لا یحل** مال امرئ الا بطیب نفس منه. رواه البیهقی﴿۱﴾. او په اکثرو موقعو کښې قرعه په جواړی کښې داخله ده، لیکن د انتظام قائم ساتلو دپاره ممنوع نه ده، کما عند القسم والاقتسام وغیره﴿۲﴾ پس که یو سړې د ټولو شریکانو په خوښې سره ددې فنډ نه باقاعده مجوزه رقم حاصل کړی او حج وکړی نو د نیت مطابق دهغه حج به ادا کیږی. وهو الموفق

## د حج کمیټۍ په فنډ کښې د غیر مسلم چنده ورکول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه څه موده مخکښې د ګهی ملز اسلام اباد مسلمانانو مزدورانو د حج کمیټۍ په نوم سره یو تنظیم جوړکړو، په خپلو کښې ئې دا مقررکړه، چه هر مسلمان به رضاکارانه طورباندې لس روپۍ د میاشتې د حج کمیټۍ په فنډ کښې ورکوی، دې دپاره چه هر کال د قرعه اندازۍ په ذریعه یو مزدور د حج دپاره ؤلیږلې شی، اوس دلته کښې غیر مسلمه مزوران اصرار کوی، چه مونږ به هم بغیر د څه قید او

﴿۱﴾ رواه البیهقی فی شعب الایمان ٦: ١٠٠ والدارقطنی فی المجتبیٰ کما فی المشکوٰة ١: ٢٥٥ وفی روایة ابن حبان رقم: ٥٩٧٨ والحاکم ٣: ٦٣٧ لا یحل لامرئ ان یأخذ عصا اخیه بغیر طیب نفس منه، وفی الباب عن ابن عمر وبلفظ لا یحلبن احد ماشیة احد بغیر اذنه الحدیث متفق علیه. (بلوغ المرام ١: ٢٨٨ باب الصلح)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویکتب اسامیهم ویقرع لتطیب القلوب فمن خرج اسمه اولا فله السهم الاول الخ.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٥: ١٨٤ کتاب القسمة)



شرط نه په خپله خوښه په دې کمیټۍ کښې چنده ورکوؤ، اوس سوال دادې، چه دهغوی نه دا چنده اخستل جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: اصغر علی مغل ویجیټیبل ګهی ملز اسلام آباد ۷/۱۲/۱۹۸۵

**الجواب:** د غیر مسلم نه دا امداد حاصلول ناجائز نه دی، په دې کښې د مسلمان یا اسلام هیڅ توهین نشته، لهذا دا امداد به د مسلمان ممبر په چنده کښې لګولې شی. وهو الموفق

## په حرم کښې د ښځو د محاذات مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه (۱) په حرمین شریفین کښې که ښځې د سړو صفونو کښې یو ځائې یو مونځ او جمع ادا کوی، نو د سړو مونځ به صحیح وی او که نه؟ او د عام مونځونو او د جمعې د مونځ حکم یو دې، که جدا جدا؟

(۲) په معلم الحجاج کښې ئې لیکلې دی، چه سړې دې په حرم شریف کښې مونځ کوی لیکن ښځې دې په کور کښې مونځ کوی، په حرم شریف کښې به دهغوی د مونځونو په ثواب کښې زیاتوالی نه وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: شیران تهائي لینډ... ۱۸/۸/۱۹۹۰ء

**الجواب:** (۱) دا دهر یوې جمعې د مونځ حکم دې، چه د محاذات په صورت کښې د سړی مونځ فاسدیږی، البته که امام د ښځو د اقتداء نیت ونکړی، او یا سړې په دې ښځې باندې (کومه چه د سړې په برابرۍ کښې ولاړه وی) انکار وکړی، یعنی مونځ شروع کولو نه پس چه کله په دې ښځې باندې په اشارې سره انکاروکړی، نوصرف ددې ښځې مونځ به فاسدوی (شامی باب الامامة)﴿۱﴾

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وان نوی...... امامتها...... والا ینوها فسدت صلاتها کما لو اشاره الیها بالتاخیر فلم تتأخر لترکها فرض المقام فتح، قال ابن عابدین: ای فلو حاذت المقتدی بعد الشروع واشار الیها بالتاخر ولم تتأخر فسدت صلاتها دونه.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ١: ٤٢٦ قبیل مطلب الواجب کفایة هل یسقط باب الامامة)

(۲) دا مسئله صحیح ده، او ښځو لره په حکیمانه انداز سره پوهول پکار دي.﴿۱﴾ وهو الموفق

## د حاجیانو په واپسۍ باندې د دعوت طعام دپاره ګډ وغیره حلالول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه حاجیان کله د حج نه واپس راځي، نو خلق دهغوی دپاره دعوت طعام کوي، او ګډ وغیره حلالوي، آیا دا حلاله کول حلال دي.؟ بینوا توجروا

المستفتي: معین الدین ۱۹۷۴ء|۶|۲۵

**الجواب:** چه کله د ریا فخر او مباهات نه خالي وي﴿۲﴾، نو په دې ذبح کښې هیڅ خرج نشته، بلکه مسنون دي ......

﴿۱﴾ په دې باره کښې د علماؤ اختلاف دې، چه په دې دوارو جماتونو کښې د مونځ ثواب څو چنده کیدل صرف فرضو سره خاص دي، او که نوافلو ته هم شامل دي، د احنافو او موالکو په نزد د ثواب څو چنده زیاتیدل صرف د فرضو سره مخصوص دي. او د نوافلو په کور کښې ادا کول د قولي او فعلي نص په وجه افضل دي. شافعیه وائي، چه دا افضلیت نفلو ته هم شامل دي، اګر چه نوافل په کور کښې ادا کول دهغوی په نزد د اتباع سنت په وجه افضل دي، او دغه رنګې دا افضلیت فرضو او نفلو ته شاملیدل صرف د سړو په حق کښې مخصوص دي، د ښځو دپاره دا افضلیت نشته، لکه په فتح القدیر کښې دا تحقیق کړې دې، او وئیلي ئې دي، چه دا ددې وجه نه دي، چه کله یوې ښځې د نبی کریم ﷺ سره په جمعې کښې د شاملیدلو باره کښې تپوس وکړو، نو رسول الله ﷺ هغې ته ؤفرمائیل: چه هغه دې خپل کور کښې مونځ ادا کړي، حالانکه د ښځو دپاره جمات ته تلل جائز وو. (غنیه وفتح ملتقطا)_(عمدة الفقه ۴:۶۶۱ کتاب الحج)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: (ان النبی ﷺ نهی عن طعام المتبارین) ای المتفاخرین وانما کره ذلک لما فیه من المباهاة والریاء وقد دعی بعض العلماء فلم یجب فقیل له ان السلف یدعون فیجیبون قال کان ذلک منهم للموافاة والمواساة وهذا منکم للمکافاة والمباهاة وروی ان عمر وعثمان دعیا الی طعام فاجابا فلما خرجا قال عمر لعثمان لقد شهدت طعاما وددت انی لم اشهد قال ما ذاک قال خشیت ان یکون جعل مباهاة رواه ابوداؤد.
(مرقاة شرح مشکوٰة ۶:۲۵۶ قبیل باب القسم کتاب النکاح)



لان النبی ﷺ ذبح حین قدم﴿۱﴾ وکانت الصحابة رضی الله عنهم یطعمون علی زائریهم عند القدوم﴿۲﴾. وهوالموفق

## د طواف دوران کښې په اردو کښې دعا ګانې غوختل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه په حج کښې د طواف په دوران کښې اردو کښې دعاګانې لوستلو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: انیس احمد...۱۳ اګست ۱۹۸۳ء

**الجواب:** لوستلې شي، البته په یادو مختصر دعا ګانې لوستل، (خصوصا هغه دعا ګانې چه دهغې په معنی پوهیږي) دا اوفق بالسنّت دي﴿۳﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ (عن جابر ان النبی ﷺ لما قدم المدینة) ای بعدالهجرة او بعد غزوة (نحر جزوراً او بقرة رواه البخاری) ای السنة لمن قدم من السفر ان یضیف بقدر وسعه وقال ابن الملک الضیافة سنة بعد القدوم.
(مرقاة المفاتیح ۷:۳۳۲ باب آداب السفر)

﴿۲﴾ عن ابی هریرة ...... فقال کلوا من هذه واخذ المدیة فقال رسول الله ﷺ ایاک والحلوب فذبح لهم فاکلوا من الشاة ومن ذلک العذق الخ.
(مشکوٰة المصابیح ۲:۳۶۸ باب الضیافة)

﴿۳﴾ قال الملا علی قاری: قوله داعیا ای بالدعوات المأثورة وغیرها المتعارفة المشهورة فی محالها المسطورة...... ویصحح الفاظ الدعوات خصوصا الماثورات لئلا یلحن فیها...... لکن الاظهر ان اختیار المأثور عنه ﷺ مستحب والمروی عن السلف مستحسن ویجوز الاکتفاء بما یرد علی السالک ان کان اهلا لذلک.
(شرح لباب المناسک ۹۲،۹۳ قبیل مطلب مهم فی قول العامة اللهم صل)

# فصل فی الاحرام

## د احرام په څادرونو کښې سپین رنګ مستحب دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه عام طور باندې د احرام څادرونه سپین رنګ وي. آیا سپین څادرونه ضروري دي، یا د بل رنګ هم کیدې شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: بشیر احمد چترال...۱۹۸۴ء

**الجواب:** د سپین رنګ څادرونه مستحب دي، واجب نه دي. (ارشاد الساري)﴿۱﴾ وهو الموفق

## احرام تړلو نه پس یو ځل تلبیه وئیل شرط او زیاته وئیل سنت دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د احرام تړلو نه پس څو ځله تلبیه لوستل پکار دي؟ درې ځله لوستل ضروري دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم...... ۱۹۷۴

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: ویلبس من احسن ثیابه...... ثوبین جدیدین تشبیها بکفن المیت وهو الافضل او غسیلین ای للطهارة والنظافة ابیضین وصف لثوبین وهو الافضل من لون آخر کما هو فی امر الکفن مقرر ولقوله ﷺ البسوا الثیاب البیض فانها اطهر واطیب وکفنوا فیها موتاکم رواه جماعة.

(ارشاد الساری ۶۸ فصل ثم یتجرد عن الملبوس المحرم)



**الجواب:** د احرام تړلو نه پس د نیت د پاره یو ځل تلبیه وئیل شرط دي، او درې ځله وئیل مستحب او مسنون دی (شرح اللباب)﴿۱﴾. وهو الموفق

## په حالت د احرام کښې د اضطباع مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه مونږ بعضې خلق وینو، چه احرام تړلو په وخت کښې احرام په ښې اوږه باندې نه اچوي، او بعضې خلق مکې معظمې ته داخلیدو نه پس د طواف کولو په وخت کښې احرام د ښې اوږې نه لرې کوي، او طواف شروع کړي، په دې باره کښې صحیح مسئله څه ده.؟ بینوا توجروا

المستفتي: شفیق الرحمٰن خټک وادی بن هیش مشیط سعودیه ۱۹۸۶|۶|۷

**الجواب:** دا اضطباع صرف په حالت طواف کښې (چه احرام کښې وي او دهغې نه پس سعي وي) سنت ده، نه په مونځ او سعي کښې. (مناسک قاري وغیره)﴿۲﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: والتلبیة مرة فرض وهو عند الشروع لا غیر وتکرارها سنة ای فی المجلس الاول وکذا فی سائر المجالس اذا ذکرها وعند تغیر الحالات کالاصباح والامساء...... مستحب مؤکد...... والاکثار مطلقا مندوب ای مطلوب شرعا...... ویستحب ان یکرر التلبیة فی کل مرة ای اذا شرعها ثلاثا وان یأتی بها ای بالثلاثة علی الولاء.

(ارشاد الساری ۷۰ فصل شروط التلبیة)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: اذا اراد الشروع فی الطواف ای فی طواف بعده سعی فانه حینئذ یسن الاضطباع والرمل له ینبغی ان یضطبع قبل شروعه فیه بقلیل ولیس کما یتوهمه العوام من ان الاضطباع سنة جمیع احوال الاحرام بل الاضطباع سنة مع دخوله فی الطواف علی ما صرح به الطرابلسی وغیره لکن قال ولو اضطبع قبل شروعه فی الطواف بقلیل فلا بأس به.

(المسلک المتقسط فی المنسک المتوسط ۸۸ فصل فی صفة الشروع فی الطواف)

## د احرام تړلو او د هر طواف نه پس د دوؤ رکعتو مونځ حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دي مسئلې باره کښې چه د کتاب الحج مطبوعه فیروز سنز د مطالعې نه معلومیږی، چه د حج په موقع یو احرام تړلو نه پس او بل د هرطواف نه پس دوه رکعته کول مستحب دی، ددې نه علاوه څه خاص مونځ په مناسک کښې مقرر نه دې، سوا د پنځه وخته مونځ نه، آیا دا صحیح دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: اکرام الحق غفرله راولپنډی

**الجواب:** په در مختار وغیره (کتاب الحج) کښې مصرح دی، چه دا اول مونځ مستحب دې، او دویم واجب دې﴿۲﴾. وهو الموفق

## په حالت د احرام کښې د مونځ په وخت کښې اوږې پټول او د ژوندي سړې دپاره طواف وغیره کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دي مسئلې باره کښې چه (۱) په حالت د احرام کښې به دمونځ په وخت کښې اوږې پټول وی، او که نه؟ (۲) د ژوندي سړې دپاره د عمرې یا دطواف کولو او ایصال ثواب کولو حیثیت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله اکوړه خټک معرفت ناظم صاحب ۱۳ رجب ۱۴۰۱ھ

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وصلی ندبا بعد ذلک شفعا یعنی رکعتین فی غیر وقت مکروه قال الشامی: ای بعد اللبس والتطییب.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۷۱ فصل فی الاحرام)

﴿۲﴾ قال العلامه الحصکفی: وختم الطواف باستلام الحجر استنانا ثم صلی شفعا فی وقت مباح یجب علی الصحیح بعد کل اسبوع عند المقام.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۱۸۴ مطلب فی طواف القدوم)



**الجواب:** (۱) د طواف نه علاوه په مونځ وغیره کښې د اوږو پټول مسنون دی، (ماخوذ از ردالمحتار ۲"۲۱۵)﴿۱﴾
(۲) ددې په مشروعیت کښې هیڅ اختلاف نشته. (شامی باب الحج عن الغیر) ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د صلاة احرام او صلاة طواف بعد العصر او بعد الفجر ادا کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دي مسئلې باره کښې چه (۱) صلاة الاحرام بعد صلاة العصر او بعد صلاة الفجر کول جائز دی او که نه؟
(۲) په دې وختونو کښې د طواف عمره نه پس د طواف دوه رکعته ادا کول جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: معرفت ناظم اعلی صاحب. ۱۴۰۱/۷/۱۳ھ

**الجواب:** (۱) په دې وختونو کښې د احرام دوه رکعته مونځ ادا کول جائز نه دی. (هندیه ۱/۲۳۷)﴿۳﴾
(۲) مختلف فیه ده، جمهور ورته ناجائز وائي، او طحاوی جواز طرف ته میلان کړې دې﴿۴﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: وفی شرح اللباب واعلم ان الاضطباع سنة فی جمیع اشواط الطواف کما صرح به ابن الضیاء فاذا فرغ من الطواف ترکه حتی اذا صلی رکعتی الطواف مضطبعا یکره لکشفه منکبه. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۱۸۱ قبیل مطلب فی طواف القدوم)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: الاصل ان کل من اتی بعبادة ما ای سواء کانت صلاة او صوما او صدقة او قرأة او ذکرا او طوافا او حجا او عمرة او غیر ذلک...... جمیع انواع البر کما فی الهندیة. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۵۶ مطلب فی اهداء ثواب الاعمال للغیر)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: ولا یصلیهما فی الوقت المکروه وتجزیه المکتوبة کذا فی البحر.
(فتاویٰ عالمگیریة ۱: ۲۲۳ الباب الثالث فی الاحرام)

﴿۴﴾ قال الملا علی قاری: واعلم انه صرح الطحاوی وغیره. (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## که د احرام په حالت کښې څادر جدا شي، نو لنګ کافي دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې که په ایام حج کښې مثلاً ډیره سخته ګرمي وي، او دهغې په وجه څادر لرې کړي او د هوا خورې دپاره کښېني، یا د خولې لرې کولو دپاره څادر لرې کړي، اګر چه لنګ ئې په خپل حال باندې تړلې وي، آیا دې سره په احرام یا حج باندې څه اثر غورزیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد جمیل مردان ۱۹۷۹/۲/۲۲

**الجواب:** د احرام دپاره دوه څادرونه یو د لنګ دپاره او یو څادر په اوږو باندې اچولو دپاره وي، پس د ستر عورت دپاره لنګ تړل فرض دي، او که د څه عذر په وجه صرف څادر لرې کړي او لنګ باندې اکتفاء وکړي نو جائز دي. (در المختار)﴿۱﴾. وهو الموفق

(بقیه حاشیه) بکراهة اداء رکعتی الطواف فی الاوقات الخمسة المنهی عن الصلاة فیها عند ابی حنیفة وابی یوسف ومحمد ونقل عن مجاهد والنخعی وعطاء جواز ادائها بعد العصر قبل اصفرار الشمس وبعد الصبح قبل طلوع الشمس ای قبل احمرار آثارها قال الطحاوی والیه نذهب، والحاصل انهم فرقوا فی المسئلة حیث جوزوها وقت الکراهة التنزیهیة دون زمان الکراهة التحریمیة الحاقا لصلاة الطواف من حیث انه واجب بالفرائض وسائر الواجبات والمحققون فرقوا بین قضاء الوتر واداء رکعتی الطواف ولو کانا واجبین الخ. (المسلک المتقسط ۱۰۷ فصل فی واجبات الطواف)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولبس ازار من السرة الی الرکبة ورداء علی ظهره ویسن ان یدخله تحت یمینه ویلقیه علی کتفه الایسر فان زرره او خلله او عقده اساء ولا دم علیه..... وهذا بیان السنة والافستر العورة کاف، قال ابن عابدین: ای لبس الازار والرداء علی هذه الصفة بیان للسنة والا فساتر العورة کاف فیجوز فی ثوب واحد او اکثر من ثوبین. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۱۷۱ فصل فی الاحرام)



## محرم د پاره په حرم کښې دشپې تیرولو او سر او پښې پټولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه (۱) ما چه کله احرام وتړلو، نو د شپې هم هلته میقات کښې ووم، چه کله سملاستم، نو د ماشو نه تنګ راغلم نو سر او پښې مې د احرام په څادر کښې پټې کړې، ددې د پټولو څه حکم دې؟

(۲) محرم چه کله احرام وتړي، نو هغه د شپې خانه کعبې ته رسیدلې شي، یا په لاره کښې آرام هم کولې شي، او اوده کیدې هم شي؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله بن سالم رسول مشیط سعودی عرب ۸ محرم ۱۴۵۲ھ

**الجواب:** (۱) که تا ټوله شپه سر پټ کړې وو، نو په تا باندې دم واجب شوې دې.﴿۱﴾

(۲) محرم باندې دا ضروري نه ده، چه په حرم کښې شپه تیره کړي﴿۲﴾. وهو الموفق

## د اهل طائف د پاره د احرام تړلو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زۀ په طائف کښې ملازم یم، که زه د جمعې په ورځ حرم شریف ته د جمعې مونځ دپاره لاړ شم، نو آیا زۀ د احرام نه بغیر په مکه معظمه کښې داخلیدې شم، او که د طائف نه جدې ته د مکې معظمې په لاره څه کار دپاره تلل وغواړم، نو څه صورت به وي؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عزیز خان جنوبی وزیرستان ۱۹۷۹/۱۹۱۷

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: او ستر رأسه بمعتاد اما بحمل اجانة او عدل فلا شیئ علیه یوما کاملا اولیلة کاملة وفی الاقل صدقة. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۲۰ باب الجنایات)

﴿۲﴾ قال العلامة الموددود الموصلی: ولا یضره لیلا دخل مکة او نهارا کغیرها من البلاد فاذا دخلها ابتدأ بالمسجد. (الاختیار لتعلیل المختار ۱: ۱۸۹ فصل فی افعال الحج)

**الجواب:** که طائف د قرن ﴿۱﴾ نه مکې طرف ته وی، نو اهل طائف بغیر د احرام نه مکې ته تلې شی، ګنی احرام ضروری دې. وهو الموفق

**د مدینې منورې نه جدې ته تلونکې بیا مکې مکرمې ته راتلونکې د پاره احرام د کوم ځائي نه تړل پکاردی**

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه مونږ د مکې مکرمې نه زر کلومیټره لرې ؤسیږو، زمونږ میقات طائف دې، اوس مثلا مونږ د عمرې نه فارغه شو او مدینې منورې ته لاړو، او بیا جدې ته راغلو، اوس سوال دادې، چه زما دوست په مکه کښې ؤسیږی، آیا زۀ به اوس د جدې ښار نه د مکې دپاره احرام تړم، یا بغیر د احرام نه تلې شم؟ یا واپس مدینې منورې ته به ځم او هلته نه به احرام تړم؟ بینوا توجروا

المستفتی: حضرت شیر محطة الفلاح خمیس مشیط. ۲۱۷۱۱۹۸۶

**الجواب:** مدینې منورې ته روانیدو په وخت که تۀ د مکې مکرمې قاصد وې،

---

﴿۱﴾ قرن د قاف زبر او د راء په جزم سره دې ته قرن المنازل، قرن الثعالب او وادی محرم هم وائي، په فقه المغرب لغت کښې دی. چه دا د یو غر نوم دې، چه د میدان عرفات دپاسه دې.او په شرح مصابیح کښې دی،چه د هګۍ په شان یو غوړ اوصفا مدور غردې، د عرفات دپاسه راغلې دې،اهل مکه او دهغې د اطرافو خلق دې ته کرا د کاف په زبر سره وائي، او په قاموس کښې دی.چه قرن دهغې غر نوم هم دې.اوهغې ته متصل وادی ته هم قرن وائي، او په دې وادی کښې یو کلې دې، چه د طائف سره نزدې دې، هغې ته هم قرن وائي، دهغې او د مکې مکرمې ترمینځه تقریبا دوه منزله فاصله ده.او باقانی په شرح ملتقی الابحر کښې وئیلې دی،چه د مکې مکرمې نه قرن پورې پنځوس میله دی. دا د نجد په لاره راتلونکو یعنی د یمامه نه عراق پورې د ټولې علاقې والؤ دپاره میقات دې.او د بلوغ المرام په تعلیق کښې شیخ عبدالله البسام السلفی لیکلې دی،چه قرن المنازل ته اوس السیل الکبیر وئیلې شی.او د بطن الوادی نه د مکې مکرمې پورې ددې فاصله اتۀ اویا کلومیټره ده. او په الفقه الاسلامی وادلته کښې وهبة الزحیلی لیکلې دی، چه قرن المنازل د مقام سیل سره نزدې دې. او په څلور نوی کلومیټره فاصله کښې دې. (از مرتب)



نو تۀ به د بیرعلی وغیره میقات نه احرام تړې﴿۱﴾، او که تۀ د جدې قاصد وې، او مکې مکرمې ته اتفاقا روانیدل ؤشو، نو تۀ به د جدې نه احرام تړې﴿۲﴾. وهو الموفق

**د کراچۍ نه جدې پورې بغیر د احرام نه د تللو مسئله :**

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زۀ د سعودی عرب نه په چهټۍ باندې کراچې ته راغلې ووم، اوس د کراچې نه بغیر د احرام نه جدې ته لاړم، او جدې ته رسیدلو سره سمدستی اقامه لګیدلو نه پس د جدې نه د عمرې دپاره لاړم، اوس په ما باندې څه دم وغیره لازم دې او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الحق سعودي عرب ۱۳محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** که ستا منزل مقصود جده وه، نو په تا باندې هیڅ دم واجب نه دې، (بحر ﴿۳﴾ شامی ﴿۴﴾)۔

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: والمواقیت ذوالحلیفة مكان علی ستة امیال من المدینة وعشرمراحل من مكة تسمیها العوام آبیار علی رضی الله عنه.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱۶۶ ملطب فی المواقیت)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ومن جاوز وقته غیر محرم ثم اتی وقتا آخر اقرب منه واحرم جاز ولا شیئ علیه ولو جاوز المیقات ویرید بستان بنی عامر دون مكة فلا شیئ علیه. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۵۳ الباب العاشر فی مجاوزة المیقات بغیر احرام)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: وقیلنا بقصد مكة لان الآفاقی اذا قصد موضعا من الحل كخلیص یجوز له ان یتجاوز المیقات غیر محرم واذا وصل الیه التحق باهله.
(البحر الرائق ۲:۳۱۸ قبیل باب الاحرام)

﴿۴﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله اما لو قصد موضعا من الحل كخلیص وجدة حل له مجاوزته بلا احرام) ای مما بین المیقات والحرم والمعتبر القصد عند المجاوزة لا عند الخروج من بیته. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۶۷ مطلب فی المواقیت)

## د مدینې منورې نه تلونکې د ذوالحلیفه نه بغیرد احرام نه تجاوز وکړی؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه تیره شوې جمعه مونږ مدینې منورې او مکې مکرمې ته د عمرې په غرض تلې وو، مونږ ته د مدینې منورې نه سحر روانیدل پکار وو. چه مونږ د بیر علی یا ذو الحلیفې نه احرام تړلې وې، لیکن د لارې ورکیدو په وجه مونږ د مدینې منورې نه مکې مکرمې په طرف تقریبا اتیا کلومیټره بهر احرام ؤتړلو، اوس په مونږ باندې دم واجب دې او که نه؟ او دا قربانی به په حرم کښې کولې شی او که په خپل مقام؟ او زمونږ د طرف نه بل څوک دا قربانی کولې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سلیم صدیقی اکاونټس ډیپارټمنټ ریاض سعودی عرب ۳۰|۵|۱۴۰۱ھ

**الجواب:** که تاسو د جحفه رابغ نه متجاوز کیدو نه وړاندې احرام تړې وی﴿۱﴾

﴿۱﴾ ذوالحلیفه د اسم تصغیر صیغه ده. او دا د مکې معظمې نه د ټولو میقاتونو نه زیاته فاصلې والا میقات دې، او دې ځائې لره عوامو په آبار علی یا بیرعلی سره موسوم کړې دې. ذوالحلیفه د مدینې منورې نه علی اختلاف الروایات شپږ یا اووه یا څلور میله فاصله کښې ده. سید نور الدین سمهودی په خپل تاریخ مدینه کښې لیکلې دی، چه ما د مسجد نبوی نه مسجد شجرې پورې په لاس سره پیمائش وکړو، نو د مسجد نبوی د دروازې باب السلام نه مسجد شجرې پورې مې فاصله (۱۹۷۳۲) لاسونه ؤموندل، او دا د پنځو میلو نه کم وی. ځکه چه زمونږ په نزد میل د اوسپنې ذراع (نن صبا چه استعمالیږی) سره څلور زره ذراع وی. او د مکې مکرمې نه ذوالحلیفه پورې فاصله نهه یا لس مرحلې ده. او په فتح الباری کښې دی، چه د ذوالحلیفه نه مکه معظمه یو سل اتۀ نوی (۱۹۸) میله فاصله کښې ده، وفی تعلیق البلوغ المرام للبسام السلفی، چه د مسجد نبوی نه دا په دیارلس کلومیټره کښې ده، او ددې نه مکې مکرمې پورې ۴۲۰ کلومیټره فاصله ده، او وهبة الزحیلی ۴۲۰ کلومیټره لیکلې ده.

جحفه د مکې معظمې نه د شمال مغرب په طرف د تبوک په لاره کښې واقع ده، یو ځلې دلته کښې سیلاب راغلو، چه هغې دا کلې یوړوو، ددې وجه نه ددې نوم جحفه شو، یعنی سیلاب زیلې کلې. دې ځائې لره علماؤ په یقین سره متعین نه کړې شو، ددې وجهې نه علماؤ احتیاطا د رابغ نه احرام تړل اختیار کړل، رابغ د جحفې نه مخکښې راځی، او رابغ د جحفې نه نیم منزل یا ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



نو په تاسو دم واجب نه دې.

**كما فی شرح التنویر وقالوا لو مر بمیقاتین فاحرامه من الابعد افضل ولو آخره الی الثانی لا شیئ علیه علی المذهب وفی ردالمحتار ۲:۲۱۱ كالمدنی یمر بذی الحلیفه ثم بالجحفة (رابغ)﴿۱﴾**

او که د جحفې نه متجاوز کیدو نه پس مو احرام تړلې وی﴿۲﴾، نو په حرم کښې (یعنی منی کښې مثلا) یو یو ګډ اصالة یا وکالة ذبح کړئ﴿۳﴾.

وهو الموفق

(بقیه حاشیه) دې ته نزدې د مکې معظمې طرف ته واقع دې، او ددې په فاصله کښې شدید اختلاف دې، امام نووی وئیلې دی، چه د جحفې او مکې مکرمې ترمینځه درې منزله فاصله ده، وفیه نظر كما فی فتح الباری، او شیخ عبدالله سالم بصری په شرح بخاری کښې لیکلې دی، چه د جحفې نه مکې معظمې پورې پنځه منزله فاصله ده، او د جحفې نه مدینې منورې پورې اووۀ منزله فاصله ده، او په شرح منسك المتوسط کښې دی چه د جحفه او مکې په منځ کښې دوه اتیا میله فاصله ده او ملاعلی قاری دوه دیرش میله وئیلی دی: لکنه غیر صحیح، غالبا ددې اختلاف وجه داده، چه د جحفې نه مکې ته مختلفې لارې دی، ددې وجه په دې فاصله کښې اختلاف واقع شوې دې. شیخ بسام السلفی په تعلیق بلوغ المرام کښې د رابغ او مکې مکرمې ترمینځه ۱۸۶ کلومیټر فاصله لیکلې ده، او وهبة الزحیلې په الفقه الاسلامی وادلته کښې ۱۸۷ کلومیټر لیکلې ده............ (از مرتب)

**﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۶۶ مطلب فی المواقیت)**

**﴿۲﴾ وفی الهندیة: اذا دخل الآفاقی مكة بغیر احرام وهو لا یرید الحج والعمرة فعلیه لدخول مكة اما حجة او عمرة فان احرم بالحج او العمرة من غیر ان یرجع الی المیقات فعلیه دم لترک حق المیقات.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۵۳ باب مجاوزة المیقات بغیر احرام)**

**﴿۳﴾وفی الهندیة: ویجوز ذبح بقیة الهدایا (ای هدی المتعة والقران) فی ای وقت شاء ولا یجوز ذبح الهدایا الا فی الحرم كذا فی الهدایة.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۶۱ باب فی الهدی)**

فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

**فتاوی فریدیه ثلورم جلد**

# باب القران والتمتع



.............



بسم الله الرحمن الرحيم

.........قال الله تعالى:.........

فمن تمتع بالعمرة الى الحج
فما استيسر من الهدى فمن
لم يجد فصيام ثلثة ايام فى
الحج وسبعة اذا رجعتم.

......[البقرة: ۱۹۶]......

.............

# باب القران والتمتع

## د اهل جدې د پاره د تمتع او قران حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه په جده کښې ؤسیدونکې چه کله د حج دپاره مکې ته تلل غواړي، نو د جدې نه احرام ؤتړي او که بغیر د احرام نه لاړشي، یعنې جده د په میقات کښې دننه ده، او که بهر؟او د جدې خلق قران یا تمتع کولې شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: شائسته خان بلوچ جده. ۱۸|۵|۱۴۰۱ھ

**الجواب:** کومو علماؤ چه جدې لره د میقات نه بهر شمار کړې ده، وهو الظاهر الراجح ﴿۱﴾ نودهغې علماؤ په نزد اهل جده تمتع او قران

﴿۱﴾ قال الشیخ المفتی نظام الدین الاعظمی الدیوبندی، خپله جده هم د مکې نه د دوؤ منزلو نه څه زیاته فاصله (تقریبا ۳۶ میله انګریزی) کښې په حل کبیر او آفاق کښې واقع ده، او حد میقات او خط میقاتی د جدې نه تقریبا یو منزل د مکې طرف ته مخکښې په هغې خط مستقیم باندې واقع دې، چه د یلملم نه نیغ رابغ او جحفې ته رسیدلې دې، اوهم هغه خط مستقیم خط میقاتی دې،او محاذاة میقات هم په هغې خط واقع دې. ځکه چه دهغې خط مقام او ځائي معلوم او متعین نه دې، او مسئله داده، که یو سړې د حدود میقات نه تجاوز کولو نه بغیر مکې مکرمې ته نزدې ؤرسیږی، او د میقات یا د محاذات میقات ورته علم او یقین نه وی، نو د کعبة الله نه دې دوه منزله لرې احرام ؤتړی، کما فی الـدرالمختار... او د جدې نه مخکښې د میقات یا د محاذات میقات نه تجاوز نه کیږی، او نه د دوؤ منزلو نه کم فاصله مکې مکرمې ته د څه ځائي نه وی، ددې وجه نه جدې ته رسیدلو نه مخکښې احرام تړل واجب اولازم نه دی، که د حدود میقات یامحاذات میقات نه څوک دامفهوم واخلی، چه د بیت الله شریف نه خط مستقیم یو میقات باندې تیرولو سره نیغ مخکښې حل کبیر او آفاق کښې په سمندری علاقه کښې اورسولې شی نو هغه ټول خط میقاتی دې، او ددې خط نه بغیر د احرام تړلو مخکښې تلل او... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



کولې شی﴿۱﴾.او بغیر د احرام نه (یعنی بغیرد عمرې د نیت نه) مکې معظمې ته داخلیدې نشی.(شامی).﴿۲﴾ وهو الموفق

## که په میاشتودحج کښې یوحاجی دعمرې نه پس د حج نیت وکړی نو..؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زید په جده کښې دې، هغه په اشهر حج کښې عمره هم ادا کړې ده، او د عمرې نه پس حلال شو او دوباره ئې د قران احرام ؤتړلو. آیا په زید به دم واجب وی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عمردراز تنډو محمد خان سنده

**الجواب:** که جده د زمین حل نه بهروی، کماهورأی بعض الاکابر﴿۳﴾ نوپه هغې

(بقیه حاشیه)...... تجاوز کول د حدود میقات نه تجاوز کول شماریږی،نودا مفهوم په یوڅو وجهو سره غلط دې. الخ..... (نظام الفتاوی ۲:۱۸۰ کتاب الحج)

**(ومثله فی جواهر الفقه للشیخ المفتی محمد شفیع الدیوبندی)**

**﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: والمکی ومن فی حکمه (ای من اهل داخل المواقیت) یفرد فقط ولو قرن او تمتع جاز واساء وعلیه دم جبر.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۱۴ باب التمتع)**

**﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وحرم تأخیر الاحرام عنها لمن ای لآفاقی قصد دخول مکة یعنی الحرم ولو لحاجة غیر الحج.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۱٦۷ فصل فی المواقیت)**

﴿۳﴾ مولانامفتی محمد شفیع رحمه الله فرمائی، چه ترڅو پورې ما غوراو فکرکړې دې، نوترجیح راته ددې معلومه شوې ده، چه بحری مسافرو دپاره جدې پورې احرام مؤخرکول،او د جدې نه تړل، نه څه ګناه ده،او نه په دې دم لازمیږی.مولانا ظفر احمد تهانوی رحمه الله فرمائي، چه حضرت مولانا خلیل احمد سهارنپورې رحمه الله به د اهل هند دپاره دبحری جهاز په ذریعه تللو په صورت کښې جدې لره دهغوی میقات ګرځوؤ،اوپه امدادالفتاوی تتمه خامسه طبع قدیم کښې دی،چه حضرت سهارنپوری رحمه الله عرض وکړو، چه د مدینې منورې لار بندیدلو په صورت کښې

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

سړي به دم شکر واجب وی، او د زمین حل یعنی د مواقیت د محاذات نه بهر نه وی، بلکه داخل وی﴿۱﴾، نو په هغې سړي به دم......

(بقیه حاشیه) د حج بدل احرام به د جدې نه وی، او دا ظاهره ده، اهل هند دپاره د یلملم محاذات دڅه معتبر طریقې د وجه نه نه دې، لهذا جده دهغوی میقات دې.
(ملخص جواهر الفقه ۴۷۸،۴۸۷: ۱ مواقیت الاحرام)

مولانا مفتی نظام الدین اعظمی فرمائي چه خپله جده هم د مکې نه دوه منزله فاصلې نه زیاته کښې په حل کبیر او آفاق کښې واقع ده. نظام الفتاوی ۲: ۱۸۰ کتاب الحج)

﴿۱﴾ مولانا محمد یوسف بنوری رحمه الله فرمائي چه صرف دومره خبره د جدې نه د احرام تړلو دپاره کافی نه ده، چه د تجاوز عن المیقات دپاره د جدې او یلملم فاصله برابر ده، زما په نزد فقهی مسئله داده، چه بحری مسافرو لره د یلملم د محاذات نه احرام تړل ضروری دی، گنی دم به لازم راځی، او توبه به هم ؤباسی.
(جواهر الفقه ۱: ۴۸۲ حضرت بنوری رحمه الله کی رائے)

......دحضرت مولانا مفتی رشید احمد لدهیانوی رحمه الله فرمائي نتیجه دا شوه چه د محاذات یلملم علم کیدلو سره جدې پورې بغیر د احرام نه متجاوز کیدل ناجائز دی.
(جواهر الفقه ۱: ۴۸۲ مفتی رشید احمد صاحب کی رائے)

........ حضرت سیدی وشیخی واستادی واستاد العلماء حضرت مفتی محمد فرید صاحب دامت برکاتهم په نزد په دې دواړو قولونو کښې راجح دادی، چه جده د میقات نه بهر ده، کما صرح به بعض الفتاوی، دغه رنګې په منهاج السنن شرح جامع السنن الترمذی ۴: ۱۰۴ باب فی مواقیت الاحرام لاهل الافاق، کښې په دې باندې تفصیلی بحث شوې دې، چه د مواقیتو په مینځ کښې د خطوط مستقیمه په صورت کښې جده آفاق او حل کبیر کښې راځی. لیکن په دې کښې ددې قید اضافه شوې ده چه، بان لاتکون المسافة من هذا لخط الی مکه اقل من مرحلتین تقدیما لتصریحات الفقهاء علی تحقیقات العلماء او دویمه رائي چه د دائرې په صورت کښې ده، په هغې باندې فقهی اشکال لره وجه د ضعف جوړه کړې ده،.
الوصول الی محیط الدائرة المارة علی المیقات یکون مرکزها مکه وهو تحقیق بعض الشیوخ...... ویرد علیه ان الذی یمر بعیدا من المیقات ولم یدر المحاذاة یلزم ان لا یصح احرامه من مرحلتین وهو خلاف تصریحات الفقهاء. (ازمرتب)



جبر واجب وی﴿۱﴾. وهو الموفق

## د حج تمتع په صورت کښې دم شکر واجب دې
## او د عمرې نه پس احرام پرانستلو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو څو حاجیان د حج تمتع دپاره د ذی الحجې نه څلور میاشتې مخکښې مکې مکرمې ته ؤرسیدل، او د عمرې نه پس ئې احرام پرانستلو، په شوال کښې یوه میاشت په مدینه منوره کښې تیره کړه، او په ذی قعده کښې په واپسې کښې ئې په ذوالحلیفه کښې د عمرې احرام ؤتړلو، اوس سوال دادې، چه دا خلق د عمرې نه پس احرام پرانستلې شی او که د حج ادا کولو پورې به احرام کښې وی؟ بعضې خلق وائي، چه د مدینې منورې نه واپسې باندې د عمرې نه پس او د حج نه مخکښې احرام پرانستلو باندې دم واجبیږی. او بعضې لا باس به وائي، چه په اووم ذی الحجه یعنی یوم ترویه یا اتم ذی الحجه باندې د حج په نیت سره احرام تړل پکار دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد شفیع ۱۹۷۴|۳|۵

**الجواب:** که دا سړې د تمتع اراده لرې، نو د ذوالحلیفه والا عمرې نه به د طواف او سعی نه پس احرام پرانیزی، او دهغې نه پس به د حج احرام تړې، او یو دم شکر به ادا کوی، چه واجب دې، صرح به فی القرآن﴿۲﴾ وصرح به فی الهدایة والفتح﴿۳﴾.........

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: (المتمتع) ذبح کالقارن...... والمکی ومن فی حکمه یفرد ولو قرن او تمتع جاز واساء وعلیه دم جبر.
(الدر المختار علی هامش رد المحتار ۲: ۲۱۳، ۲۱۴ باب التمتع)

﴿۲﴾ قال الله تبارک وتعالیٰ: فاذا امنتم فمن تمتع بالعمرة الی الحج فما استیسر من الهدی، فمن لم یجد فصیام ثلثة ایام فی الحج وسبعة اذا رجعتم. (البقرة: ۱۹۶)

﴿۳﴾ قال العلامة المرغینانی: وصفة التمتع ان یبتدی ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه

والبحر ﴿١﴾ و ردالمحتار﴿٢﴾ وغيره. وهو الموفق

## په مکه کښ د مقيم سړي په شوال کښ عمره کولو په صورت کښ د حج تمتع يا افراد مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښ چه د اتلسم رمضان نه په مکه کښ د حج په نيت سره مقيم يم، د شوال په مياشت کښ ما عمره اداکړه، اوس زما دپاره شرعا څه حکم دې؟ آيا زهٔ دم ادا کړم اود حج افراد نيت وکړم، يا زهٔ د حج تمتع نيت وکړم او قرباني وکړم؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالحفيظ بقاله الفضل الزاهرشارع الحج مکه مکرمة ١٩٨٩|٦|١٧

**الجواب:** که تهٔ ددې عمرې نه پس (کومه چه په شوال کښ تا ادا کړې ده) دحج نه مخکښ مدينې ته نه وې تلې، نو تهٔ مفرد يئ متمتع نه يئ، اوکه تهٔ ددې عمرې نه پس دحج نه مخکښ مدينې منورې ته تلې وې، اودمدينې نه واپسی باندې دېد عمرې احرام تړلې وو، او دهغې نه پس دې حج کړې دې، نود امام صاحب رحمه الله په نزد تهٔ مفرد يئ، او که د مدينې منورې نه واپسی په

(بقيه حاشيه)من الميقات فی اشهر الحج فيحرم بالعمرة ويدخل مکة فيطوف لها ويسعی ويحلق او يقصر وقد حل من عمرته وهذا هو تفسير العمرة، قال ابن الهمام: فتحرير الضابط للمتمتع ان يفعل العمرة او اکثر طوافها فی اشهر الحج عن احرام بها قبلها او فيها ثم حج من عامه بوصف الصحة من غير ان يلم باهله بينهما الماما صحيحا.

(هداية مع فتح القدير ٢: ٤٢٢ باب التمتع)

﴿١﴾ قال العلامة ابن نجيم: (قوله وهو ان يحرم بعمرة من الميقات...... ثم يحرم بالحج من الحرم ويحج ويذبح) فقوله من الميقات للاحتراز عن مکة فانه ليس لاهلها تمتع ولاقران الخ. (البحر الرائق ٢: ٣٦٢ باب التمتع)

﴿٢﴾ قال العلامة الحصکفی: هو ان يفعل العمرة او اکثر اشواطها فی اشهر الحج...... واقام بمکة حلالا ثم يحرم للحج فی سفر واحد...... وذبح کالقارن.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٢١١، ٢١٢ باب التمتع)





وخت باندې تا دحج احرام تړلې وو، نو تهٔ متمتع ئې (هنديه ازمحيط)﴿١﴾ وهوالموفق

## د تمتع درې روژې د لسمې ذی الحجې نه مخکښ د حج په ورځو کښ نيول دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښ چه زيد حج ته لاړو، پنځم ذی الحجې باندې مکې ته ؤرسيدو، او شپږم ذی الحجې باندې ترې هر څه نقد وغيره ؤرک شو. بيا ئې د خپل استعمال کپړې او غوړې وغيره خرڅ کړل او سل يو نيم سل ريال ئې حاصل کړل، په دې پيسو باندې يو يا دوه قرباني کيدې شوې. ليکن په دې صورت کښ جيب خالی کيدهٔ. او په واپسی کښ به د باقی ورځو خرچه نه وه. په اوومه ذی الحجه د سحرې ئې مسئله معلومه کړه. چه روژې به نيول وی. او په اوومې ذی الحجې باندې روژه نيول ممکن نه وو. البته په اتمه ئې روژه ونيوله. بيا ئې په نهمه او لسمه ذی الحجې باندې د پيدل حج په وجه روژه ؤنه نيوله. ددې وجه نه دوه روژې ئې په ديارلسم او څوارلسم ذی الحجې باندې ؤنيولې، او اووه روژې ئې پاکستان کښ ؤنيوې، اوس سوال دادې، چه ددغې حج تمتع قرباني چه واجب وه، آيا په دې روژو باندې هغه واجب ادا شو، او که ادا شوې نه ده، نو اوس به ددې قرباني څه کيږی؟ بينوا توجروا

المستفتی: محمد حمزه گورنمنټ کالج گوجره ١٩٧٤|٣|٢

**الجواب:** واضحه دې وی چه په دې سړې باندې ذبح متعين شوې ده، په روژو

﴿١﴾ وفی الهندية: لو احرم لعمرة قبل اشهر الحج فقضاها وتحلل واقام بمکة فاحرم بعمرة ثم حج من عامه ذلک لم يکن متمتعا فان کان حين فرغ من الاولی خرج فجاوز الميقات قبل اشهر الحج فاهل منه لعمرة فی اشهر الحج وحج من عامه فهو متمتع وان کان جاوز الميقات فی اشهر الحج لم يکن متمتعا الا اذا خرج الی اهله ثم اعتمر ثم حج من عامه عند ابی حنيفه رحمه الله وعندهما هو متمتع جاوز الميقات قبل اشهر الحج او بعدها کذا فی محيط السرخسی.

(فتاویٰ عالمگيريه ١: ٢٤٠ الباب السابع فی القران والتمتع)

سره دهغه ذمه فارغه شوې نه ده. پس دا سړې به دوه قرباني کوي. (بحر ۲: ۳۶۰)﴿۱﴾ او دا دوه قرباني به په حرم کښې کوي. اصالة یا وکالة. اګر که د ذبح ورځې نه وي. (شامي ۲: ۳۴۴)﴿۲﴾ او په غوا کښې دوه حصې هم کافي دي (بحر ۲: ۳۵۹)﴿۳﴾. وهو الموفق

## دم شکر صرف په قارن او متمتع باندې واجب دې. په مفرد باندې نشته

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه آیا قرباني صرف په قارن او متمتع باندې واجبه ده. یا مفرد باندې هم واجبه ده؟. که مفرد قرباني وکړي نو جائز ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: رشید ګل سعودی عرب ۱۹۸۴|۶|۱۹

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجيم: والعبرة لايام النحر فى العجز والقدرة وكذا لو قدر على الهدى قبل ان يكمل صوم الثلاثة ايام او بعد ما اكمل قبل ان يحلق ويحل وهو فى ايام الذبح بطل صومه ولا يحل الا بالهدى...... ان لم يصم الثلاثة حتى دخل يوم النحر لم يجزه الصوم اصلا وصار الدم متعينا لان الصوم بدل والابدال لا تنصب الا شرعا والنص خصه بوقت الحج وجواز الدم على الاصل وعن ابن عمر انه امر فى مثله بذبح الشاة فلو لم يقدر على الهدى تحلل وعليه دمان دم التمتع ودم التحلل قبل الهدى.
(البحر الرائق ۲: ۳۶۱ قبيل باب التمتع)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: (ويتعين الحرم لامنى) اى بل يسن لما فى المبسوط من ان السنة فى الهدايا ايام النحر منى وفى غير ايام النحر فمكة هى الاولىٰ شرح اللباب.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۷۲ باب الهدى)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجيم: (ذبح شاة او بدنة او سبعها) واطلق البدنة فشملت البعير والبقرة والسبع جزء من سبعة اجزاء وانما كان مجزئا لحديث الصحيحين.
(البحر الرائق ۲: ۳۵۹ باب القران)



**الجواب:** قرباني (دم شکر) صرف په قارن یا متمتع باندې واجب وي. نه په مفرد باندې، کما فى الهداية﴿۱﴾ و ردالمحتار﴿۲﴾ والهندية﴿۳﴾ وغيرها. په دې کښې د فرض او نفل هیڅ فرق نشته. او که مفرد په دې قرباني کښې د کمزورو د ازالې نیت وکړي، نو جائز ده. بخلاف القارن والمتمتع﴿۴﴾. او که متمتع یا قارن قرباني لره په رمي باندې مقدم کړي. نو په دې کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دم واجب دې. خلافا لمن سواه (هدايه﴿۵﴾ ردالمحتار﴿۶﴾ وهنديه وغيرها) وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة المرغيناني: واذا رمى الجمرة يوم النحر ذبح شاة او بقرة او بدنة او سبع بدنة فهذا دم القران لانه فى معنى المتعة والهدى منصوص عليه فيها.
(هداية ۱: ۲۴۰ باب القران)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: وذبح للقران وهو دم شكر اى لما وفقه الله تعالىٰ للجمع بين النسكين فى اشهر الحج بسفر واحد. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۲۰۹ باب القران)

﴿۳﴾ وفى الهندية: اذا رمى جمرة العقبه يوم النحر يذبح دم القران وهذا الدم نسک من المناسک. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۲۳۸ الباب السابع فى القران والتمتع)

﴿۴﴾ وفى الهندية: ثم يرجع الى منىٰ فان كان معه نسک ذبحه وان لم يكن فلا يضره لانه مفرد بالحج ولو كان قارنا او متمتعا فلا بدله من الذبح.
(فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۲۳۱ باب فى كيفية اداء الحج)

﴿۵﴾ قال العلامة المرغيناني: ومن اخر الحلق حتى مضت ايام النحر فعليه دم عند ابى حنيفة وكذا اذا اخر طواف الزيارة وقالا لا شئ عليه فى الوجهين وكذا الخلاف فى تاخير الرمى وفى تقديم نسک على نسک كالحلق قبل الرمى ونحر القارن قبل الرمى.
(هداية ۱: ۲۸۷ باب الجنايات)

﴿۶﴾ قال العلامة الحصكفى: او قدم نسكا على آخر فيجب فى يوم النحر اربعة اشياء الرمى ثم الذبح لغير المفرد ثم الحلق ثم الطواف لكن لا شئ ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## د قربانۍ طاقت لرلو باوجود روژې نيول کافي نه دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو حاجي هلته کښې قرباني ؤنکړې، او لس روژې متواتر ؤنيسي، آيا په هغه دم واجب دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: حاجي عبد المجيد پيښور ښار ۱۴ صفر ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** کوم حاجي چه متمتع يا قارن وي، په هغه قرباني لازم ده، او د عدم قدرت په وجه لس روژې نيول کافي دي. ليکن د قدرت باوجود روژې نيول کافي نه دي، قرباني کول ضروري دي. ماخوذ از ردالمحتار﴿۱﴾. وهو الموفق

## په حاجي باندې د لوئي اختر قرباني واجب نه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه په دوؤ رونړو کښې يو د حج دپاره لاړو، په کور چه کوم ورور پاتې دې، په هغه باندې د خپل حاجي ورور د طرف نه قرباني واجب ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: مختار سيد بنوى......۱۹۸۳ء/۱۸/۱۲

**الجواب:** په حاجي قرباني واجب نه ده. نه په منى کښې نه په وطن کښې. کما في

---

(بقيه حاشيه)على من طاف قبل الرمي والحلق، قال ابن عابدين: قوله فيجب الخ لما كان قوله او قدم الخ بيانا لوجوب الدم بعكس الترتيب فرع عليه ان الترتيب واجب مع بيان مايجب ترتيبه ومالا يجب فافهم.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۲۲۶ باب الجنايات)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وذبح للقران وهو دم شكر ...... وان عجز صام ثلاثة ايام ...... آخرها يوم عرفة...... وسبعة بعد تمام ايام حجه فرضا او واجبا وهو بمعنى ايام التشريق.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۲۰۹ باب القران)



البدائع ۵: ۶۳ وذكر في الاصل وقال ولا تجب الاضحية على الحاج واراد بالحاج المسافر الخ﴿۱﴾ وتمام الكلام في السارى﴿۲﴾. وهو الموفق

## په حرمين کښې مقيم حاجي دپاره د اضحيې مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه زما والد صاحب دې کال حج ته روانيدو نه مخکښې ماته ؤوئيل. چه تۀ زما د طرف نه يوه چيلۍ حلاله کړه، کومه چه دم اضحيه ده. او ما باندې واجب ده. باقي د دم شکر قرباني به زۀ په خپله وکړم. ما د مقامي علماؤ نه پوښتنه وکړه، هغوي ؤوئيل چه دوه قرباني نشته، ددې وجه نه ما د والد صاحب د طرف نه قرباني ونکړه، چه کله هغه واپس راغلو. او هغه ته معلومه شوه. نو ډير خفه شو، اوس د شريعت مطابق ددې قرباني څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: سردار علي خان....۱۹۷۴/۲/۲۴

---

﴿۱﴾ (بدائع الصنائع ۴: ۱۹۵ كتاب التضحية فصل شرائط الوجوب)

﴿۲﴾ قال العلامة ملا علي قاري: اعلم ان الاضحية واجبة على كل مسلم حر مقيم موسر ويستوى فيه المقيم بالامصار والقرىٰ والبوادى فلا تجب على المسافرين ولا على الحاج اذا كان محرما وان كان من اهل مكة كذا في الخزانة ولعل وجهه انه يجب على الحاج دم القران او متعة ويستحب لهم دم افراد فيسقط عنهم دم الاضحية تخفيفا عليهم كما سقط عنهم صلاة العيد اجماعا وكذا صلاة الجمعة بمنىٰ عند بعضهم قال السنجارى في منسكه ولا تجب الاضحية على المسافر والحاج لان فيه الحاق المشقة بالمشقة وتجب على اهل مكة لعدم المشقة فيهم ولعله اراد باهل مكة من لم يحج منهم ولا يبعد انه اذا اراد عمومهم فقد قال الحدادى واما اهل مكة فتجب عليهم وان كانوا حجوا كذا في الكرخي وذكر في الخجندى انها لا تجب على الحاج اذا كان محرما وان كان من اهل مكة، والله اعلم.

(ارشاد السارى ۲۶۳ مطلب في التحقيق في اضحية اهل مكة اذا حجوا)

**الجواب:** محترم! وعلیکم السلام نه پس دا خبره دې واضحه وی، چه که ستا والد صاحب په رمضان کښې مدینې ته تلې وی، او دهلته نه په شوال کښې د عمرې په نیت مکې مکرمې ته واپس شو. نو ستا والد متمتع وو، په هغه دم تمتع واجب دې. کوم چه هغه ادا کړو. او چونکه ستاسو والد په حرمین کښې مقیم وو، کما هو الظاهر لانه نوی اکثر من خمسة عشر یوما لهذا په هغه اضحیه واجبه وه﴿۱﴾. او چه کله تا دهغه د طرف نه اضحیه ذبح نه کړه. نو اوس یو متوسط ګډ. چه د شپږو میاشتو نه زیات عمر ئې وی، او دومره څورب وی. چه د کال معلومیږی. دهغې قیمت په مسکینانو کښې تقسیم کړه. کما فی ردالمحتار ۵: ۲۸۰)﴿۲﴾. وهو الموفق

## په ایام نحر کښې دم نه کولو والا حاجی به اوس څه کوی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه کله یو حاجی

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: وذکر فی الاصل وقال: ولا تجب الاضحیة علی الحاج واراد بالحاج المسافر فاما اهل مکة فتجب علیهم الاضحیة وان حجوا لما رویٰ نافع عن ابن سیدنا عمر رضی الله عنهما انه کان یخلف لمن لم یحج من اهله اثمان الضحایا لیضحوا عنه تطوعا. (بدائع الصنائع ۴:۱۹۵ کتاب التضحیة فصل شرائط الوجوب) ومثله فی ارشاد الساری ۱:۲۶۳ مطلب فی التحقیق فی اضحیة اهل مکة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله وتصدق بقیمتها غنی شراها اولا) وتعقبه الشیخ شاهین بان وجوب التصدق بالقیمة مقید بما اذا لم یشتر اما اذا اشتری فهو مخیر بین التصدیق بالقیمة او التصدق بها حیة کما فی الزیلعی ابوالسعود...... فبین ان المراد اذا لم یشترها قیمة شاة تجزئ فی الاضحیة کما فی الخلاصة وغیرها قال القهستانی او قیمة شاة وسط کما فی الزاهدی والنظم وغیرهما.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵:۲۲۶ کتاب الاضحیة)



په ایام نحر کښې د لاعلمی، هیره یا بل څه وجه نه دم ادا نه کړی، او د حج نه مخکښې د زیارت مدینة الرسول دپاره تلې وی. اوس به دا حاجی یو دم ادا کوی او که دوه؟ او په ایام نحر کښې یا په نورو ؤرځو کښې هم ادا کولې شی؟ او په زمین حرم کښې که په زمین حل کښې هم کیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: فضل هادی حقانی خرکی ضلع مردان ۱۹۷۴|۹|۸

**الجواب:** که دا حاجی د مدینې منورې نه په رمضان کښې واپس شوې وو، نو په دۀ دم تمتع نشته. البته که دۀ عامه قربانی په ایام نحر کښې نه وه کړې. نو دیو ګډ قیمت دې د صدقې په طور په مسکینانو کښې تقسیم کړی﴿۱﴾. او که د مدینې منورې نه په شوال کښې د عمرې په احرام کښې راغلې وو. نو په دۀ دم تمتع واجب ده﴿۲﴾. او د تاخیر په وجه به دم جنایت هم واجب وی. او د زمین حرم سره به مختص وی. (هندیه)﴿۳﴾ او که دا حاجی د وقوف عرفات نه مخکښې وفات شوې وی، نو په هغه نه قربانی واجب ده. او نه دم تمتع وغیره، پس که دې حاجی حج مکمل کړې وی. لیکن دم تمتع ئې ذبح کړې نه وی، نو چالره دې وکیل جوړ کړی او په حرم کښې دې دوه ګډان وغیره ذبح کړی. که د حج په ؤرځو کښې وی. او که مخکښې وی. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: وتصدق بقیمتها غنی شراها اولا لتعلقها بذمته بشرائها اولا فالمراد بالقیمة قیمة شاة تجزی فیها.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵:۲۲۶ قبیل فروع کتاب الاضحیة)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: والمتمتع من یأتی باعمال العمرة فی اشهر الحج اویطوف اکثر طوافها فی اشهر الحج ثم یحرم بالحج ویحج من عامه ذلک قبل ان یلم باهله بینهما الماما صحیحا. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۳۸ باب القران والتمتع)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: لا یجوز ذبح هدی المتعة والقران الا فی یوم النحر حتی لو ذبح قبله لا یجوز اجماعا وبعده کان تارکا للواجب عند الامام فیلزمه دم ویجوز ذبح بقیة الهدایا فی ای وقت شاء ولا یجوز ذبح الهدایا الافی الحرم.

(فتاوی عالمگیریه ۱:۲۶۱ الباب السادس عشر فی الهدی)

## د حج د قرباني نه خوړل ضروري نه دي.

## وينې تويولو سره ثواب ملاويږي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه په حج کښې په لکهونو قربانۍ کيدلو نه پس په آخر کښې هغه سوزولې شي، خلق لږه شان غوښه ؤخوري، باقي پريږدي، او ضائع شي، ددې څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: ليفټننټ محمد دين جده سعوديه. ۱۹۸۳|۸|۱۰

**الجواب:** د قربانۍ د غوښې نه خوړل ضروري نه دي، وينې تويولو سره ثواب ملاويږي﴿۱﴾، وهو الموفق.

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابی بکر بن علی الحداد اليمنی: الاضحية اراقة الدم من النعم دون سائر الحيوان والدليل علی انها الاراقة انه لو تصدق بعين الحيوان لم يجز والصدقة بلحمها بعد الذبح مستحب وليس بواجب حتی لولم يتصدق به جاز قال فی الواقعات شراء الاضحية بعشرة دراهم خير من التصدق بالف درهم لان القربة التی تحصل باراقة الدم لا تحصل بالصدقة. (الجوهرة النيرة ۲: ۲۸۱ کتاب الاضحية)**

............



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه څلورم جلد

# باب الحج عن الغير



............

بِسۡمِ اللّٰہِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

........عن ابن عباس:........

ان امراة سالت النبی صلی الله علیه وسلم فقالت: ان ابی شیخ لایستوی علی البعیر ادرکته فریضة الله؟ فقال رسول الله صلی الله علیه وسلم حجی عنه.

بخاری، مسلم، ابوداؤد، ترمذی، موطا، نسائی، ابن ماجه، دارمی

........



# باب الحج عن الغیر

## په حج عن الغیر کښې حج تمتع کول جائز دی:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دي مسئلي باره کښې چه یو څو سړو د حج بدل اراده کړې ده. په معلم الحجاج ملقب په اشرف المناسک کښې ئې لیکلي دی، چه حج عن الغیر والا تمتع نشی کولې. او تمتع په اجازت سره هم جائز نه ده. مولانا خلیل احمد مهاجر مدنی شارح سنن ابی داؤد هم د عدم جواز فتوی ورکړې ده. اوس سوال دادې، چه په حج عن الغیر کښې تمتع کیدې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الجلیل کربوغه شریف.۱۹۷۸/ ۹/۸

**الجواب:** په حج بدل کښې چه کله د آمر په اجازت سره قران او تمتع وکړی شی، نو په دې کښې اختلاف دې، ملا علی قاری رحمة الله علیه ﴿۱﴾ او حضرت گنگوهی رحمة الله علیه ﴿۲﴾ وغیره عدم جواز لره مختار کړي دي، او ارشاد الساری ۳۰۴ په

---

**﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: ان هذا القید سهو ظاهر اذ التفویض المذکور فی کلام المشائخ مقید بالافراد والقران لاغیر...... واما ما فی قاضی خان من التخییر بحجة او عمرة وحجة او بالقران فلا دلالة علی جواز التمتع اذالواو لا تفید الترتیب فیحمل علی حج وعمرة بان یحج اولا عنه ثم یأتی بعمرة له ایضا.**

(ارشاد الساری الی مناسک القاری ۳۰۴ قبیل فصل ولوصی المیت او وارثه......)

﴿۲﴾ قال الشیخ الجنجوهی: پس که آمر حج دپاره اووئیل او مامور تمتع اوکړو نو ضمان به ورکوی او حج به د مامور وی د آمر به نه وی علیٰ هذا. اوتمتع کول په هیڅ حال کښې صحیح نه ده اګرچه آمر اجازت کړې وی. الخ.

(تالیفات رشیدیه رساله زبدة المناسک ۶۴۷ باب الحج عن الغیر)

ملاعلی قاری رحمه الله باندې رد کړې دې او جواز لره ئې راجح ګرځولې دې﴿۱﴾

**قلت وهو الاقوىٰ لان كلام ابى بكر محمد بن الفضل لغير الجواز حيث قال اذا امر غيره بان يحج عنه ينبغى ان يفوض الامر الى المأمور فيقول حج عنى بهذا المال كيف شئت ان شئت حجة وان شئت حجة وعمرة وان شئت قرانا كذا فى الخانية على هامش الهندية ۱: ۲۸۱﴿۲﴾ وكذا يقتضيه كلام غاية البيان حيث قال فى شرح قوله الهداية فان امره غيره ان يقرن عنه فالدم على من احرم واراد بالقران الجمع بين النسكين قرانا كان او تمتعا فافهم﴿۳﴾، واستدلال المخالف بعبارات الفقهاء لا يصح لانها وردت عند الامر بالافراد وعللوها بعدم الاذن، وفى الصورة المسؤلة يأمره الآمر بالحج وهو فى عرفنا شامل للاقسام الثلاثة وكذا لاريب فى الاذن لا سيما عند الاستيذان ومزيد التفصيل فى جواهر الفقه ۱: ۵۰۸ فليراجع﴿۴﴾. وهو الموفق**

## په حج بدل کښې درې واړه قسمه حج د آمر نه واقع کیږی

**سوال:** په حج بدل کښې یعنی حج عن الغیر کښې که مامور د میقات نه احرام

---

﴿۱﴾ قال الشيخ حسين بن محمد سعيد المكى: قوله فيه ان هذا القيد سهو ظاهر قال القاضى عيد فى شرحه لهذا الكتاب ولا يخفى ان هذا سهو منه لان الميت لو امره بالتمتع فتمتع المأمور صح ولا يكون مخالفا بلا خلاف بين الائمة الاسلاف فتدبر.

(ارشاد السارى الى مناسک القارى ۲۰۴ قبيل فصل ولوصى الميت)

﴿۲﴾ (فتاوىٰ قاضى خان على هامش الهندية ۱: ۳۰۷ فصل فى الحج عن الميت)

﴿۳﴾ (هداية ۱: ۲۷۸ باب الحج عن الغير)

﴿۴﴾ (جواهر الفقه ۱: ۵۰۸ رساله منهج الخير فى الحج عن الغير)

.........



ؤتړو او اول ئې عمره ادا کړه، که د خپل ځان دپاره وی، یا د آمر دپاره، او بیا روستو ئې حج ادا کړو د مکې مکرمې نه، نو آیا دا حج د آمر دپاره شو او که نه؟ په بعضو کتابونو کښې لایجوز مذکور دې، دهغې عبارات دادی

**ان من شروط الحج عن الآمر ان يحرم من الميقات فلو اعتمر وقد امره بالحج ثم حج من مكة يضمن فى قولهم جميعا ولا يجوز ذلک عن حجة الاسلام، الثالث عشر عدم المخالفة فلو امره بالافراد فقرن او تمتع ولو للميت لم يقع حجه عن الآمر ويضمن النفقة الخ،**

په دې مسئله کښې ددې ځائي علماؤ کښې ډیر زیات اختلاف دې، بعض د وقوع او جواز قائل دی، او بعضې د عدم وقوع او عدم جواز قائل دی، براه مهربانی وضاحت ؤفرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: جاجی نوراجان

**الجواب عن عبد الله جان ناصر دکی:** دلته کښې د تفصیل ضرورت دې، دهغې نه پس صراحة به معلومه شی چه دا حج د آمر دپاره واقع او جائز دې. تفصیل ئې دادې. عبارت د بحرالرائق:

**بحر الرائق ۲: ۳۱۸ لان الافاقى اذا قصد موضعا من الحل كخليص يجوز له ان يتجاوز الميقات غير محرم واذا وصل اليه التحق باهله، ومن كان داخل الميقات فله ان يدخل مكة بغير احرام اذا لم يقصد الحج اوالعمرة وهى الحيلة لمن اراد ان يدخل مكة بغير احرام وينبغى ان لا تجوز هذه الحيلة للمامور بالحج (لانه حينئذ لم يكن سفره للحج) ولانه مامور بحجة آفاقية واذا دخل مكة بغير احرام صارت حجته مكية فكان مخالفا وهذه المسئلة يكثر وقوعها فيمن يسافر فى البحر الملح وهو مامور بالحج ويكون ذلک فى وسط السنة فهل له ان يقصد البندر المعروف بجدة ليدخل مكة بغير احرام حتى لا يطول الاحرام عليه لو احرم بالحج فان المامور بالحج ليس له ان يحرم بالعمرة،**

بیا اوګورئ جلد ۲ ص۳۱۸ باندې عبارت:

**منحة الخالق على البحر لابن عابدين تحت قوله لانه حينئذ لم يكن سفره للحج،**

هذا التعليل يفيد انه لا ترتفع المخالفة بخروجه بعد الى احد المواقيت واحرامه منه، ونقل كلام المولف هنا الشيخ حنيف الدين المرشدى فى شرح منسكه واقره ونقله عنه القاضى محمد عيد فى شرح منسكه كما فى حاشية المدنى على الدرالمختار، ثم قال فيها ونقل الملا على قارى فى رسالته المسماة. (بيان فعل الخير اذا دخل مكة من حج عن الغير)انه وقعت مسئلة اضطرب فيها فقهاء العصر وهى ان الآفاقى الحاج عن الغير اذ انفصل عن الميقات بغير احرام للحج هل هو مخالف ام لا؟ فقيل نعم فيبطل حجه عن الآمر وان عاد الى الميقات، واحرم وقيل لا بل عليه ان يرجع الى الميقات ويحرم عن الآمر واعتمد الاولون على ظاهر ما فى المنسك الكبير للسندى ان من شروط صحة الحج عن الآمر ان يحرم من الميقات فلو اعتمر وقد امره بالحج ثم حج من مكة يضمن فى قولهم جميعا ولا يجوز ذلك عن حجة الاسلام، لانه مامور بحجة ميقاتيته الخ...... ولا يصح الاعتماد عليه لان الشرط فرض لا يثبت الا بدليل قطعى فمجرد قوله من غير نقله عن مجتهد او اسناده الى دليل غير مقبول، واطال الى ان قال وبما ذكرناه افتى الشيخ قطب الدين وشيخنا سنان الرومى فى منسكه وافتى به الشيخ على المقدسى ونقل فتواه فراجعها الخ ما فى الحاشية ملخصا اقول وفى رده ما ذكره السندى نظر، لان المسئلة منقولة والمقلد متبع للمجتهد وان لم يظهر دليله ففى التتارخانية عن المحيط ولو امره بالحج فاعتمر ثم حج من مكة فهو مخالف فى قولهم وفى الخانية ولا يجوز ذلك عن حجة الاسلام عن نفسه وكذا لوحج ثم اعتمر كان مخالفا عند العامة، وفى المحيط ولو امره بالعمرة فاعتمر اولا ثم حج عن نفسه لم يكن مخالفا وان حج اولا ثم اعتمر فهو مخالف الخ



فليتأمل وفى قول ابن عابدين فليتأمل اشارة الى جواب نظره وهو ان نقل الدليل عن مجتهد او اسناده الى دليل لا ينافى التقليد والاتباع وايضا قال ملا على قارى فى كتاب المناسك ۲۵۳ وايضا فيه اشكال آخر حيث ان الميقات من اصله ليس شرطا لمطلق الحج واصالته بل انه من واجباته فكيف يكون شرطا وقت نيابته فان وجد نقل صريح او دليل صحيح فالامر مسلم والا فلا.

حاصل ما قال الملا على قارى فى المنحة وفى كتاب المناسك ان الميقات اما ان يكون شرطا اولا، فان كان شرطا فالشرط فرض لا يثبت الخ ولم يأت احد بدليل قطعى الى الآن ولم يوجد، وان لم يكن شرطا بل من واجبات الحج فكيف يكون شرطا وقت نيابته فان وجد نقل صريح ودليل صريح فالامر مسلم والا فلا.

وبقوله ان الشرط فرض الخ وان الميقات من اصله ليس شرطا الخ اندفع ما قال فى ردالمحتار فى باب الحج عن الغير ۲۱۱،۲۱۲ وهذا يفيد جواز الحيلة المذكورة اذا عادل الميقات واحرم على ان البحر الرائق علل بعلتين احدهما قوله لانه حينئذ لم يكن سفره للحج وثانيهما لانه مامور بحجة افاقية وبينهما تناقض كما يظهر بادنى تامل، وهو ان قوله لانه حينئذ تعليل يفيد انه لا ترتفع المخالفة بخروجه بعد الى احد المواقيت واحرامه منه كما ذكرناه آنفا، وقوله لانه مامور بحجة آفاقية تعليل يفيد ويفهم منه انه لو خرج الى الميقات واحرم منه انه يصح ولعل البحر لهذا التناقض اتى وجاء بلفظ ينبغى وهو غير صريح فى اشتراط الاحرام من الميقات وعلل الشيخ السندى بعلة واحدة وهى قوله لانه مامور بحجة ميقاتية وهى ايضا منقوضة بما قال فى المنحة على البحر۳:۶۳ وهو (قول السندى لانه ماموربحجة ميقاتية) يفهم منه انه لو

خرج الی المیقات واحرم منه انه یصح لکن یرد علیه انه لما اعتمر جعل سفره للعمرة ولم یؤمر به فیکون مخالفا کما یفیده قوله الآتی (لانه جعل المسافة) والقول الآتی من آخر صفحة ۶۳ الی نصف سطری ثانیة ۶۴.

وایضا قال ملا علی قاری فی کتاب المناسک ۱۵۳ تحت قوله فلو امره بالافراد فقرن او تمتع به ولعل وجهه انه مامور بتجرید السفر للحج فانه المفروض علیه وینصرف مطلق الامر الیه الا انه یشکل علیه اذا امره بافراد العمرة ثم اتیان الحج بعده او صرح بالتمتع فی سفره او بتفویض الامر الیه.

ددې تفصیل نه معلومه شوه چه دا حج د آمر دطرفه واقع او جائزدې.

المجیب: عبدالله ناصر دکی لورآلائي.

**الجواب عن مفتی صاحب دامت برکاتهم:** ددې عباراتو نه دا نه ثابتیږی، چه دا حج د آمر نه واقع کیږی، البته د عوامو په عرف کښې د حج اطلاق په درې وارو قسمونو افراد، تمتع او قران باندې کیږی، لهذا په دې بناء باندې دا حج د آمر د طرف نه واقع کیږی فافهم ﴿۱﴾. وهو الموفق

محمد فرید عفی عنه..... ۲۸ ذی الحجه ۱۳۹۴هـ

---

﴿۱﴾ په دې کښې اصل او قاعده داده، چه د میقات د ذکر نه بغیر امر کولو په صورت کښې د آفاقی چه د میقات نه احرام تړل شرط دی، هغه د میقات نه دا حکم دلالة ثابتیدلو په وجه دې. پس هرکله چه د آمر اجازت ددې نه خلاف واقع شو، مثلا دهٔ ته ئې د قران حکم اوکړو، یا دا معامله ئې دهغهٔ په اختیار پرېخودله، نو دا شرط به هم ساقطیږی، تردې پورې که هغه د میقات نه د عمرې احرام ؤتړلو، بیا ئې د مکې مکرمې نه دهغې سره دهغه د طرف نه د حج احرام یوځائې کړو، تردې پورې چه دهغه حج، حج قران شو، نو دا جائز دی، ځکه چه دهٔ دهغه د حکم مطابق ادا کړې ده، او اوس به هغه د مکې مکرمې نه ددهٔ د حج احرام تړلو په وجه مخالف نه وی، ځکه چه دهٔ ته دهغه اجازت حاصل دې، دغه رنګې که آمر د تمتع حکم وکړو، نو په تمتع کښې د نیابت جائز کیدلو د قول په بناء باندې به د مامور تمتع کول هم جائز شی. پس دا د میقات نه د احرام...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د یو حاجی د طرف نه د حج بدل کولو حکم:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړي مخکښې حج ادا کړې دې، آیا د هغه د طرف نه حج بدل کول صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی ظفر الحق ۲۷ ربیع الاول ۱۴۰۵هـ

**الجواب:** چاچه فریضه حج ادا کړې وی، نو دهغه د طرف نه دوباره حج ادا کول جائز دی﴿۱﴾، او کوم سړې چه فریضه حج ادا کړې وی، نو هغه د بل د طرف نه بلاکراهت حج بدل کولې شی﴿۲﴾. وهو الموفق.

---

(بقیه حاشیه)... شرط د نیابت حج دپاره فی نفسه شرط نه دې، بلکه د آمر د امر نه دلالة ثابتیدو په وجه دې، (عمدة الفقه ۴: ۲۵۴) ددې قول نه معلومه شوه، چه زمونږ په عرف کښې حج هم ددې مشهور قسم یعنی د حج تمتع نوم دې، او عوام په دې کښې فرق نه کوی، بلکه د مطلق حج حکم کوی، او د هرقسم حج اجازت وی، نو دلالة ددې نه هم دا حج تمتع مراد وی، او په نظام الفتاوی ۱: ۱۵۱ کښې دی، "او که آمر د قران او تمتع اجازت ورکړو، اګر که مجملا ئې ورکړې وی، مثلا په دې شان سره چه تاته اختیار دې، چه زما د طرف نه څرنګه غواړې حج بدل وکړه، نو په دې صورت کښې مامور ته حج تمتع او قران دواړه کول جائز دی.. کما فی ردالمحتار ودم القران والتمتع والجنایة علی الحاج ان اذن له الآمر والا فیصیر مخالفا فیضمن. معلومه شوه، چه د آمر د اجازت او غیر اجازت د دواړو حکم یوشان نه دې، بلکه فرق پکښې شته، انتهی. پس معلومه شوه، چه زمونږ په عرف کښې د حج تمتع اجازت مجملا دلالة وی، اوپه فتاوی قاضی خان کښې دی.

**اذا امر غیره بان یحج عنه ینبغی ان یفوض الامر الی المأمور فیقول حج عنی بهذا المال کیف شئت ان شئت حجة وان شئت حجة وعمرة وان شئت قرانا.**

**(فتاویٰ قاضی خان علی هامش الهندیة ۱: ۳۰۷ حج عن الغیر)...... از مرتب**

**﴿۱﴾ وفی الهندیة: ففی الحج النفل تجوز النیابة حالة القدرة لان باب النفل اوسع کذا فی السراج الوهاج. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۵۷ باب الحج عن الغیر)**

**﴿۲﴾ وفی الهندیة: والافضل للانسان اذا اراد ان یحج...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)**

## په حج بدل کښې نفقه د آمر په ذمه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه مور خپل ځوی ته د نورو ورونړو نه څه پیسې زیاتې ورکړې وې. اوس دا هلک حج بدل کول غواړی؟ آیا د والدې د طرف نه به په دې مال باندې حج بدل کولې شی. یا د نور مال ضرورت به وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مختار احمد غازی هری پور

**الجواب:** په حج بدل کښې دا ضروری ده، چه خرچه به د آمر د مال نه کولې شی. کما فی ردالمحتار ۲: ۳۲۸)﴿۱﴾ وهو الموفق

## د ښځې د پار محرم نه ملاویدو په صورت کښې د حج بدل مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یوه ښځه مالداره ده، او د محرم خرچه هم ادا کولې شی، لیکن هغې ته یو محرم داسې نه ملاویږی، چه دهغه سره حج کول جائز وی، آیا دا ښځه حج بدل کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......

**الجواب:** ښځه بغیر دمحرم شرعی نه حج ته نشی تلې. اودمحرم یاخاوند موجود

(بقیه حاشیه) رجلا عن نفسه ان یحج رجلا قد حج عن نفسه ومع هذا لو احج رجلا لم یحج عن نفسه حجة الاسلام یجوز عندنا وسقط الحج عن الآمر کذا فی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۵۷ باب الحج عن الغیر)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: النفقة من مال الآمر ای المحجوج عنه ومحترزه قوله الآتی ولو انفق من مال نفسه الخ.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۲۵۹ قبیل مطلب شروط الحج عن الغیر عشرون)



کیدل هر وخت کښې ممکن کیدې شی، ددې وجه نه چا لره د حج بدل دپاره مقرر کولې نشی. البته که دا عدم محرم داسې همیشوالې اختیار کړی چه تر مرګه پورې ددې امید نه وی. نو د مریض دائم پشان بیا حج بدل کولې شی، وفی ردالمحتار فیجوز کالمریض اذا احج رجلا ودام المرض الخ﴿۱﴾. وهو الموفق

## حج بدل کولو سره په فقیر سړې باندې حج نه فرض کیږی:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زید یو فقیر سړې دې، او عمر هغه لره د خپلې والدې د حج بدل دپاره لیږی. اوس بعضې خلق وائي، چه فقیر او غریب سړې د حج بدل دپاره نشې تلې، ځکه چه بیا خپله په هغه حج فرض کیږی؟ که هغه زمین حرم پورې ؤرسی، ایا دا صحیح دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حضرت سید شوداګۍ تالاش دیر ۱۹۷۲|۸|۲۸

**الجواب:** بهتر داده چه د حج بدل دپاره داسې سړې ؤلیږلې شی، چه هغه حج ادا کړې وی، لیکن باوجود ددې نه که غریب سړې ؤلیږلې شی، نو هغه باندې حج نه فرض کیږی. (والتفصیل فی ردالمحتار ۲: ۲۳۲)﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ومن العجز الذی یرجی زواله عدم وجود المرأة محرما فتقعد الی ان تبلغ وقتا تعجز عن الحج فیه ای لکبر او عمی او زمانة فحینئذ تبعث من یحج عنها اما لو بعث قبل ذلک لا یجوز لتوهم وجود المحرم الا ان دام عدم المحرم الی ان ماتت فیجوز کالمریض اذا احج رجلا ودام المرض الی ان مات کما فی البحر وغیره.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۲۵۹ قبیل مطلب شروط الحج عن الغیر عشرون)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: جاز حج الصرورة من لم یحج...... وغیرهم اولیٰ لعدم الخلاف، قال ابن عابدین فی التنبیه: ان الفقیر الآفاقی اذا وصل الی میقات فهو کالمکی...... لکن هذا لا یدل علی ان الصرورة الفقیر کذلک لان قدرته بقدرة غیره کما قلنا وهی غیر معتبرة بخلاف ما لو خرج لیحج عن نفسه وهو فقیر فانه......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د ایام حج نه مخکښ د مدینې منورې نه واپسی باندې په ایکسیډنټ کښ شهید شوې د پاره د حج مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه دې کال دوه سړې زمونږ د کلي نه حج د پاره لاړل، عمره ادا کولو نه پس د زیارت نبوی ﷺ د پاره مدینې منورې ته لاړل، په واپسی کښ بس کښ سوارهٔ شو او مکې ته روان شو، چه په ایکسیډنټ کښ دواړه شهیدان شو، اوس دهغوی په وارثانو د هغوی د طرف نه حج بدل لازمی دې او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی امیر احمد تجوړی لکی مروت. ۱۹ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** که دا مرحومین په دې کال د وفات نه مخکښ کال کښ صاحب استطاعت وو، او هغوی د حج کولو متعلق وصیت کړې وو، نو په وارثانو باندې دهغوی د طرف نه حج بدل کول ضروری دی، او که په دې کال کښ صاحب استطاعت شوې وو، او یا ئې وصیت نه وی کړې، نو په وارثانو حج کول ضروری نه دې. (ارشاد الساری وغیره)﴿۱﴾. وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) عند وصوله الی المیقات صار قادرا بقدرة نفسه فیجب علیه.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۲۶۱،۲۶۲ مطلب فی حج الصرورة)

﴿۱﴾ قال العلامة الملا علی قاری: اعلم ان کل من وجب علیه الحج...... وهو قادر علی الاداء بنفسه وحضره الموت او خافه یجب علیه الوصیة بالاحجاج عنه بعد موته فان قدر علیه اولا وعجز عن الاداء بنفسه ای بعده یجب علیه الاحجاج...... ان فرط ای قصر فی التأخیر بان وجب علیه فلم یخرج الیه فی عامه وفیه الایماء الی ان وجوب الایصاء انما یتعلق بمن لم یحج بعد الوجوب اذا لم یخرج الی الحج حتی مات فاما من وجب علیه الحج فحج من عامه فمات فی الطریق لا یجب علیه الایصاء بالحج لانه لم یؤخر بعد الایجاب...... وان مات قبل التمکن من ادائه سقط عنه الحج...... ولا تجب علیه الوصیة به ......ای من لزمه الحج فلم یحج حتی مات قبل التمکن من ادائه......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د حج بدل د پاره تللو والا دې خپل حج وکړی او د بدل د پاره دې په حرمین کښ څوک مقرر کړی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه زید دخپلې والدې د پاره عمر لره په حج بدل باندې ؤلیږلو، لیکن عمر وائي، چه زهٔ به خپل حج کوم، او ستا د والدې د پاره به په حرمین شریفینو کښ څوک د حج بدل د پاره منتخب کړم، نو ماته به د خپل حج د پاره او دغه رنګې د حج بدل کونکې د پاره خرچه راکوې، آیا دا طریقه د حج بدل صحیح ده او ذمه په دې سره فارغیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: روئیداد خان نخونسون بنکاک ۱۹۹۷| ۹| ۳۰

**الجواب:** دا طریقه مذکوره مشروع نه ده، او نه په دې سره د زید د والدې ذمه فارغه کیږی.

اما الاول فلان عمرا لم یحج ام زید، واما الثانی فلما فی ردالمحتار ۲: ۳۲۹ الحادی عشر ان یحج عنه من وطنه ان اتسع الثلث والا فمن حیث یبلغ کما سیأتی بیانه ﴿۱﴾. وهوالموفق

## د پاکستانی د پاره د ابوظهبی نه د حج بدل کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه (۱) زمونږ د یو ملګری والده د ضعیف العمری او کمزورې په وجه مناسک د حج نشی ادا کولې، ددې وجه نه هغې غوې ددې ځائي نه د خپلې والدې د پاره حج بدل ادا کولې شی او که د پاکستان نه به ادا کوی؟

(۲) که یو سړې د وفات شوې والدینو یاد یو رشته دار د طرف نه حج بدل کول غواړی، هرکله چه هغوی وصیت نه وی کړې، نو هغه دلته د ابوظهبی نه حج بدل کولې شی او که د پاکستان نه حج بدل کول ضروری دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اکبر ابوظهبی متحده عرب امارات. ۲۲شعبان ۱۴۰۳ھ

---

(بقیه حاشیه) سقط عنه الفرض بالاتفاق وان مات بعد التمکن لم یسقط عند الشافعی واحمد هذا الخ. (ارشاد الساری ۲۸۷ باب الحج عن الغیر)

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۶۰ مطلب شروط الحج عن الغیر عشرون)

**الجواب:** (۱) که ددغي سړي په مور حج فرض وی. نو حج بدل کونکي به د والدې په نفقې باندې د والدې د وطن یعنی پاکستانی میقات (یلملم) نه احرام تړی. (شامی)﴿۱﴾ او د والدې په اجازت سره به حج بدل کوی، او که والده دا ؤوائي، چه هلته د ابوظهبی نه زما دپاره حج وکړه، نو پاکستان راتلو ته به ضرورت نه وی. (ارشاد الساری ۲۹۱)﴿۲﴾.

(۲) د تبرع په صورت کښې توسع ده. او دا تنګی د حج بدل او وصیت په صورت کښې ده﴿۳﴾. وهو الموفق

## د حج بدل د پاره تللو والا د حرم شریف نه د حج بدل احرام ؤتړلو

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې د حج بدل دپاره ځی، لیکن د میقات نه ئې د حج بدل دپاره احرام ؤنه تړو، صرف د عمرې احرام ئې ؤتړو. آیا د حرم شریف نه د حج بدل احرام تړلو سره به حج بدل ادا شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی دل محمد محلات افغان ابوظهبی. ۱۴۱۵|۱۵|۳هـ

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله النفقة من مال الآمر الخ) ای المحجوج عنه...... ان یحج عنه من وطنه ان اتسع الثلث والا فمن حیث یبلغ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۵۹، ۲۶۰ مطلب شروط الحج عن الغیر عشرون)

﴿۲﴾ قال العلامة الملاعلی القاری: ولو اوصی ای من له وطن ان یحج عنه من غیر بلده یحج عنه کما اوصیٰ به قرب ذلک المکان الموصیٰ به من مکة او بعد.

(ارشاد الساری الی مناسک الملاعلی قاری ۲۹۱ قبیل مطلب جواز اخراج البدل من مکة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: وانما شرط غیر المنوب للحج الفرض لا النفل لجواز الانابة مع القدرة فی حج النفل لان المقصود منه الثواب.

(البحرا لرائق ۳: ۶۲ باب الحج عن الغیر)



**الجواب:** که آمر د تمتع اجازت ورکړې وی. نو د تحقیق په بنا به د آمر ذمه فارغه شی.﴿۱﴾ وهو الموفق

## که حج فرض نه وی. نو د ایصال ثواب د پاره په حرمین کښې یو سړې د حج بدل د پاره مقرر کولې شی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې د پاکستان نه د حج دپاره لاړو، دهغه والدین معذور دی. خپله دحج دپار تلې نشی، ددې وجه نه هغه سړې په حرم شریف کښې دوؤ سړو ته مثلا دوه دوه سوه روپۍ ورکړې، چه زما د مور او پلار د طرف نه حج بدل وکړئ، هغوی دا حج بدل اداکړو، آیا دا فریضه حج دهغوی د طرف نه اداشوه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالودود مدرس مدرسه شمس المدارس لنډیواکرک

**الجواب:** محترم المقام مولانا عبدالودود سلمه الرحمٰن السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته اما بعد، په صورت مسئوله کښې که د زید په والدینو حج فرض نه وی، نو په دې طریقه کښې هیڅ حرج نشته، لان ایصال الثواب لا یشترط فیه الامر وغیره بخلاف فراغ الذمة عن الواجب﴿۲﴾ او که په والدینو باندې حج فرض وی، نو دې طریقې سره دهغوی ذمه نه فارغیږی،

کما فی الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ﴿۳﴾ والظاهر ان ههنا النفقة من مال الولد وکذا الظاهر ان الوالدین ..........

---

﴿۱﴾ قال الفرغانی: اذا امر غیره بان یحج عنه ینبغی ان یفوض الامر الی المأمور فیقول حج عنی بهذا المال کیف شئت ان شئت حجة وان شئت حجة وعمرة وان شئت قرانا.

(فتاوىٰ قاضی خان علی هامش الهندیة ۱: ۳۰۷ فصل فی الحج عن الغیر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: لو اهل بحج عن ابویه او غیرهما من الاجانب حال کونه متبرعا فعین بعد ذلک جاز لانه متبرع بالثواب فله جعله لاحدهما اولهما. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۶۶ قبیل فروع وباب الهدی)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: وبشرط الامر بالحج عنه ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

لم یأمراه وهذا بخلاف ما اذا ماتا فلیراجع الی باب الحج من الغیر. وهو الموفق

## د ضعیف پلار د پاره په سعودی عرب کښې د مقیم ځوی حج بدل کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه که یو سړې بوډا او ضعیف شوې وی، او په هغه حج فرض شوې وی، لیکن خپله د ضعف او بیمارۍ په وجه حج نشی کولې، دهغه ځوې یا نوسې چه په سعودیه یا امارات کښې د مزدورۍ دپاره مقیم وی، اوخپله ئې حج کړی وی، آیا هغه د والد دپاره حج بدل کولې شی او که نه؟ او دحج نه پس دهغه دلته پاکستان ته راتلل ضروری دی او که نه؟ او یا د حج نه مخکښې پاکستان ته کور ته راتلل او د والد نه اجازت اخستل ضروری دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: انجنئر عارف الله الیکټریکل کالج آف ټیکنالوجی پیښور ۱۸\۱\۱۹۸۶

**الجواب:** که ستا په والد صاحب حج فرض وی، نو د خپل وطن نه یو رشته دار یا پردې سړې دپاره د خپل مملوکه مال نه د حج بدل داخله وکړی، البته افضل داده، چه د مسائل حج نه واقف سړې لره، چا چه یو ځل حج کړی وی، د حج دپاره ؤلیږی، (ماخوذ از مسلک المتقسط)﴿۱﴾. وهو الموفق

(بقیه حاشیه)فلا یجوز حج الغیر بغیر اذنه الا اذا حج او احج الوارث عن مورثه لوجود الامر دلالة وبقی من الشرائط النفقة من مال الآمر کلها او اکثرها وحج المأمور بنفسه وتعینه ان عینه الخ. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۵۹ قبیل مطلب شروط الحج عن الغیر)

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: اعلم ان کل من وجب علیه الحج...... وعجز عن الاداء بنفسه...... یجب علیه الاحجاج بان یحج عنه فی حال حیاته او بعد مماته ...... ویتحقق العجز بالموت والحبس والمنع ...... والعرج والهرم...... والسادس ان یحج بمال المحجوج عنه...... والثامن ان یحج عنه من وطنه...... ولا یشترط لجواز الاحجاج ان یکون الحاج المامور قد حج عن نفسه...... الا ان الافضل کما فی البدائع ان یکون قد حج عن نفسه ای للخروج عن الخلاف الذی هو مستحب بالاجماع.

(المسلک المتقسط ۲۸۷ تا ۳۰۰ باب الحج عن الغیر)



## د ښځې د سړي د طرف نه حج بدل د پاره تلل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه ښځه د سړي د طرف نه حج بدل دپاره تلې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ندیم رستم ضلع مردان

**الجواب:** د سړي د طرف نه ښځه (د محرم سره) د حج بدل دپاره تلې شی، البته د کراهت نه خالی نه ده. کما صرح به الفقهاء﴿۱﴾. وهو الموفق

## د مړي د طرف نه حج کولو سره به ذمه فارغه شی. ان شاء الله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه په یو سړي

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: ویجوز احجاج المرأة باذن زوج لها ووجود محرم معها والعبد والامة باذن المولی مع الکراهة فیه انه لا یظهر وجه الکراهة لا سیما فی احجاج المرأة عن المرأة فان الظاهر ان یکون اولیٰ وانسب ویدل علیه اطلاق الفتاویٰ السراجیة حیث قال وسواء کان عبدا او امة من غیر ذکر امرأة.

(ارشاد الساری ۳۰۱ قبیل فصل ولو اوصیٰ ان یحج عنه)

قال العلامة ابن الهمام: ویجوز احجاج الحر والعبد والامة والحرة وفی الاصل نص علی کراهة المرأة فی المبسوط فان احج امرأته جاز مع الکراهة لان حج المرأة نقص فانه لیس علیها رمل ولا سعی فی بطن الوادی ولا رفع صوت بالتلبیة ولا الحلق.

(فتح القدیر ۳: ۷۲ باب الحج عن الغیر)

وفی الهندیة: ولو احج عنه امرأة او عبدا او امة باذن السید جاز ویکره هکذا فی محیط السرخسی.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۵۷ الباب الرابع عشر فی الحج عن الغیر)

حج فرض وو، لیکن په ژوند کښې ئې ادا نه کړو، او د حج وصیت ئې هم ؤنکړو، اوس دهغه وارثان د هغه د طرف نه حج کولې شی، او د هغه ذمه به خلاصیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مفقو د العنوان. ٢٥\٨\١٩٨٤

**الجواب:** اولاد وغیره د مړی د طرف نه حج کولې شی، په دې سره به ان شاء الله دهغه ذمه فارغه شی، اګرکه هغه وصیت نه وی کړې. (شامی)﴿١﴾ وهوالموفق

## وصی خپله هم حج بدل کولې شی، او په بل چا باندې هم کولې شی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زید د مرګ په وخت کښې د خپل ځان دپاره ثلور وصیان مقرر کړل، چه په هغې کښې دوه د مړی ځامن او دوه پردی سړې وو، او د مړی په وارثانو کښې نابالغه افراد هم شته، وصیت ئې دا کړې وو، چه زما د جائیداد په دریمه حصه کښې زما دپاره حج او خیرات وغیره وکړئ، اوس د مړی دوه وراثان چه وصیان هم دی، حج کولې شی او که نه؟ او غیر وارثان چه وصیان دی، حج ادا کولې شی او که نه؟ یا ددې ثلورو نه علاوه بل پردې سړې حج بدل ادا کولې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالستار حقانی

**الجواب:** دا اوصیاء خپله هم حج بدل کولې شی، او بل سړې لره هم لیږلې شی. لکون الایصاء مطلقا ویدل علیه ما فی الهندیة ١: ٢٧٦ ولو اوصیٰ المیت ان یحج عنه ولم یزد کان للوصی ان یحج بنفسه فان کان الوصی وارث المیت او دفع المال الی وارث المیت لیحج عن المیت الخ﴿٢﴾. وهوالموفق

﴿١﴾ قال العلامة محمد امین ابن عابدین: (قوله الا اذا حج او احج الوارث) ای فیجزئه ان شاء الله تعالیٰ کما فی البدائع واللباب وهذا اذا لم یوص المورث. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٢٥٩ قبیل مطلب شروط الحج عن الغیر عشرون)

﴿٢﴾ (فتاویٰ عالمګیریه ١: ٢٥٩ الباب الخامس عشر فی الوصیة بالحج)



## د وصی د حج بدل باره کښې دوباره پوښتنه

**سوال:** جناب مفتی صاحب! ستاسو فتوی ملاؤ شوه، لیکن د نظرثانی دپاره دوباره په خدمت کښې درلیږم. لهذا تاسو په تسلی بخش وضاحت سره ؤلیکئ او بنده ته ئې راؤلیږئ، مهربانی به وی؟

المستفتی: عبدالستار حقانی

**الجواب بالوضاحة:** دا اوصیاء خپله هم حج بدل کولې شی، البته په دې کښې څه تفصیل دې، کوم چه په دې عبارت مذکوره او ردالمحتار ٢: ٣٤١ قبیل باب الهدی کښې لیکلې شوې دې، او هغه دادې، چه وصی غیر وارث د اجازت محتاجه نه دې، (او وصی وارث د اجازت محتاج دې) او وصی وارث بالغ د باقاعده اجازت ورکولو اهل دې، او نابالغ وارث د اجازت ورکولو اهل نه دې﴿١﴾. وهو الموفق

## په حج بدل سره د مړی د ذمې د خلاصیدو امید دې، که وصیت ئې نه وی کړې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړې والد د حج فریضه ادا کولو نه بغیر وفات شو، او وصیت ئې هم نه دې کړې، اوس دهغه وارث ځوی یو غیر وارث سړې لره د حج بدل دپاره مقرر کوی، آیا دا جائز دې، او مسقط الفرض دې؟ که دې نو حج افراد به کوی که تمتع؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید جلال الدین مهتمم زرګری. ٢٥\٩\١٩٧٥

**الجواب:** په کوم سړې چه حج فرض وی، نو هغه چه افراد، تمتع او قران کښې کوم یو هم ادا کړی، جائز او مشروع دې، لهذا مامور هم په اجازت سره هریو کولې شی﴿٢﴾ او هم په دې سره به دهغه غیر ذمه فارغه شی، پس په صورت

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدین: لو اوصی ان یحج عنه ولم یزد علی ذلک کان للوصی ان یحج عنه بنفسه الا ان یکون وارثا او دفعه لوارث لیحج فانه لا یجوز الا ان تجیز الورثة وهم کبار. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٢٦٩ قبیل باب الهدی فی الفروع)

﴿٢﴾ قال العلامة فخر الدین الفرغانی: اذا امر غیره بان...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه

مسئوله کښې دا سړې اصالة یا وکالة د خپل پلار ذمه فارغه کولې شي، د افراد تمتع او قران نه منع نه دې، او عدم وصیت هم سبب د منع نه دې.

کما فی الدرالمختار وبشرط الامر به ای بالحج عنه فلا یجوز حج الغیر بغیر اذنه الا اذا حج او احج الوارث عن مورثه، وفی ردالمحتار ۲:۳۲۸ هذا اذا لم یوص المورث﴿۱﴾. وهوالموفق

## که وصیت ئې کړې نه وي، نو د وارث په حج بدل سره به ان شاء الله ذمه فارغه شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې که یو سړې د حج د وصیت نه بغیر وفات شو، او وارث په خپله خوښه حج بدل ادا کړي، نو دا جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوی صالح موسی زئي ۲۹ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** په صورت مسئوله کښې به ان شاء الله د پلار ذمه فارغه شي.

کما فی ردالمحتار ۲:۳۲۷ وان لم یوص به ای بالاحجاج فتبرع عنه الوارث فحج بنفسه او احج عنه غیره جاز والمعنی جاز عن حجة الاسلام ان شاء الله تعالیٰ ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د حج بدل تفصیلي مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه ما خپله فریضه د حج ادا کړې ده، دې کال مې اراده ده چه د والدمرحوم دپاره حج بدل اداکړم، آیا داسې کیدې شي، او زما والده ژوندۍ ده، او زما نیکه هم وفات

(بقیه حاشیه) یحج عنه ینبغی ان یفوض الامر الی المأمور فیقول حج عنی بهذا المال کیف شئت ان شئت حجة وان شئت حجة وعمرة وان شئت قرانا.
(فتاویٰ قاضی خان علی هامش الهندیة ۱:۳۰۷ فصل فی الحج عن المیت)

﴿۱﴾ الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۲۵۹ قبیل مطلب شروط الحج عن الغیر عشرون)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۵۹ مطلب شروط الحج عن الغیر عشرون)



شوې دې، دهغه دپاره هم حج بدل کول غواړم، یعنی بل سړې ته به تولله خرچه ورکړم، اوحج بدل به پرې وکړم، آیا دا صحیح دی؟ اوحج بدل صرف رشته دار کولې شي اوکه غیر رشته دار هم کولې شي؟ او زما نیا بوډۍ ده، ډیره زیانه کمزورې ده، آیاپه بل سړې دهغې دپاره حج بدل کولې شم؟ بینوا توجروا

المستفتي: جلال الدین تبوک سعودی عرب

**الجواب:** السلام علیکم. ستا په والد، والده او نیکه باندې حج فرض وو او که نه؟ او د فرض کیدلو په صورت کښې هغوی وصیت کړې وو او که نه؟

(الف) بهرحال، که په هغوی حج فرض شوې نه وو، نو ته دهغوی د طرف نه حج کولې شې، او په بل چا هم کولې شې، که پخپله رشته دار مامور ئې کوې او که غیر رشته دار، او بغیر د څه قید نه کولې شې، او په بل چائ هم کولې شې. ﴿۱﴾

(ب) اوکه په هغوی حج فرض وو، اوهغوی وفات شوې دی، نود وصیت نه کولو په وجه هم پابندی نشته، اود وصیت په صورت کښې شرط دادې، چه نفقه به دهغوی خرچ کولې شي، اود یلملم نه به احرام تړلې شي، اوپه هغوی کښې چه کوم غني ژوندې وي، نو د عجز په صورت کښې ته دهغوی دپاره حج کولې شې، اوبل چا باندې ئې هم کولې شي، (بغیرد شرط د رشته دار نه) البته نفقه اومیقات د مخکښې شان واجب الرعایت دې. (ماخوذ ازشامی)﴿۲﴾وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: بخلاف ما لو اهل بحج عن ابویه او غیرهما من الاجانب حال کونه متبرعا فعین بعد ذلک جاز لانه متبرع بالثواب فله جعله لاحدهما اولهما وفی الحدیث من حج عن ابویه فقد قضی عنه حجته وکان له فضل عشر حجج وبعث من الابرار.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۶۵، ۲۶۶ باب الحج عن الغیر)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: وبشرط الامر به ای بالحج عنه فلا یجوز حج الغیر بغیر اذنه الا اذا حج او احج الوارث عن مورثه لوجود الامر دلالة وبقی من الشرائط النفقة من مال الآمر الخ.
قال العلامة ابن عابدین: الرابع الامر ای بالحج ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## والدينو ته د ايصال ثواب دپاره هر قسمه حج او هر ځائي نه كولې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره كښې چه زۀ د والدينو د طرف نه حج كول غواړم، آيا زۀ دهغوی دپاره حج قران كولې شم؟ او زۀ په سعودی كښې يم، زۀ اوس د سعودی نه دا فريضه ادا كولې شم، يا وطن ته راتلل لازمی دی؟ بينوا توجروا

المستفتی: رسول خان مشيط سعودی عرب ۱۸ محرم الحرام ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** چونكه والد يا والدې وصيت نه دې كړې. لهذا د هر ځائي نه د هغوی دپاره حج ادا كولې شې. كه قران وی او كه تمتع وی او كه افراد وی﴿۱﴾، ځكه چه دا صرف د ايصال ثواب دپاره دې﴿۲﴾. وهو الموفق

## د والدينو د پاره حج كولو كښې پلار لره مقدم كړی او كه مور؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره كښې چه ما فريضه حج

---

(بقيه حاشيه)فلا يجوز حج غيره بغير امره ان اوصیٰ به ای بالحج عنه فانه ان اوصی بان يحج عنه فتطوع عنه اجنبی او وارث لم يجز وان لم يوص به ای بالاحجاج فتبرع عنه الوارث وكذا من هم اهل التبرع فحج ای الوارث ونحوه بنفسه ای عنه او احج عنه غيره جاز والمعنی جاز عن حجة الاسلام ان شاء الله تعالیٰ كما قاله فی الكبير الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۵۹ قبيل مطلب شروط الحج عن الغير عشرون)

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: وان لم يوص بالاحجاج فتبرع عنه الوارث وكذا من هم اهل التبرع ونحوه فحج الوارث ونحوه بنفسه او احج عنه غيره جاز ذلك التبرع او الحج اوالاحجاج والمعنیٰ جاز عن حجة الاسلام ان شاء الله تعالیٰ الخ.

(ارشاد الساری ۲۸۸ باب الحج عن الغير)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: (وشرط العجز المذكور للحج الفرض) دون النفل فلا يشترط فی النفل شيئ منها الا الاسلام والعقل ......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



ادا كړې ده، اوس د والدينو ديو دپاره د نفلی حج اراده ده، ما دچا نه اوريدلې دی، چه د والد دپاره حج كولو كښې د لس حجونو ثواب ملاويږی، ليكن ما خيال كړې دې، چه د والدې حق زيات دې، اوس تاسو ؤليكی چه په والد او والده كښې دچا دپاره حج كولو كښې ثواب زيات دې، او كه زۀ هلته مكه كښې چا لره د حج بدل دپاره مقرر كړم، نو صحيح به وی او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: حاجی رحمت الله سنگاپور ۱۱|۹|۱۹۷۵

**الجواب:** محترم المقام السلام عليكم كه ستا په والدينو كښې په يو باندې هم حج فرض نه وو، نو تۀ دهغوی دپاره اصالة هم حج كولې شې، او په بل چائي هم كولې شې، البته دا عمل احسان او نيكی ده، نه تعظيم او توقير، لهذا والدې لره مقدم كول افضل دی﴿۱﴾، او كه ستا په والدينو كښې په يو يا دواړو باندې حج فرض وو، نو په هغوی كښې كه يو وصيت كړې وو، نو هغه لره مقدم كړه، او كه وصيت يو هم نه وو كړې، او په دواړو حج فرض وو، نو والدې لره مقدم كول افضل دی، او د والدينو د طرف نه نفلی حج كولو كښې لس چنده ثواب زيات دې. (شامی)﴿۲﴾ وهو الموفق

---

(بقيه حاشيه)والتميز...... لانه يتسامح فی النفل ما لا يتسامح فی الفرض الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۶۱ قبيل مطلب فی حج الصرورة)

﴿۱﴾وفی الهندية: اذا تعذر جمع مراعاة حق الوالدين بان يتأذی احدهما بمراعاة الاخر يرجح حق الاب فيما يرجع الی التعظيم والاحترام وحق الام فيما يرجع الی الخدمة والانعام وعن علاء الائمة الحمامی قال مشائخنا رحمهم الله تعالیٰ الاب يقدم علی الام فی الاحترام والام فی الخدمة حتی لو دخلا عليه فی البيت يقوم للاب ولو سألا منه ماء ولم يأخذ من يده احدهما فيبدأ بالام كذا فی القنية.

(فتاویٰ عالمگيريه ۱: ۳۶۵ كتاب الكراهية الباب السادس والعشرون)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفی: لو اهل بحج عن ابويه......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## والدین د صحت مند سړي او نابالغه ماشومانو د طرف نه حج یا عمره کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دي مسئلې باره کښې چه (۱) زما پلار ضعیف العمر دي، آیا زهٔ د خپل حج په ځائي دهغه دپاره حج کولې شم؟

(۲) په والدینو کښې اول حق دچا دې د والد که د والدې؟

(۳) دیو مړي د طرف نه حج کولې شي؟

(۴) آیا د صحت مند سړي د طرف نه عمره کولې شي؟

(۵) آیا د ښځې د طرف نه خاوند عمره کولې شي؟

(۶) د نابالغه ماشومانو د طرف نه د عمرې کولو څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ازرم تبوک سعودی عرب. ۱۴۰۱/۷/۱۷هـ

**الجواب:** (۱، ۲) بهتره داده چه اول د خپل طرف نه حج ادا کړي، او ثانیا د

(بقیه حاشیه) او غیرهما من الاجانب حال کونه متبرعا فعین بعد ذلک جاز لانه متبرع بالثواب فله جعله لاحدهما اولهما وفی الحدیث من حج عن ابویه فقد قضی عنه حجته وکان له فضل عشر حجج وبعث من الابرار، قال ابن عابدین: وکذا لو احرم عن احدهما مبهما یصح تعیینه بعد ذلک بالاولیٰ کما فی الفتح قال ومبناه علی ان نیته لهما تلغو لعدم الامر فهو متبرع فتقع الاعمال عنه البتة وانما یجعل لهما الثواب وترتبه بعد الاداء فتلغو نیته قبله فیصح جعله بعد ذلک لاحدهما اولهما ولا اشکال فی ذلک اذا کان متنفلا عنهما فان کان علی احدهما حج الفرض واوصی به لا یسقط عنه بتبرع الوارث عنه بمال نفسه وان لم یوص به فتبرع الوارث عنه بالاحجاج او الحج بنفسه قال ابوحنیفة یجزیه ان شاء الله تعالیٰ لقوله ﷺ للخثعمیة ارأیت لو کان علی ابیک دین الحدیث الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۲۶۵ باب الحج عن الغیر)



والدینو د طرف نه، (شامی(۱) مشکوة(۲)) او چونکه دا عمل د باب د ترحم نه دي، نه د باب اکرام نه، لهذا په دې کښې د قواعدو په اعتبار سره د والدې تقدیم مناسب دي(۳).

(۳) د مرحومینو د طرف نه عمره او حج ادا کولې شي، او دا په ایصال ثواب کښې داخل دی. (۴)

(۴، ۵) عمره او نفلی حج د صحت مند او ښځې د طرف نه ادا کولې شی. (۵)

(۶) نه ممنوع دی اونه مندوب، دنابالغه د نفل اداکولو پشان دی، وهو الموفق

(۱) قال العلامة الشامی: والافضل ان یکون قد حج عن نفسه حجة الاسلام خروجا عن الخلاف ثم قال والافضل احجاج الحر العالم بالمناسک الذی حج عن نفسه وذکر فی البدائع کراهة احجاج الصرورة لانه تارک فرض الحج الخ. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۲۶۲ قبیل مطلب العمل علی القیاس دون الاستحسان)

(۲) عن ابن عباس قال ان رسول الله ﷺ سمع رجلا یقول لبیک عن شبرمة قال من شبرمة قال اخ لی او قریب لی قال احججت عن نفسک قال لا قال حج عن نفسک ثم حج عن شبرمة رواه الشافعی وابوداؤد وابن ماجة.

(مشکوٰة المصابیح ۱: ۲۲۲ کتاب المناسک الفصل الثانی)

(۳) قال الفقیه محمد عبد الحئی اللکهنوی: اذا تعذر مراعاة جمع حقوق الوالدین رجح جانب الاب فیما یرجع الی التعظیم والاحترام وحق الام فیما یرجع الی الخدمة والانعام حتی لو دخلا علیه فی البیت یقوم للاب ولوسئل ما لایبتدئ بالام واذا خالف امره امرها یطیعه فیما یرجع الی التعظیم ویطیع امرها فیما یتعلق بالانعام کذا فی مطالب المؤمنین عن القنیة.

(نفع المفتی والسائل ۲۲۲ ما یتعلق من خفض الجناح للوالدین)

(۴) قال العلامة الحصکفی: لو اهل بحج عن ابویه او غیرهما من الاجانب حال کونه متبرعا فعین بعد ذلک جاز لانه متبرع بالثواب فله جعله لاحدهما اولهما.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۶۵ باب الحج عن الغیر)

(۵) قال العلامة الحصکفی: وشرط العجز المذکور...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د رواجي شرکت په صورت کښې د شرکاؤ د اجازت نه بغیر د خپلې ګټې نه حج ادا کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د زید والدین ژوندي دي، او رونړه ئې هم ژوندي دي، او ټول مال شریک دې، زید مزدوري کوي، او ګټي، په سعودي عرب کښې مقیم دې، آیا د والدینو او رونړو د اجازت نه بغیر زید نفلي حج ادا کولې شي؟ او آیا د خپل نیکه پلار او مور وغیره دپاره حج بدل دهغوي د اجازت نه بغیر کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: عزیز الرحمٰن ریاض سعودي عرب. ۱۴۰۱/۷/۱۴هـ

**الجواب:** د زید والدینو سره او رونړو سره شراکت رواجي شراکت دې، شرعي شراکت نه دې، دا شرکت د فقهاؤ په ذکر کړې شوې قسمونو کښې داخل نه دې، پس بهرحال زید په زکواة، خیرات او حج کولو کښې خود مختار دې(۱) البته د بل سړي (والد وغیره) دپاره حج بدل کول بغیر دهغه د اجازت نه بې

---

(بقیه حاشیه) للحج الفرض لا النفل لا تساع بابه، قال ابن عابدین: ای لانه یتسامح فی النفل ما لایتسامح فی الفرض قال فی الفتح اما الحج النفل فلا یشترط فیه العجز لانه لم یجب علیه واحده من المشقتین ای مشقة البدن ومشقة المال فاذا کان له ترکهما کان له ان یتحمل احداهما تقربا الی ربه عزوجل فله الاستنابة فیه صحیحا.
(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۲۶۱ قبیل مطلب فی حج الصرورة)

(۱) زمونږ په وطن کښې چه کوم شرکت اموال او کمائي وغیره رائج ده چه دکور په افرادو کښې بعضې ګټه کوي او بعضې د کور کار او خدمت کوي او رونړو سره یوځائې اوسیږي او پلار یا مشر رور سرپرستي کوي. اوس په دې صورت کښې چه کله اختلاف پیداشي نو عام طور باندې داسې کیږي چه ټوله سرمایه خپل مینځ کښې تقسیموي او هر یو رور خپله خپله حصه اخلي. لیکن که یو رور کوم چه محنت مزدوري کوي یا بهرملک کښې ملازمت کوي او ګټه کوي او هغه دعوٰی اوکړي چه دا ګټه زما ده. لهٰذا دا مال ټول په ټوله زما دې نو په دې صورت کښې به دده د ټولو رونړو په حق کښې فیصله کولې شي لیکن دا په هغه صورت کښې چه پلار او ځامنو یا د رونړو کاروبار یو نه وي.......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



فائده دې،(۱) او هغه لره د نفلي حج ایصال ثواب مشروع دې(۲).

وهو الموفق

## په حج بدل کښې د خپل نذر عمره ادا کول:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زید د عمرې

---

(بقیه حاشیه)...اود دواړو مخکښې مال نه وي. او دا ځوئې د پلار په عیالدارئ کښې نه وي.

کما صرح به فی فتاویٰ الخیریة ۲: ۹۲ (سئل) فی ابن کبیر ذی زوجة وعیال له کسب مستقل حصل بسببه اموالا ومات هل هی لوالده خاصة ام تقسم بین ورثته (اجاب) هی للابن تقسم بین ورثته علی فرائض الله تعالیٰ حیث کان له کسب مستقل بنفسه واما قول علمائنا اب وابن یکتسبان فی صنعة واحدة ولم یکن لهما شیئ ثم اجتمع لهما مال یکون کله للاب اذا کان الابن فی عیاله فهو مشروط کما یعلم من عبارتهم بشروط منها اتحاد الصنعة وعدم مال سابق لهما وکون الابن فی عیال ابیه فاذا عدم واحد منها لا یکون کسب الابن للاب وانظر الی ما عللوا به المسئلة من قولهم لان الابن اذا کان فی عیال الاب یکون معینا له فیما یصنع فمدار الحکم علی ثبوت کونه معینا له فیه. (فتاویٰ خیریه علی هامش تنقیح الحامدیة ۲: ۹۲)...... (ازمرتب)

(۱) قال العلامة الحصکفی: وبشرط الامر به ای بالحج عنه فلا یجوز حج الغیر بغیر اذنه الا اذا حج او احج الوارث عن مورثه لوجود الامر دلالة.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۵۹ قبیل شروط الحج عن الغیر عشرون)

(۲) قال العلامة ابن عابدین: فلا یشترط فی النفل شیئ منها (ای من الشروط) الا الاسلام والعقل والتمییز وکذا عدم الاستئجار لا تساع باب النفل انه یتسامح فی النفل ما لا یتسامح فی الفرض قال فی الفتح اما الحج النفل فلا یشترط فیه العجز لانه لم یجب علیه واحدة من المشقتین ای مشقة البدن ومشقة المال فاذا کان له ترکهما کان له ان یتحمل احداهما تقربا الی ربه عزوجل فله الاستنابة فیه صحیحا.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۶۱ قبیل مطلب فی حج الصرورة)

نذر منلې وو، په دې دوران کښې زيد دچا دپاره حج بدل له لاړو، د حج نه فارغيدو نه پس زيد په خپلې خرچې عمره منذوره ادا کړه، د زيد ذمه فارغه شوې ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا عبدالباقي ګندف ضلع صوابی.... ۱۴۱۲/۱۴۰۱هـ

**الجواب:** بظاهر هغه اداء کما التزم کړې ده، او ذمه فارغه شوې ده، ځکه چه هغه اولا حج بدل کړې دې، او د آمر نه ئې څه مخالفت نه دې کړې، او ثانيا ئې خپل نذر ادا کړې دې.﴿۱﴾ وهو الموفق

## مامور خپل حج نه دې کړې هغه حج بدل کولې شي؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړې خپله حج نه دې کړې، ليکن د بل سړي د حج دپاره لاړو. آيا غير حاجی سړې حج بدل کولې شی؟ بينوا توجروا

المستفتي: حافظ انداز ګل سکنه جمرود

**الجواب:** دا حج د آمر د طرف نه ادا کيږي. اګر که مامور حج نه وی کړې.

**فی الهندية، لو احج رجلا لم يحج عن نفسه حجة الاسلام يجوز عندنا و سقط الحج عن الآمر كذا فی المحيط (هندية ۱:۲۷۴)﴿۲﴾. وهوالموفق**

## کوم سړې چه حج نه دې کړې، په هغه حج بدل کول خلاف افضل دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه زيد د خپل

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجيم: **بخلاف ما اذا امره بالعمرة فاعتمر ثم حج عن نفسه لم يكن مخالفا والنفقة فی مدة اقامته للحج فی ماله لانه اقام فی منفعة نفسه بخلاف ما اذا حج اولا ثم اعتمر للآمر فانه يكون مخالفا لانه جعل المسافة للحج و انه لم يؤمر به.**

**(البحر الرائق ۳:۶۳ باب الحج عن الغير)**

﴿۲﴾ **(فتاویٰ عالمگيريه ۱:۲۵۷ باب الحج عن الغير)**



متوفی والد د طرف نه حج بدل کول غواړي، او خپله په هغه حج فرض دي، او هغه اوسه پورې ادا کړې نه دې، دې کال هغه ددې مقدسې فريضې دپاره د والد د طرف نه منتخب شوې دې، اوس هغه دا حج د چا د طرف نه ادا کړي؟ بينوا توجروا

المستفتي: فلائيټ لفټيننټ ولايت حسين پی اې ايف پيښور

**الجواب:** کوم سړې چه د خپل طرف نه حج نه وی کړې، هغه دپاره د حج بدل دپاره منتخب کول جائز دی، البته افضل نه دي.

**کما فی شرح التنوير جاز حج الصرورة (باب الحج عن الغير) وتمام الكلام فی ردالمحتار ۳:۲۰۳ فليراجع﴿۱﴾. وهوالموفق**

## په حج بدل کښې به د نوافلو او مونځونو ثواب چاته ملاويږي؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړې د بل دپاره حج بدل کوی، اوس په حرم شريف کښې د مونځ ثواب يو په لاکهه دې، دغه شان دا سړې نوافل وغيره کوی، نو دا ثواب به چاته ملاويږي، امر ته يا مامور ته؟ بينوا توجروا

المستفتي: فضل منان قطر

**الجواب:** په کومو امورو کښې چه دا مامور نائب نه وی، نو دهغې ثواب به مامور ته ملاويږي، نه آمر ته﴿۲﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفی: **فجاز حج الصرورة بمهملة من لم يحج، وقال ابن عابدين: والصرورة يراد به الذی لم يحج عن نفسه ای حجة الاسلام (الی ان قال) وفی الفتح والافضل ان يكون قد حج عن نفسه حجة الاسلام خروجا عن الخلاف، والافضل احجاج الحر العالم بالمناسك الذی حج عن نفسه. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۲۶۱،۲۶۲ مطلب فی حج الصرورة)**

﴿۲﴾ قال الشيخ المفتی الاعظم محمدشفيع ديوبندی: حج فرض (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

.......................

(بقیه حاشیه) چه د چا د طرف نه کړې شوې دې، نو صحیح او راجح د فقهاؤ په نزد دادی، چه دا حج او عمره په د آمر یعنی د حج دپاره حکم کونکې دپاره وی، او حج او عمره کونکی ته به دهغه امداد کولو په وجه ثواب ملاویږی، او که د حج نه پس زیاتی طواف یا عمرې کوی، نو دا به خپله د هغه وی، په عمره یا حج نفلی کښې هم، هرکله چه د امر د خرچې نه شوې وی، هم دا حکم دې، چه د آمر به وی، مامور ته به دهغه د عمل ثواب ملاویږی.

(کذا فی کافی الحاکم، ارشاد الساری)

(جواهر الفقه ۱: ۵۰۶ حج بدل او اسکې احکام)

.............

.............



# باب العمرة

## په رمضان کښې د عمرې فضیلت مروی دې:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه نبی کریم ﷺ په رمضان المبارک کښې عمره ادا کړې ده او که نه؟ که ادا کړې ئې نه ده، نو بیا په رمضان کښې د عمرې فضیلت مروی دې او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نصیر احمد جده..... ۲۹\۳\۱۹۷۹

**الجواب:** نبی کریم ﷺ د څلورو عمرو دپاره احرام تړلې دې، ﴿۱﴾ او په رمضان کښې ئې عمره نه ده ادا کړې، البته په رمضان کښې د عمرې کولو فضیلت د احادیثونه مروی دې، فلیراجع الی ردالمحتار ۲: ۴۷۳) ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ وفی المنهاج: قوله اعتمر اربع عمر ای احرم بالاربع و کان احرامها فی ذی القعدة و اعمالها ایضا کانت فی ذی القعدة الا اللتی کانت مع حجة الوداع والا عمرة الحدیبیة فانها رفضت قبل التمام. (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۴: ۹۰ باب ماجاء کم اعتمر النبی ﷺ)

﴿۲﴾ عن ابی بکر بن عبد الرحمن...... فقالت یارسول الله انی امرأة قد کبرت و سقمت فهل من عمل یجزئ عنی من حجتی قال عمرة فی رمضان تجزئ حجة.

(سنن ابی داؤد ۱: ۲۷۹ کتاب الحج باب العمرة)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: قوله وندبت فی رمضان...... ای انها فیه افضل منها فی غیره واستدل له فی الفتح بما عن ابن عباس عمرة فی رمضان تعدل حجة وفی طریق لمسلم تقتضی حجة او حجة معی قال و کان السلف رحمنا الله تعالٰی بهم یسمونها الحج الاصغر وقد اعتمر النبی ﷺ اربع عمرات کلهن بعد الهجرة فی ذی القعدة علی ما هو الحق و تمامه فیه. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۱۶۴ مطلب احکام العمرة)

## د متمتع حاجی ډیرې عمرې کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې د حج دپاره روان دې، چه کله یو عمره ادا کړی نو بیائې د حج هم اراده ده، آیا دې ددې عمرې نه حج پورې نورې عمرې ادا کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی دل محمد محلات افغان ابوظهبی... ۱۴۰۱/۵/۳هـ

**الجواب:** راجح داده چه دا سړې څومره عمرې ادا کول غواړی ادا کولې شی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د عمرې د پاره ممنوع ورځې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه ما اوریدلې دی، چه په رمضان المبارک کښې عمره کول پکار دی. او په شوال او ذی قعده کښې عمره کول ممنوع دی. ځکه په اشهر حج کښې د حج احرام تړل او حج کول پکار دی. صحیح مسئله څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: لیفتنیټ محمد دین جده سعودیه. ۱۳۰ شوال ۱۴۰۳هـ

**الجواب:** د ایام تشریق، عرفه او اختر د ورځې نه علاوه په ټول کال کښې عمره کول جائز ده. ﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: فالحاصل ان من اراد الاتیان بالعمرة علی وجه افضل فیه فبأن یقرن معه عمرة فتح فلا یکره الاکثار منها خلافا لمالک بل یستحب علی ماعلیه الجمهور وقد قیل سبع اسابیع من الاطوفة کعمرة شرح اللباب. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۶۴ قبیل مطلب فی المواقیت)

وقال الملا علی قاری: وهذا المتمتع آفاقی غیر ممنوع من العمرة فجاز له تکرارها لانها عبادة مستقلة ایضا کالطواف.

(ارشاد الساری ۱۹۳ مطلب مهم فی ان المتمتع الآفاقی غیر ممنوع من العمرة الخ)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ووقت العمرة جمیع السنة الا خمسة ایام تکره فیها العمرة لغیر القارن وهی یوم عرفة ویوم النحر وایام التشریق. (فتاوی عالمگیریه ۱:۲۳۷ الباب السادس فی العمرة)



## د تندرست سړی دپاره عمره بدل کول جائز دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو تندرست سړې دې، خپله عمره نه کوی، بلکه په بل سړې عمره کوی، آیا دا دویم سړې دهغه د طرف نه عمره ادا کولې شی او هغه دویم سړې ته به ددې ثواب ملاویږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله..... ۲۹/۷/۱۹۷۹

**الجواب:** د حج بدل پشان عمره بدل هم صحیح ده.

لان هذا الباب بناء علی ایصال الثواب﴿۱﴾ وهو صحیح فی العمرة کما فی ردالمحتار ۲:۵۹۵ طبع مصطفی الحلبی قوله لعبادة ما ای سواء کانت صلاة او صوما او صدقة او قراءة او ذکرا او طوافا او حجا او عمرة او غیر ذلک﴿۲﴾ ویقتضیه ما فی الخانیة علی هامش الهندیة ۱:۳۱۰ ولو امر غیره بالعمرة فاعتمر ثم حج بمال نفسه لایکون مخالفا فافهم﴿۳﴾. وهو الموفق

## که فقیرسړې عمره ادا کولو نه پس واپس راشی. نود حج څه حکم دې؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه په یو سړې

---

﴿۱﴾ ویدل علیها ما فی ردالمحتار: (قوله وشرط العجز) قد علمت مما قدمناه عن اللباب ان الشروط کلها شروط للحج الفرض دون النفل فلا یشترط فی النفل شیئ منها الا الاسلام والعقل والتمیز...... لاتساع بابه ای انه یتسامح فی النفل مالایتسامح فی الفرض قال فی الفتح اماالحج النفل فلا یشترط فیه العجز الخ.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۶۱ قبیل مطلب فی حج الصرورة)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۵۶ مطلب فی اهداء ثواب الاعمال للغیر)

﴿۳﴾ (فتاوی قاضی خان علی هامش الهندیة ۱:۳۱۰ قبیل فصل فی محظورات الحرم)

حج فرض نه دې، او د عمرې دپاره بيت الله شريف ته لاړ شي عمره ادا کړي، او واپس راشي، آيا په دې سړې به اوس حج فرض وي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: عبدالودود پائمال شریف هزاره.... ۱۱۹ شوال ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د قواعدو په اعتبار سره په دې سړي باندې حج هغه وخت کښې فرض دې، کله چه دۀ عمره په هغې ؤرځو کښې ادا کړې وي، کله چه دا ميقاتي خلق (د مکې مکرمې وغيره خلق) د حج دپاره تياري کوي. يدل عليه ما فی شرح التنوير: والعبرة لوجوبها ای العدة المانعة من سفرها وقت خروج اهل بلدها وکذا سائر الشرائط﴿۱﴾ (فافهم ولم اجده صريحا). وهو الموفق

## په عمرې ادا کولو سره د حج د فرض کيدلو شبه

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړې چه صاحب استطاعت نه وي، هغه سعودی عرب ته لاړ شي، او عمره ادا کړي، که د عمرې په غرض سره تلې وي، يا د عمرې په غرض نه وي تلې، آيا په هغه د عمرې په وجه حج فرض شوې دې او که نه؟ برائ مهرباني د قرآن مجيد او سنت او فقه حنفي په رنړا کښې مو د صحيح مسئلې نه خبر کړئ؟ بينوا توجروا

المستفتی: (مفتی) مختارالله جهانګيروی کان الله له
(مرتب فتاوٰی حقانيه) ۱۷/۸/۱۹۸۹

**الجواب:** کوم سړې چه شوال داخليدو نه پس د عمرې دپاره لاړ شي، نو په هغه حج فرض شو، او هغه وخت کښې هم حج فرض دې، کوم چه د وجوب حج دپاره شرط دې، يا د استطاعت او نورو شرطونو وخت دې، يا د قافلو د روانيدو وخت دې، (د کومو لرې وطنونو نه چه د شوال نه مخکښې قافلې روانيږي) د د اشهر حج د داخليدو وخت دې. فليراجع الى شرح اللباب﴿۲﴾

﴿۱﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۱۵۹ قبيل مطلب فی فروض الحج وواجباته)

﴿۲﴾ قال الملا على قاری: ومن شرائط الوجوب الوقت وهو اشهر الحج او وقت خروج اهل بلده ان کانوا يخرجون قبلها فلا يجب الا على القادر فيها او فی وقت خروجهم فان ملکه المال قبل الوقت ای قبل الاشهر او قبل ان يتأهب اهل... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



وغيره﴿۱﴾. وهو الموفق

## په عمره کونکې باندې د حج دعدم فرضيت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړې سعودی عرب ته تلې و وهغه په شوال کښې څو عمرې هم وکړې، پنځلسم شوال باندې د کاغذونو په وجه حکومت سعوديه هغه ګرفتار کړو او واپس ئې وطن ته راؤليږو او د حج د سعادت نه محرومه شو، آيا اوس په دې سړې باندې حج باقي دې، يعني په دې سړي باندې فرضيت راغلې دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: سلطان محمود غفرله. ۲۵ ذی قعده ۱۳۹۷ ھ

(بقيه حاشيه) بلده فله صرفه حيث شاء ولا حج عليه ای وجوبا لانه لا يلزمه التأهب فی الحال...... واقتصر فی الينا بيع على الاول وما ذکرناه اولىٰ لان هذا ای ماذکر فی الينا بيع يقتضی انه لو ملک فی اوائل الاشهر وهم يخرجون فی اواخرها جازله اخراجها ولا يجب عليه الحج الخ. (ارشاد الساری ۳۳ مبحث فی تحقيق الراحلة وکونها على الآفاقی وغيره)

﴿۱﴾ وفی الهندية: ومن الشرائط لوجوب الحج من الزاد والراحلة وغيرذلک يعتبر وجودها وقت خروج اهل بلده الى مکة. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۲۱۹ کتاب المناسک)

وقال العلامة علاء الدين السمرقندی: ثم هذه الشرائط التی ذکرنا انما تعتبر عند خروج اهل بلدة الى الحج لان ذلک وقت الوجوب فی حقه حتى انه اذا کان عنده دراهم قبل خروج اهل بلده واشترى بها المسکن والخادم واثاث البيت ونحو ذلک فعند خروج اهل بلده لا يجب عليه ان يبيع ذلک ولا يجب الحج عليه فاما اذا کان له دراهم وقت الخروج مقدار الزاد والراحلة ولم يکن له مسکن ولا خادم ولا زوجة فاراد ان يصرفها الى هذه الاشياء فانه يأثم ويجب عليه الحج ويلزمه الخروج معهم.

(تحفة الفقهاء ۱: ۵۹۲ کتاب الحج)

**الجواب:** چونکه نه دې سړي احرام تړلي دي، او نه د اهل جدې د روانیدو وخت پورې وو، لهذا په دې سړي حج فرض نه دې.

کما فی الهندیة ۱:۲۳۳ ثم ما ذکرمن الشرائط لوجوب الحج من الزاد والراحلة وغیر ذلک یعتبر وجودها وقت خروج اهل بلده الی مکة حتی الخ﴿۱﴾. وهو الموفق

## آیا د حج عن الغیر په صورت کښې حج تمتع کولې شی؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه بعضې علماء وائي، چه په حج بدل کښې د عمرې نیت صحیح نه دې، صرف د حج نیت کول پکار دي، او صرف د حج نیت کولو په صورت کښې طوالت د احرام هم مشکل دې، لهذا که په حج بدل کښې د عمرې نیت صحیح وی، نو تحریر ؤفرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوی شیر علی جمال ګړهی مردان. ۲۱ شعبان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** داحکم هله دې، چه کله دا حاجی په حج بدل افراد باندې مامور وی، اوزمونږ په علاقو کښې چونکه افراد تمتع اوقران درې واړه ته حج وئیلې شی، اود آمر د طرف نه هم د درېو واړو اجازت وی، لهذا دا مامورتمتع کولې شی﴿۲﴾ خصوصا کله چه په افراد کښې داحرج مذکورهم دې. وهو الموفق

## د عمر نه پس باقاعده حلق یا قصر واجب دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړي عمره

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۱۹ بحث ومنها عدم قیام العدة فی حق المرأة)

﴿۲﴾ قال العلامة فخر الدین الاوزجندی الفرغانی: اذا امر غیره بان یحج عنه ینبغی ان یفوض الامر الی المأمور فیقول حج عنی بهذا المال کیف شئت ان شئت حجة وان شئت حجة وعمرة وان شئت قراناً.

(فتاویٰ قاضی خان علی هامش الهندیة ۱:۳۰۷ فصل فی الحج عن الغیر)



وکړه، نو چه کله عمره ختمه کړي نو دغه دپاره سر خرول ضروري دي؟ که سر ؤنه خرائي، نو ګناه ګار به وی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: نامعلوم......۱۲۲ جولائی ۱۹۹ء

**الجواب:** په عمره کښې باقاعده حلق یا قصر واجب دې، دې لره پریخودل یا د حرم نه بهر ادا کول، د دم دپاره باعث دې.

**قال فی الخانیة واجبها شیئآن السعی بین الصفا والمروة والحلق (هامش هندیة ۱:۳۰۱) ﴿۱﴾ وفی الهندیة (۱:۲۴۷) وتجب شاة بتاخیر المناسک عن مکانه کما اذا خرج من الحرم وحلق رأسه سواء کان الحلق للحج اوالعمرة﴿۲﴾. وهو الموفق**

﴿۱﴾ (فتاویٰ قاضی خان علی هامش الهندیة ۱:۳۰۱ فصل فی العمرة)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۴۷ قبیل الباب التاسع فی الصید)

..........

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

**فتاوی فریدیه څلورم جلد**

# باب الجنايات



..........



بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

........قال الله تعالى:........

اَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْتُلُوا الصَّيْدَ وَاَنْتُمْ
حُرُمٌ ؕ وَمَنْ قَتَلَهٗ مِنْكُمْ مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآءٌ مِّثْلُ
مَا قَتَلَ مِنَ النَّعَمِ يَحْكُمُ بِهٖ ذَوَا عَدْلٍ
مِّنْكُمْ هَدْيًاۢ بٰلِغَ الْكَعْبَةِ اَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ
مَسٰكِيْنَ اَوْ عَدْلُ ذٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوْقَ
وَبَالَ اَمْرِهٖ ؕ

......[المائده: ٥٩]..........

..........

# باب الــجنايات

## دم جنايت په حرم کښې ادا کول ضروري دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه په ايام حج کښې چه کوم دم په عرفات، منی، مزدلفه، مکه معظمه يا حدود حرم کښې واجب شی، دهغې ادا کول صرف په حرم کښې کيدې شی، يا پاکستان کښې هم اداکيدې شی؟ په دې مسئله کښې زمونږ اختلاف دې، لهذا د مسئلې صحيح صورت واضحه کړئ؟ بينوا توجروا

المستفتی : مهمان از دفتر اهتمام دارالعلوم حقانيه. ۲۷محرم ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** ټولو فقهاء کرامو ليکلې دی، چه ددې دم په حرم کښې ادا کول ضروری دې، که اصالة وی او که وکالة وی، پس پاکستان ته راتلونکې سړې دپاره چالره وکيل جوړول پکار دی چه هغه دم ادا کړی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## د ميقات نه بهر ترې تلبيه هيره شوه او ميقات کښې دننه ئې تلبيه شروع کړه نودم واجب دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړې د

﴿۱﴾ قال الامام ابی بکر الحداد اليمنی: الدماء فی المناسک علی ثلاثة اوجه فی وجه يجوز تقديمه علی يوم النحر بالاجماع بعد ان حصل الذبح فی الحرم وهو دم الکفارات والنذور وهدی التطوع...... ولا يجوز ذبح الهدايا الا فی الحرم قال الله تعالیٰ ثم محلها الی البيت العتيق...... وان کان واجبا فعليه ان يقيم غيره مقامه لان الوجوب باق فی ذمته.
(الجوهرة النيرة علی القدوری ۱: ۲۲۴ باب الهدی)



ميقات نه د حج يا د عمرې نيت وکړی، او تلبيه ترې هيره شی، نيغ ګاډی کښې سور شی، او ميقات ته داخليدو نه پس يعنی د مکې معظمې په لار کښې تلبيه شروع کړی، په دې جنايت سره څه دم وغيره لازم دې او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی : حاجی جمال خان وزيرستان. ۱۴۰۱/۷/۱۳ھ

**الجواب:** د قاعدې مطابق په دې سړې دم لازم او واجب دې، ځکه چه صرف په نيت سره بغير د تلبيې نه احرام کښې داخليدل غير ظاهرالروايت دې، کمافی البدائع﴿۱﴾ پس په دې سړی ضروری ده، چه د چا په ذريعه په حرم کښې ذبح وکړی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: هذا الذی ذکرنا فی ان الاحرام لا يثبت بمجرد النية مالم يقترن بها قول او فعل هو من خصائص الاحرام او دلائله ظاهر مذهب اصحابنا، وروی عن ابی يوسف انه يصير محرما بمجرد النية وبه اخذالشافعی وهذا يناقض قوله ان الاحرام رکن لانه جعل نية الاحرام احراما والنية ليست برکن بل هی شرط لانها عزم علی الفعل والعزم علی فعل ليس ذلک الفعل بل هو عقد علی ادائه...... ثم جعل الاحرام عبارة عن مجرد النية مخالف للغة فان الاحرام فی اللغة هو الاهلال يقال احرم ای اهل بالحج...... فدل قوله قولی ما يقول الناس فی حجهم علی لزوم التلبية لان الناس يقولونها وفيه اشارة الی ان اجماع المسلمين حجة يجب اتباعها حيث امرها باتباعهم بقوله قولی ما يقول الناس فی حجهم، وروينا عن عائشة رضی الله عنها انها قالت لا يحرم الا من اهل ولبی ولم يروعن غيرها خلافه فيکون اجماعا ولان مجرد النية لا عبرة به فی احکام الشرع عرفنا ذلک بالنص والمعقول.
(بدائع الصنائع ۲: ۳۶۹ کتاب الحج بيان مايصير به محرما)

وفی الهندية: ولا يصير شارعا بمجرد النية مالم يأت بالتلبية او ما يقوم مقامها من الذکر او سوق الهدی او تقليد البدنة. (فتاویٰ عالمگيريه ۱: ۲۲۲ الباب الثالث فی الاحرام)

﴿۲﴾ قال العلامة المودود الموصلی: ولا يجوز للآفاقی ان يتجاوزها الا محرما اذا اراد دخول مکة فان جاوزها الآفاقی بغير احرام فعليه شاة لانه منهی عنه لما فی الحديث وقال عليه السلام: لا يتجاوز احد الميقات الا محرما.
(الاختيار لتعليل المختار ۱: ۱۸۳ کتاب الحج)

## په حالت د احرام کښې چشمې لګولو سره دم یا صدقه لازمیږي نه

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې که د یو سړي نظر کمزوري وي، او هغه په حالت احرام کښې چشمې ؤلګوي، چه هغې سره د مخ څه حصه پټیږي، نو په دهٔ دم یا صدقه وغیره راځي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: شاهد نواز خان افریدی

**الجواب:** د عذر په وجه چشمې لګول او حج کول جائز دی، او په دې څه نه لازمیږي، ددې مقصد مخ پټول نه وي. (ارشاد الساری ۲۰۶) ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په حالت د احرام کښې زخمي کیدل موجب دم نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د حج دوران کښې په عرفات کښې د نلکې نه مې د اوبو اخستلو په انتظار کښې قطار کښې ولاړ ووم، چه کله زما نمبر راغلو، نو یو حاجی صاحب څه روستو دیکه کړم، په دې دیکه کښې زما لاس زخمي شو، او وینه ترې روانه شوه، چونکه په دې صورت کښې زهٔ په احرام کښې ووم، ددې وجه نه زما په حج کښې څه نقصان راغلې دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: الحاج ولی محمد نصرت زئي شبقدر فورټ چارسده ۲۹/۹/۱۹۸۲

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: وان کان مما لا یقصد به ذلک ای التغطی کاء جانة ای مرکن او عدل ای احد شقی حمل الدابة او جوالق ای خیش اوخیشة او مکتل ای ما یکتال فیه مما یصنع من خوص او طاسة وهی اناء یشرب منه والمعروف انها ظرف خاص من نحاس او صفر او طست او حجر او مدر او صفر او حدید او زجاج او خشب ونحوها ای من فضة وذهب وورق مما یغطی کل رأسه او بعضه فلا بأس به لکن ترکه افضل للمخالفة ظاهر السنة.

(ارشاد الساری ۲۰۶ فصل فی تغطیة الرأس والوجه)



**الجواب:** د محرم زخمي کیدل یا د هغه د بدن نه وینه بهیدل جنایت نه دې، ﴿۱﴾ البته کښې وینښته کټ شوې وی، نو په پاکستان کښې دې چاته مناسب صدقه (دوه درې روپۍ) ورکړی. ﴿۲﴾ وهو الموفق

## د محرم د حلالې په وخت کښې ځان زخمي کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه محرم ځاروې حلال کړو، د حلالې دوران کښې هغه په چاړې سره زخمي شو، او وینه ترې جاری شوه، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: رسول خان مشیط سعودی عرب ۸ محرم ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** زخمي کیدل جنایت نه دې، البته که وینښته کټ شوې وی، نو صدقه به ورکول وی. ﴿۳﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: (والجنایات) وهو ما یکون حرمته بسبب الاحرام اوالحرم وحاصل الاول انه الطیب ولبس المخیط وتغطیة الرأس اوالوجه وازالة الشعر من البدن وقص الاظفار والجماع صورة ومعنی او معنی فقط وترک واجب من واجبات الحج والتعریض للصید وحاصل الثانی التعرض لصید الحرم وشجره.

(البحر الرائق ۳:۲ باب الجنایات)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: وان نتف من رأسه او من انفه اولحیته شعرات ففی کل شعرة کف من الطعام کذا فی قاضی خان، واذا حک المحرم رأسه او لحیته فانتثر منها شعر فعلیه صدقة کذا فی السراج الوهاج...... والافضل ان یتصدق علی فقراء مکة ولو تصدق علی غیر فقراء مکة جاز کذا فی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱ :۲۴۳ کتاب الجنایات الفصل الثالث)

وقال القاری: فی سقوط الشعر ...... حین مسه وحکه فعلیه کف من طعام کما روی عن محمد او کسرة من خبز او تمرة لکل شعرة.

(ارشاد الساری ۱ :۲۲۰ فصل فی سقوط الشعر)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: وان نتف من رأسه اومن انفه او لحیته ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د وړوکی ماشومې د حج دوران کښې متیازې کولو اود دم جنایت مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زۀ دې کال د حج سعادت حاصلول غواړم، ما سره به زما وړه لور چه پنځلس میاشتې عمر ئې دې، هم وی، اوس که دا ماشومه متیازې وغیره وکړی، نو د حج دوران کښې څه کول پکار دی، او د ماشومې دپاره به د قربانی ضرورت وی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: انیس احمد c/o دفتر اهتمام. ۱۰/۸/۱۹۸۳

**الجواب:** تاسو ددې ماشومې د طرف نه احرام کولې شئ، او که دا ماشومه څه جنایت وکړی، نو په دې به هیڅ دم واجب نه وی﴿۱﴾، او په مقامات مقدسه کښې متیازې کول موجب دم نه دی، که دا متیازې بالغ وکړی یا نابالغ، خو قصدا په مقامات مقدسه کښې متیازې کول ګناه ده. وهو الموفق

## د بینک په ذریعه قربانی او په حلق کښې د تقدیم مسئله:

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه دا کال سعودی حکومت په منی کښې یو نوې قربان ګاه جوړه کړې ده، چه دهغې مقصد غوښې لره محفوظ ساتل او بهر ملکونو ته ئې د غریبانانو دپاره لیږل

---

(بقیه حاشیه)شعرات ففی کل شعرة کف من الطعام کذا فی فتاویٰ قاضی خان...... واذا خبز المحرم فاحترق بعض شعره تصدق له واذا حک المحرم رأسه او لحیته فانتثر منها شعر فعلیه صدقة کذا فی السراج الوهاج.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۴۳ الفصل الثالث فی حلق الشعر وقلم الاظفار)

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: قوله فلو احرم صبی او احرم عنه ابوه صار محرما، قال فی اللباب وشرحه وینبغی لولیه ان یجنبه من محظورات الاحرام کلبس المخیط والطیب وان ارتکبها الصبی لا شیئ علیهما.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۵۹ قبیل مطلب فی فروض الحج وواجباته)



دی، لیکن په دې طریقه کښې د احنافو دپاره یو څو مسئلې دی، مثلا حاجی په بینک کښې مقرره رقم جمع کړو، او رسید ئې واخستلو، د بینک عملې ورته یقین ورکړو، چه په لسم ذی الحجه به قربانی ؤشی، اوس پته نه لګی چه دا قربانی به څه وخت کیږی، ددې وجه نه حاجی بغیر د تحقیق او انتظار نه حلق کوی، او بیا معلومه شی چه په قربان ګاه کښې قربانی ناوخته شوې ده، او هم داسې حلق قبل د ذبح نه واقع شی، ددې متعلق د شریعت څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد رفیق طارق الخمیس مشیط مملکت سعودی عرب ۵/۸/۱۹۸۲

**الجواب:** د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد د ذبح تقدیم په حلق واجب دې.

**لما رواه ابن ابی شیبة عن ابن عباس رضی الله عنه انه افتی بوجوب الدم علی من قدم الحلق، واما ما روی عنه وعن غیره مرفوعا من عدم الحرج معناه عدم الاثم لا علم الدم او عدم الدم مخصوص بهذا الحج لکونه اول حج﴿۱﴾**

پس په دې مذکوره بینک کښې د ذبح واجب (قران او تمتع) دپاره داخله

---

﴿۱﴾ وفی المنهاج: احتج الجمهور بحدیث الباب (باب ماجاء ان عرفة کلها موقف وغیره، واحتج ابوحنیفة بما رواه ابن ابی شیبة عن ابن عباس موقوفا وهو احد رواة حدیث "لا حرج من قدم شیئا من حجه او اخره فلیهرق لذلک دما" وفی اسناده ابراهیم بن مهاجر وفیه مقال، قلنا رواه الطحاوی باسناد صحیح فعلم منه ان المراد من رفع الحرج رفع الاثم لا رفع الدم والجزاء، کما ارید هذا المعنی فی الحدیث الذی رواه ابوداؤد من حدیث اسامة بن شریک، قال: خرجت مع رسول الله ﷺ حاجا فکان الناس یأتونه فمن قائل یا رسول الله! سعیت قبل ان اطوف او اخرت شیئا او قدمت شیئا فکان یقول لا حرج الا علی رجل اقترض عرض مسلم وهو ظالم فذلک الذی حرج وهلک، وبالجملة ان حجة الجمهور ساکتة عن رفع الجزاء، وکم من فرق بین عدم الذکر وبین ذکر العدم، ولو سلم ان مراد الحدیث نفی الجزاء لجاز لنا ان نقول انما عذرهم بالجهل......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

کول جائز نه دی، په دې سره ترتیب او تقدیم خو لا څه کوئ، نفس ذبح هم شکمنه کیږی، پس که حکومت د مسکینانو امداد کول غواړی، نو د حاجیانو د حلال شوې حیواناتو غوښه او څرمن دې په مسکینانو کښې د استعمالولو انتظام وکړی، د ذبح وغیره انتظام دې نه کوی ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د سرکاری ډیوټی په وجه د یوولسم تاریخ رمی او طواف صدر پریخودلو سره هم دم واجبیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې په محکمه حج و اوقاف کښې د حاجیانو په خدمت مامور وو، دهغې په وجه هغه د یولسمې رمې ونکړه، آیا په دې دم واجب دې؟ دغه رنګې یو سړی په مدینه منوره کښې د ډیوټۍ د وجه نه طواف وداع پریخوده او لاړو، او دا سړې متمتع وو، په هغه دم واجب شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الرحمٰن جده سعودی عرب ۱۴۰۱/۵/۱۲ھ

(بقیه حاشیه) لان الحال اذ ذاک فی ابتداء ه.

فـائـدة:...... ارباب الحکومة فی عهدنا یأخذون من الحجاج قیمة الشاة یشتروابها الشاة ویذبحوها فی وقت معین ویعینوا المساکین باللحم الطیب الطری وهذه مظنة ترک الواجب او السنه المؤکدة نعم لاحرج فیه لمن لم یکن قارنا ولا متمتعا.

(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۴:۱۳۷ باب ماجاء ان عرفة کلها موقف)

﴿۱﴾ قال الشیخ عبد الرحیم لاجپوری: قربانی د اراقة الدم نوم دې، او هم په دې سره عبادت ادا کیږی، ددې نه پس دغوښې انتظام کول د حاجیانو ذمه واری نه ده، دا انتظام د حکومت ذمه داری ده، که دا ؤوئیلې شی. چه حکومت ددې انتظام نه قاصر دې، نو دا خبره په پوهه کښې نه راځی. کوم حکومت چه په یو شپه ؤرځ کښې د زرګونو خیمو انتظام کولې شی، (لکه په منی کښې... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



**الجواب:** دا سړې دې په زمین حرم کښې دوه ګډان حلال کړی. یا دې په چا حلال کړی، یو ګډ د ترک رمې په وجه ﴿۱﴾ او دویم د ترک طواف صدر په وجه، البته طواف صدر اوس هم کیدې شی. یعنی د عمرې نیت دې وکړی او عمره د ادا کړی، نو دې طواف عمرې سره به طواف صدر ادا شی. او د ګډ ذبح به ساقطه شی. (ماخوذ از ردالمحتار ۳: ۲۸۴) ﴿۲﴾ وهو الموفق

(بقیه حاشیه)..... د اور په حادثه کښې شوې وو) آیا هغه حکومت ددې ښارو و د غوښې انتظام نشی کولې؟ ملخصاً۔

(فتاوىٰ رحیمیه ۸:۱۱۶ باب الجنایات والدم)

قال الشیخ نظام الدین الاعظمی: د مناسک حج اضحیه د خالص او اعلی شعائرو اسلامیه نه ده، او په دې کښې اظهار تعبد صرف په شکل د اراقة الدم سره دې، او دا اسکیمونه (د بینک په ذریعه قربانی، دې دپاره چه غوښه د مسکینانو دپاره محفوظ شی) اګرچه په ظاهر کښې ډیر خائسته او فائده مند معلومیږی، لیکن د اظهار تعبد سره منافی دی، او هغې مقصد لره فوت کوی، کوم چه د رسول الله ﷺ د طرز عمل نه ظاهریږی، ځکه چه په داسې طریقې سره کار کولو نه پس به دا عمل (اراقة الدم) صرف یو سیاسی، تجارتی، او معاشی مقصد پاتې شی، او اظهار تعبد به فناه شی او د مسخ مذهب ذریعه به جوړه شی. (نظام الفتاوی ۱:۱۴۹ کتاب الحج)

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: (قوله او الرمی کله) انما وجب بترکه کله دم واحد لان الجنس متحد کما فی الحلق (قوله او فی یوم واحد) ولو یوم النحر لانه نسک تام بحر (او الرمی الاول) داخل فیما قبله کما علمت الخ.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۲۵ باب الجنایات)

﴿۲﴾ قال العلامة محمد امین ابن عابدین: (قوله او ترک طواف الصدر او اربعة منه ولا یتحقق الترک الا بالخروج من مکة) لانه ما دام فیها لم یطالب به مالم یرد السفر قال فی البحر واشار بالترک الی انه لو اتی بما ترکه لا یلزمه شیئ مطلقا لانه لیس بمؤقت ای لیس له وقت یفوت بفوته وقدمنا...... انه لو نفر ویطف وجب علیه الرجوع لیطوف مالم یجاوز المیقات فخیر بین اراقة الدم والرجوع باحرام جدید بعمرة ولا شیئ علیه لتاخیره.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۲۴ باب الجنایات)

## د جمره عقبه نه پس څلورمې حصې نه کم ویښته کټ کول او واپس راتلل

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه کوم حاجی د رمی جمره عقبه نه پس د څلورمې حصې نه کم ویښته کټ کړل، او واپس وطن ته راغلو، اوس په هغه به د نوکونو یا ویښته کټ کولو وغیره سره دم لازمیږي، او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: عبد الجلیل ریاض سعودی عرب ۷/۲/۱۹۸۲

**الجواب:** چونکه د غلبه جهل په وجه په دې تقصیر کښې ابتلاء عامه ده، حالانکه دا د شوافع وغیرهم رحمهم الله مذهب دې، د احنافو مذهب نه دې، (۱) لهذا ددې متعلق په يسروا ولا تعسروا(۲) باندې عمل کول مناسب دی.

لا سيما اذا روى عن مشائخنا فى غير المشهور عنهم كما فى شرح المبسوط لخواهر زاده وفى شرح الجامع الصغير لقاضى خان وقد صرحوا انه جاز الافتاء بالقول الضعيف عند الضرورة، فافهم(۳). وهو الموفق

---

(۱) قال الدكتور وهبة الزحيلي: والرأس يقع على جميعه فان حلق بعض الرأس لم يجزه عند الحنفية اقل من الربع وان حلق ربع الرأس اجزأه مع الكراهة لان ربع الرأس يقوم مقام كله كمسح ربع الرأس فى الوضوء...... وقال الشافعية: اقل ازالة شعر الرأس او التقصير ثلاث شعرات لقوله تعالىٰ محلقين رؤوسكم (الفتح) اى شعر رؤوسكم، والشعر جمع واقله ثلاث. (الفقه الاسلامى وادلته ۳: ۲۲۶۹ المطلب الثالث الحلق والتقصير)

(۲) (اخرجه البخارى: ۶۹، ومسلم: ۱۷۳۳، ۱۷۳۴، واحمد: ۳: ۱۳۱، وابويعلى: ۴۱۷۲، وابن حبان: ۵۳۷۳)

(۳) قال العلامة ابن عابدين: وقد ذكر صاحب البحر فى الحيض فى بحث الوان الدماء اقوالاً ضعيفة ثم قال وفى المعراج عن فخر الائمة لو افتى مفت بشيئ من هذه الاقوال فى مواضع الضرورة طلبا لتيسير كان حسناء وبه علم ان المضطر له العمل بذلك لنفسه كما قلنا وان المفتى له الافتاء به للمضطر فما مر من انه ليس له العمل بالضعيف ولا الافتاء به محمول على غير موضع الضرورة. (شرح عقود رسم المفتى ۱۰۲ شعر ولا يجوز بالضعيف العمل)



## د باقاعده تحلیل نه مخکښې د عمرې احرام تړل او ګنډلې شوې جامې اغوستل

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړي احرام وتړو او طواف او سعى ئې وکړه، په ختمیدلو باندې ئې څلورمه حصه ویښته کټ نه کړل، او بیا ئې ګنډلې شوې جامې واغوستلې او د میقات نه ئې د بلې عمرې احرام وتړو، او عمره ئې ادا کړه، د سعې په ختمیدو سره ئې بیا هغه کار وکړو، دغه رنګې ئې اووه عمرې وکړې، د ګنډلې شوې جامو په بدن پورې درې ګنټې او د بعضو اته او لس ګنټې وخت شوې وو، بیا ئې آخرى عمره وکړه او جامې ئې واغوستلې، بیا جدې ته لاړو او ټول سرئې وخروو، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوی محمد نبی ریاض سعودی عرب

**الجواب:** واضحه دې وی چه باقاعده د تحلیق یا تقصیر نه مخکښې د عمرې احرام تړلو باندې دم واجبیږي، یعنی یو قربانی واجب ده، (هندیه ۱: ۲۷۱)(۱) د ورځ یا شپې نه کم ګنډلې شوې جامې اغوستلو باندې صدقه ده، او د شپې یا ورځې نه زیات اغوستلو باندې دم واجبیږي. (شرح تنویر)(۲) وهو الموفق

## په رمی جمار کښې بغیر د وجه شرعی نه توکیل صحیح نه دې، او دم واجب دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه ښځه او خاوند حج ته لاړل، خاوند چه کله منى ته راغلو نو خپله خیمه ترې هیره شوه، هغه نیغ مکې ته لاړو، او هلته کښې دوه ورځې ایسار وو، تندرست دې ګرځیدې راګرځیدې شی، لیکن د بدن نه ډیر دروند دې، په منى کښې ئې

---

(۱) وفى الهندية: ومن فرغ من عمرته الا التقصير فاحرم باخرىٰ فعليه دم لاحرامه قبل الوقت وهو دم جبر وكفارة كذافى الهداية. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۲۵۴ الباب الحادى عشر فى اضافة الاحرام الى الاحرام)

(۲) قال العلامه الحصكفى: او لبس مخيطا لبسا معتادا او ستر رأسه يوما كاملا او ليلة كاملة وفى الاقل صدقة. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۲۲۰ باب الجنايات)

ښځه پاتې شوه، ښځه ئې ځوانه او تندرسته ده، لیکن د رش د وجه نه ئې شیطان په کاڼو ؤنه ویشتلو، هغې د خپل طرف نه او د خاوند د طرف نه بل چاته کاڼي ورکړل، هغه هلته کښې شیطان په کاڼو ویشتلو، آیا دا صحیح ده؟ د ښځې خاوند رشته قائمه پاتې ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی عبد المجید پیښور ښار ۲۲/۲/۱۹۷۵

**الجواب:** واضحه دې وی چه د ښځې دپاره د شپې په وخت کښې رمی کول بلا کراهت جائز دی. او د سړي دپاره سره د کراهت نه د فراغت ذریعه ده، لهذا په دې ښځې ضروری ده، چه یو ګډ د چا په ذریعې په منی کښې ذبح کړی، او که دا سړې دومره معذور وی، چه په ولاړه مونځ نشی کولې، نو دهغه ذمه فارغه شوې ده، ګنی په دهٔ به ذبح باقاعده لازم وی.﴿۱﴾ وهو الموفق

## د ۱۲ ذی الحجه رمی جمار پریخودل او په ۱۳ ذی الحجه ئې کولو سره په وجوب د دم کښې اختلاف دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه په دولسم ذی الحجې باندې د رمی جمرات په وخت کښې مونږ اتهٔ ملګری راپریوتو، او زمونږ حالت ډیر خراب شو، مونږه رمې ؤنکړې شوه، په بله ؤرځ یعنی دیارلسم ذی الحجه مو د مسئلې تپوس وکړو، بعضې علماؤ راته ؤوئیل چه دم واجب

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: الخامس ان یرمی بنفسه فلا تجوز النیابة عند القدرة وتجوز عند العذر فلورمی عن مریض لا یستطیع الرمی بامره...... جاز...... لان الرمی عن المریض بغیر امره لا یجوز...... قیل فی حد المریض ان یصیر بحیث یصلی جالسا...... والرجل والمرأة فی الرمی سواء الا ان رمیها فی اللیل افضل وفیه ایماء الی انه لا تجوز النیابة عن المرأة بغیر عذر...... والحاصل ان الرمی هو من واجبات الحج اما اداء او قضاء فاذا فات وقتهما تعین الدم لترک الرمی اتفاقا.

(شرح لباب المناسک ۱٦٦،۱٦۷ فصل فی احکام الرمی وشرائطه)



دي، او بعضو ؤوئیل چه نن دهغې قضا وکړئ، د دم ضرورت نشته، مونږ په دویم قول باندې عمل وکړو، او په دیارلسم تاریخ مو رمی جمار وکړه، اوس سوال دادې، په دې دیارلسم تاریخ د رمی څه حیثیت دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: فیض محمد بورې والا ضلع وهاړی. ۱۵/۷/۱۹۸۴

**الجواب:** په دې صورت کښې د امام ابوحنیفه رحمه الله په نزد دم واجب دې، او د صاحبینو په نزد واجب نه دې، کما فی مسلک المتوسط للقاری ۱٦۱.﴿۱﴾ وهو الموفق

## د واجب سعی پریخودل موجب دم دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه په حج کښې سعی واجبه پریخودلې شوې ده، اوس کور ته راتلو نه پس ددې څه وکړې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی محمد اسلم صوابی ضلع مردان. ۲ ذی قعده ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** تهٔ یو حاجی ته پیسې ورکړه او په منی کښې قربانی پرې وکړه، دا قربانی هر وخت کښې جائز ده د ایام نحر سره مخصوصه نه ده.

کما فی الهدایة، ومن ترک السعی بین الصفا والمروة فعلیه دم وحجته تام﴿۲﴾ وفیها ایضا یجوز ذبح بقیة الهدایا فی ای وقت شاء ولا یجوز ذبح الهدایا الا فی الحرم﴿۳﴾.

وهوالموفق

﴿۱﴾ قال العلامة القاری: واذا طلع الفجر ای صبح الرابع فقد فات وقت الاداء ای عند الامام خلافا لهما وبقی وقت القضاء ای اتفاقا الی آخر ایام التشریق فلو اخره ای الرمی عن وقته المعین له فی کل یوم فعلیه القضاء والجزاء وهو لزوم الدم.

(ارشاد الساری ۱٦۱ قبیل فصل فی وقت الرمی فی الیوم الرابع)

﴿۲﴾ (هدایة ۱: ۲۵٦ باب الجنایات)

﴿۳﴾ (هدایة ۱: ۲۸۱ باب الهدی)

## په غلطۍ سره د احرام څادر لرې کول اوجامې اچول او حج کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه زۀ يو پاکستاني يم، اوپه مدينه منوره کښې ؤسيږم، تير کال ما د حج او عمرې نيت وکړو اواحرام مې ؤتړو، عمره ختمولو نه پس يو بانډيسي زما د سر نه لږ شان وينښته کټ کړل، د لاعلمۍ په وجه ما سمدستى احرام لرې کړو، او جامې مې واغوستلې، او د حج اراده مې وکړه، آيا زما د حج وشو؟ بينوا توجروا

المستفتي: مرزاخان حطة النخيل طريقه مدينه منوره سعودی عرب ۲۱/۴/۱۹۸۴

**الجواب:** تۀ يو دم (ګډ) ذبح کړه، نو ذمه به دې فارغه شي، او عمره او حج دواړه به دې صحيح شي. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## په منیٰ کښې شپه نه کولو سره دم نه لازميږي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه دې کال د رمې په دوران کښې چه کله مونږ رمي وکړه، اود طواف زيارت دپاره روان شو، نو مونږ سره ښځې او کمزوري خلق هم وو، د طواف دوران کښې مونږ نه بعض ملګرى ؤرک هم شو، مونږ طواف پوره کړو، نود سترې کيدلو او ملګرو تلاش کولو په وجه مونږ شپه په مکه کښې تيره کړه، او سحر مو سعي وکړه، او د جمعې د مونځ نه پس منې ته روان شو، اوس مونږ چه کومه شپه په مکه معظمه کښې تيره کړې ده، او منې ته تلې نه وو، په مونږ دهغې په وجه دم لازم دې او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: حکيم حميد الدين دهلوى دواخانه راولپنډى ۱۷ جمادى الاول ۱۴۰۲ هـ

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: او لبس مخيطا او ستر رأسه يوما كاملا او ليلة كاملة وفى الاقل صدقة، قال ابن عابدين: الظاهر ان المراد مقدار احدهما فلو لبس من نصف النهار الى نصف الليل من غير انفصال او بالعكس لزمه دم كما يشير اليه قوله وفى الاقل صدقة.
(الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۲۲۰ باب الجنايات)



**الجواب:** تاسو د سنت د پريخودلو مرتکب شوې يئ، د واجب د پريخودلو نه، لهذا په تاسو دم لازم نه دې.

كما فى الشامية ۲: ۲۵۲ قوله فيبيت بها للرمى اى ليالى ايام الرمى هو السنة فلو بات بغيرها كره ولا يلزمه شيئ (لباب) ﴿۱﴾. وهو الموفق

## ډيرې عمرې کونکې ښځه که قصر ؤنکړي نو کفاره او يو دم واجب دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يوې ښځې ډيرې عمرې وکړې، او وينښته ئې کټ نه کړل، آيا دا به يو جنايت شمارلې شي، او يو دم به واجب وي، که ډير جنايات؟ بينوا توجروا

المستفتي: دلاور شاه ټل کوهاټ ۲۵ شوال ۱۴۰۲ هـ

**الجواب:** په دې ښځې باندې د احرام قبل از وخت د وجه نه کفاره او يو دم واجب دې.

كما يدل عليه مافى الهندية ۱: ۲۵۴ ومن فرغ من عمرته الا التقصير فاحرم باخرىٰ فعليه دم لاحرامه قبل الوقت وهو دم جبر وكفارة كذا فى الهداية ﴿۲﴾. وهو الموفق

## د قربانۍ نه مخکښې حلق، د رمې قضا، په طواف زيارت کښې د سعي پريخودل، او په مزدلفه کښې شپه نه تيرول وغيره مسئلې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه (۱) د رمې نه پس اود قربانۍ نه مخکښې د وينښتو کټ کولو څه حکم دې؟

۲) په منیٰ کښې دشپې نه تيرولو څه حکم دې؟

۳) چه کومه يوه ؤرځ جمرات ؤولي، نو آيا د نورو ؤرځو جمرات يو ځائې ويشتلې شي؟

---

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۲۰۰ قبيل مطلب فى حكم صلاة العيد والجمعة فى منىٰ)

﴿۲﴾ (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۲۵۴ باب اضافة الاحرام الى الاحرام)

۴) په طواف زیارت کښ که طواف وکړی او سعی پریږدی، بیا به د قضا په صورت کښ صرف سعی کوی. یا طواف او سعی دواړه به کوی؟

۵) په مزدلفه کښ د شپې نه ایساریدلو څه حکم دې؟

۶) که غلطۍ سره سړې د میقات نه لرې مخکښ لاړو، نو ددې څه حکم دې؟

بینوا توجروا

المستفتی: مولانا محمد ابراهیم سکنه سلیم خان صوابی. ۷/۱۰/۱۹۸۴

**الجواب:** (۱) د امام ابو حنیفه رحمه الله په نزد دا جنایت دې او دم پرې واجب دې، (شامی باب الجنایات)﴿۱﴾

۲) په منی کښ شپه نه کول، خلاف سنت دی، لیکن دم پرې نشته. (شامی ۲۵۲\۲)﴿۲﴾

۳) په ایام منی کښ کله چه د یوې ؤرځې رمی پریږدی، نو دم واجب دې، که باقاعده قضا وکړی او که نه. (ارشاد الساری ۲٤۰) ﴿۳﴾

---

﴿۱﴾ قال العلامة الشامی: (قوله او قدم نسکا علی آخر فیجب) لما کان قوله او قدم الخ بیانا لوجوب الدم بعکس الترتیب فرع علیه ان الترتیب واجب الخ.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۲۶ باب الجنایات)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (ثم اتی منیٰ فیبیت بها للرمی) ای لیالی ایام الرمی هو السنة فلوبات بغیرها کره ولا یلزمه شیئ لباب.

(فتاویٰ الشامیة ۲:۲۰۰ قبیل مطلب حکم صلاة العید والجمعة فی منیٰ)

﴿۳﴾ قال الملا علی قاری: ولو ترک رمی یوم من ایام النحر کله او اکثره کأربع حصیات فما فوقها فی یوم النحر او احد عشرة حصاة فیما بعده او آخره الی یوم آخر فعلیه دم ای لترکه او تاخیره. (ارشاد الساری ۱:۲۴۰ فصل فی الجنایة فی رمی الجمرات)



٤) که دې سړې د طواف قدوم یا طواف تطوع نه پس سعی نه وی کړې، نو ترڅو پورې چه د میقات نه بهر شوې نه وی، صرف سعی سره دهغه ذمه فارغه کیږی، اګر که دا تاخیر څو میاشتې وی، او که د میقات نه بهر شوې وی، نو بهتر داده چه دم ذبح کړی، او که د عمرې یا د حج احرام ؤتړی او واپس راشی، او دا مناسک ادا کړی، نو دا هم جائز دی. (ارشاد الساری ۲٤۰)﴿۱﴾

۵) په مزدلفه کښ شپه تیرول مسنون دی، لیکن د سحر ختلو نه پس ایساریدل واجب دی، او دم پرې واجب دې. (شامی)﴿۲﴾

٦) چه کله واپس شی او احرام ؤتړی نو دم واجب نه دې. (هندیه ۱:۲۵۳)﴿۳﴾

که د تفصیل ضرورت وی نو یو یا دوه سوالونه راؤلیږه. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: ولو ترک السعی کله او اکثر فعلیه دم وحجه تام...... وان ترکه لعذر فلا شیئ علیه...... ولو سعی قبل الطواف...... لم یعتدبه...... فان لم یعده فعلیه دم اتفاقا ولو ترک السعی من اصله ورجع الی اهله بان خرج من المیقات فاراد العود الی مکة یعود باحرام جدید...... واذا اعاده سقط الدم قال فی الاصل والدم احب الی من الرجوع لان فیه منفعة الفقراء. (ارشاد الساری ۲۳۸ فصل فی الجنایة فی السعی)

﴿۲﴾ قال العلامة محمد امین: (ثم وقف بمزدلفة) هذا الوقوف واجب عندنا لاسنة والبیتوتة بمزدلفة سنة مؤکدة الی الفجر لا واجبة...... واول وقته طلوع الفجر الثانی من یوم النحر وآخره طلوع الشمس منه فمن وقف بها قبل طلوع الفجر او بعد طلوع الشمس لا یعتد به وقدر الواجب منه ساعة ولو لطیفة الخ.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۱۹۳ مطلب فی الوقوف بمزدلفة)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: وان عاد الی المیقات واحرم فهذا علی وجهین فان احرم بحجة او عمرة عما لزمه خرج عن العهدة وان احرم بحجة الاسلام او عمرة کانت علیه ان کان ذلک فی عامه اجزأه عما لزمه لدخول مکة بغیر احرام استحسانا کذا فی المحیط.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۵۳ الباب العاشر فی مجاوزة المیقات بغیر احرام)

## د ضعیف او کمزوری په رمی جمار کښ توکیل او د دم وغیره مسائل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه یو سړې حج ته لاړو او ټول افعال ئې په خپله ادا کړل، لیکن د کمزورۍ او بوډا والی په وجه ئې رمی جمار په بل چا وکړل، اوس:

۱) په دې سړې دم وغیره واجب دی؟

۲) که واجب دی نو یو که درې؟

۳) ددې دم ذبح کول کوم ځائې ضروری دی؟

۴) که په منی کښ ضروری وی، او هغه سړې واپس راغلې دې، نو ددې به څه صورت وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حبیب الله نعمانی جامعه مدنیه کریم پارک راوی روډ لاهور

**الجواب:** ۱) کوم سړې چه په خپله د ضعف یا مرض په وجه په رمی باندې قادر نه وی، نه د ورځې او نه د شپې، نو هغه په بل سړې رمی کولې شی. (هندیه)﴿۱﴾

۲) کوم سړې چه د قدرت باوجود ټولې رمیات پریږدی، په هغه یو دم واجب دې. (شامی)﴿۲﴾

---

**﴿۱﴾ وفی الهندیة: مریض لا یستطیع الرمی توضع الحصاة فی کفه لیرمی به او یرمی عنه غیره بامره کذا فی محیط السرخسی فی صفة الرامی.**

**(فتاوی عالمگیریه ۱: ۲۳۶ فصل فی المتفرقات)**

**﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (او الرمی کله) انما وجب بترکه کله دم واحد لان الجنس متحد کما فی الحلق والترک انما یتحقق بغروب الشمس من آخر ایام الرمی وهو الرابع الخ.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۲۲۵ باب الجنایات)**



۳) دم جنایت د زمین حرم سره مخصوص دې، که په منی کښ وی، یا مکه کښ، په دې کښ هرځائې ددې ذبح کافی ده. (بحر)﴿۱﴾ شامی﴿۲﴾

۴) بل سړې لره دې وکیل او مامور جوړ کړی او حرم کښ دې ذبح وکړی.﴿۳﴾

وهو الموفق

## د حائضې ښځې طواف زیارت او طواف وداع پریښودل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه د زید د ښځې حیض همیشه دپاره لس ورځې وی، کله چه د منی او عرفات په مینځنۍ وقفه کښ حیض راغلو، دهغې نه پس مونږ جدې ته تللو والا وو، او اوسه پورې د زید د ښځې په حیض کښ شپږ ورځې باقی پاتې وې، اوس سوال دادې، چه ددې ښځې په ذمه یو طواف زیارت باقی وو، او بل طواف وداع هم، اوس مونږ څه وکړو؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۱۰/۴/۱۹۷۴

---

**﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجیم: (وخص ذبح هدی المتعة والقران بیوم النحر والکل بالحرم لا بفقیره) بیان لکون الهدی موقتا بالمکان سواء کان دم شکر او جنایة...... واما توقیته بالزمان فمخصوص بهدی المتعة والقران واما بقیة الهدایا فلا تتقید بزمان.**

**(البحر الرائق ۲: ۷۲ باب الهدی)**

**﴿۲﴾ قال فی الشامیة: (ذبح فی الحرم) فلو ذبح فی غیره لم یجز.**

**(فتاویٰ الشامیة ۲: ۲۲۸ باب الجنایات)**

**﴿۳﴾ قال العلامة المودود الموصلی: ولا یذبح الجمیع الا فی الحرم قال تعالیٰ فی جزاء الصید (هدیا بالغ الکعبة) وفی دم الاحصار (حتی یبلغ الهدی محله) ولان الهدی ما عرف قربة الا فی مکان معلوم وهو الحرم، قال علیه السلام منی کلها منحر وفجاج مکة کلها منحر رواه ابوداؤد وابن ماجة والدارمی واحمد.**

**(الاختیار لتعلیل المختار ۱: ۲۲۱ باب الهدی)**

**الجواب:** که دې ښځه په حیض کښې طواف زیارت کړې وی، نو د حرمت باوجود به فریضه حج ادا شوې وه. او یوه بدنه ذبح کولو سره به دجنایت نه بری شوې وه. (شامی ۲:۲۵۹)﴿۱﴾ لیکن په ظاهر کښې دا معلومیږی، چه دا ښځه وطن ته واپس راغلې ده. ددې وجه دې دپاره دوباره مکې ته تلل ضروری دی، چه طواف زیارت وکړی، او دهغې دپاره جماع کول ممنوع دی، اګر که ډیر کلونه تیر شی. (هندیه ۱:۲۴۶)﴿۲﴾ او د حائضې دپاره طواف صدر پریخودلو کښې هیڅ ګناه نشته. (شامی ۲:۲۵۵)﴿۳﴾ وهو الموفق

## په حج کښې د حاملې ښځې دپاره د واجباتو پریخودلو مسائل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړې ښځه حامله وه، ددې مجبورۍ په وجه ئې مختصر حج وکړو، اګر چه په معلم الحجاج کښې جوابات ذکر دی. بیاهم د زیاتې تسلۍ دپاره لیکم، مسئله داده، چه ډاکټر هم د حاملې کیدلو په صورت حج ته د تللو نه منع کړه، لیکن دهغې باوجود دواړه په نهمې ذی الحجې باندې سپیشل موټر کښې مکې معظمې ته ؤرسیدل، هلته کښې ئې طواف قدوم وکړو، او بیا د زوال نه پس عرفات ته ؤسیدل، د غروب نه پس هلته نه ؤوتل او مزدلفې نه د شپې شپې

﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين: لوهم الركب على القفول ولم تطهر فاستفتت هل تطوف ام لا قالوا يقال لها لا يحل لک دخول المسجد وان دخلت وطفت اثمت وصح طوافک وعليک ذبح بدنة.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۹۹ مطلب فى طواف الزيارة)
﴿۲﴾ وفى الهندية: وان ترک کلا الطوافين فهو حرام على النساء ابدا وعليه ان يرجع ويطوف طواف الزيارة وطواف الصدر.
(فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۲۴۶ الفصل الخامس فى الطواف والسعى)
﴿۳﴾ قال العلامة الشامى: (وطواف الصدر واجب الا على اهل مكة) اى فلا يجب على المكى ولا على المعتمر مطلقا والمجنون والصبى والحائض والنفساء كما فى اللباب وغيره.
(فتاوىٰ الشامية ۲:۲۰۲ مطلب فى طواف الصدر)



حرم شریف ته ؤرسیدل، په لسم تاریخ ئې د صبح صادق نه پس طواف زیارت وکړو. دغه رنګې وقوف مزدلفه او رمې ئې ونکړې شوه. په معلم الحجاج کښې ئې لیکلې دی، که واجبات دحج د شرعی عذر په وجه فوت شی، نو دم نه لازمیږی، اوس دې باره کښې تاسو څه فرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالحمید خان ریاض سعودی عرب ۸/۲/۱۹۷۲

**الجواب:** چونکه ددې سړی نه ټول واجبات بغیر د عذر شرعی نه فوت شوی دی، لهذا په هغه د ټولو واجباتو دم ورکول ضروری دی﴿۱﴾، لیکن په ښځه ئې د وقوف مزدلفه په وجه دم نشته.﴿۲﴾ وهو الموفق

## د طواف زیارت ادا کولو نه مخکښې د ښځې سره جماع کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې که د چا نه طواف زیارت پاتې شی، نو آیا د طواف زیارت ادا کولو نه مخکښې د ښځې سره جماع کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی ظفر الحق ۱۱/۱۲/۱۹۸۵

﴿۱﴾ وفى الهندية: ولو ترک الجمار كلها او رمى واحدة او جمرة العقبة يوم النحر فعليه شاة.
(فتاوىٰ عالمگيريه ۱:۲۴۷ قبيل الباب التاسع فى الصيد)
﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى: ثم وقف بمزدلفة ووقته من طلوع الفجر الى طلوع الشمس ولو مارا كما فى عرفة لكن لو تركه بعذر كزحمة بمزدلفة فلا شيئ عليه، قال ابن عابدين: الا اذا كان لعلة او ضعف او يكون امرأة تخاف الزحام فلا شيئ عليه...... فالاولىٰ تقييد خوف الزحمة بالمرأة ويحمل اطلاق المحيط عليه لكون ذلک عذرا ظاهرا فى حقها يسقط به الواجب بخلاف الرجل او يحمل على ما اذا خاف الزحمة لنحو مرض ولذا قال فى السراج الا اذا كانت به علة او مرض او ضعف فخاف الزحام فدفع ليلا فلاشيئ عليه.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۹۳ مطلب فى الوقوف بمزدلفة)

**الجواب:** د رفض حج د ارادې نه مخکښې په دۀ باندې ښځه حرامه وی.﴿۱﴾

وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: وبترك اكثره بقي محرما ابدا في حق النساء حتى يطوف فكلما جامع لزمه دم اذا تعدد المجلس الا ان يقصد الرفض فتح.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۲۲۴ باب الجنايات)

..........



# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه ځلورم جلد

# باب زیارة

# قبر النبی صلی الله علیه وسلم



..........

بسم الله الرحمن الرحيم

......قال الله تعالى:......

وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ
جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ
وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللَّهَ
تَوَّابًا رَحِيمًا ﴿٦٤﴾.... [النساء: ۴۶]........

..........................

.......عن ابن عمر قال:.......

قال رسول الله صلى الله عليه وسلم

من زار قبري وجبت له شفاعتي.

رواه البزار والدارقطني، قاله النووي وقال القاري في شرح الشفاء صححه جماعة من ائمة الحديث



# باب زيارة قبر النبي صلى الله عليه وسلم

## په زيارت د روضې مبارکې کښې وړاندې والې افضل دې که په حج کښې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه بعضې خلق وائي، چه د حج کولو نه مخکښې د روضې مبارکې زيارت کول افضل دی. او بعضې روستو ته افضل وائي، صحيح مسئله څه ده؟ بينوا توجروا

المستفتی: زرباز خان صوابی..... ۲۸\۴\۱۹۷۴

**الجواب:** کوم سړې چه فرض حج نه وی کړې، دهغه دپاره افضل دادی، چه اول حج وکړی، او د حج نه پس د مدينې منورې زيارت دپاره لاړ شی. او که دا حج نفلی وی، نو هغه ته اختيار دې، چه هر يو اول کوی يا روستو کوی، او د کوم حاجی لاره چه په مدينه منوره وی، نو دې به اول زيارت کوی.

(شرح لباب)﴿۱﴾ وهو الموفق

## په حج يا عمره کښې روضه نبوی دپاره د تللو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه کوم سړې حج يا عمرې دپاره مکې مکرمې ته لاړ شی، دهغه دپاره مدينې منورې ته د روضې مبارکې دپاره تلل لازمی دی؟ بينوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۱۳/۳/۱۹۷۴

---

﴿۱﴾قال العلی بن سلطان محمد: ان كان الحج فرضا عليه فيبدأ بالحج ثم بالزيارة ای ابتدأ بالاهم فالاهم ولان الحج حق الله تبارک وتعالیٰ وهو مقدم علی حق رسوله...... لكنه مقيد بما قاله ان لم يمر بالمدينة فی طريقه ای كاهل الشام وان مربها بدأ بالزيارة لا محالة لان تركها مع قربها يعد من القساوة والشقاوة...... وان كان الحج عليه نفلا فهو بالخيار ای اذا كان آفاقيا بين البداءة بالمختار ای بزيارته صلی الله عليه وسلم الخ.

(مناسک لملا علی قاری ۳۳۴ باب زيارة سيد المرسلين صلی الله عليه وسلم)

**الجواب:** مدینې منورې ته د زیارت روضه رسول الله ﷺ دپاره تللو کښ درې اقواله دی. مندوب، قریب الوجوب، او واجب (علامه شامی﴿۱﴾ او مولانا تهانوی رحمه الله ﴿۲﴾ دویم قول ته ترجیح ورکړې ده. خلافا لابن تیمیه ومن دان دینهم ﴿۳﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین :(بل قیل واجبة) ذکره فی شرح اللباب وقال بینته فی الدرة المضیة فی الزیارة المصطفویة وذکره ایضا الخیر الرملی فی حاشیة المنح عن ابن حجر وقال وانتصرله نعم عبارة اللباب والفتح وشرح المختار انها قریبة من الوجوب لمن له سعة الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۷۹ قبیل مطلب فی المجاورة بالمدینة ومکة المکرمة)

﴿۲﴾قال الشاه اشرف علی التهانوی: وفی ردالمحتار عن اللباب والفتح وشرح المختار انها قریبة من الوجوب لمن له سعة،

ددې قول نه د بالوجوب معنی واضح شوه، یعنی دې خو مندوب، لیکن د نورو مندوباتو نه زیات مهتم بالشان دې. چه هغې لره قرب وجوب سره تعبیر شوې دې، پس دواړه قولونه مطابق شو.

(امدادالفتاوٰی ۲:۱۶۹ مسائل منثوره متعلقه بالحج)

﴿۳﴾ قال فی رسالة حج:ابن تیمیه،امام جوینی،اوامام الحرمین وائی،چه د رسول الله ﷺ د روضې دپاره سفرکول ممنوع دی،حدیث: (لا تشدّالرحال) په وجه چه نبی کریم ﷺ فرمائی چه صرف مسجد حرام،مسجدنبوی اومسجداقصٰی طرف ته به سفرکولې شی، لیکن دا خلق خطا شوی دی،ځکه که دحدیث: لا تشدالرحال دامعنی وې،نود نبی کریم ﷺ په حیات کښ د نبی کریم ﷺ د ملاقات او زیارت دپاره سفرکول به ناجائزوو .بلکه دتجارت،علم اوجهاد دپاره به سفرکول هم ناجائز وو ،ددې حدیث معنٰی د حدیث مسند امام احمدبن حنبل نه معلومیږی، چه سوا ددې دریوجماتونو نه بل جمات ته د مونځ دپاره سفرکول مناسب اوافضل نه دی،دزیارت القبور وغیره متعلق داحدیث ساکت دې.(شامی وغیره)انتهٰی(مسائل حج ۲۶)

قلت: علاوه ددې نه د زیارت قبرنبوی د مشروعیت او استحباب دپاره خصوصی روایات وارد دی، چه په بیهقی، دارمی، مسندابوداؤد طیالسی، عقیلی، وفاء الوفاء او موطا امام محمد کښ مروی دی، ددې په بعضو اسنادو کښ اګرچه محدثینو کلام کړې دې،لیکن د کثرت .........(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## که په ویزه کښ ورځې لږې وی، او حاجی مدینې منورې ته لاړ نشی، نو حج نه متاثر کیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه که د سعودی عرب د قانون په وجه د حج په ویزه کښ ورځې کمې وی، او حاجی مدینې منورې ته د رسول الله ﷺ د قبر مبارک زیارت ته لاړ نشی، نو آیا دده حج پوره شو؟ بینوا توجروا

المستفتی : سمیع الرحمٰن بټ خیله ملاکنډ ایجنیسی

**الجواب:** د روضې مبارکې زیارت کول د حج د ارکانو نه نه دی، البته مدینې منورې ته د زیارت دپاره تلل قریب الی الوجوب دی، که د قانونی مشکلاتو او شرعی عذرونو په وجه لاړ نشی، نو دا وجوب ساقط دې، بهرحال په دې سره حج نه متاثر کیږی. (قواعد فقه)﴿۱﴾ وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه).... روایات او کثرت طرق په وجه دهغې ضعف ختم شوې دې، او په هغې کښ دوه روایات صاحب مشکوة هم روایت کړی دی، او شارح مشکوة ملا علی قاری رحمه الله فرمائی، والاحادیث فی هذا الباب کثیرة وفضائل الزیارة شهیرة ومن انکرها انما انکرما فیها من بدع نکیرة غالبها کبیرة. مرقاة المفاتیح ۵\۶۳۲،

اوعبدالوهاب الازهری د موطا امام محمد په تعلیق کښې فرمائی:

والاحادیث فی فضل زیارة القبر النبوی کثیرة وصحیحة والضعیف منها یرتقی الی درجة المقبول لتعدد طرقه وکثرة شواهده کما ذکره ابن حجر فی التلخیص الحبیر وما ذکره ابن الجوزی فی التحقیق من ان حدیث (من حج فلم یزرنی فقد جفانی) موضوع وتابعه ابن تیمیة فی ذلک غیر صحیح بل هو اما حسن عند بعض المحدثین و اما ضعیف کما هو عند بعضهم وانظر فی ذلک شفاء السقام للسبکی والجوهر المنظم لابن حجر الهیثمی ورسائل اللکنوی صاحب التعلیق الممجد. ......(ازمرتب)

﴿۱﴾ قال الملا علی قاری: ان زیارة سید المرسلین علیه السلام باجماع المسلمین ای من غیر عبرة بما ذکره بعض المخالفین من اعظم القربات......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د حرم نبوی ﷺ د زیارت په وخت کښې افعال

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د روضه مبارک د زیارت دپاره مسجد نبوی ته چه کله داخل شی نو څه کول پکار دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم.......

**الجواب:** (۱) مسجد نبوی ته د باب السلام یا باب جبرائیل نه داخلیدل مستحب دی(۱). لیکن که د رش د وجه نه نورو ته د تکلیف رسولو یا خپله تکلیف کښې د مبتلاء کیدلو خطره وی. نو په دې دروازو سره داخلیدل ممنوع دی، په نورو دروازو سره دې داخل شی. (قواعد الشرع)

(۲) چه کله جمات ته داخل شی، نو اول دې باقاعده تحیة المسجد ادا کړی، که وخت مکروه نه وی. بیا د روضه شریفې ته لاړ شی، او په نبی کریم ﷺ د صلاة وسلام ؤوائي، بیا دې یو گز (شرعی) گس طرف ته شی، او په حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه دې سلام ؤوائي، او بیا دې یو گز نور هم گس طرف ته شی، او په حضرت عمرفاروق رضی الله عنه دې سلام ؤوائی. (شرح لباب)(۲)

---

(بقیه حاشیه) وافضل الطاعات وانجح المساعی لنیل الدرجات قریبة من درجة الواجبات بل قیل انها من الواجبات کما بینته فی الدرة المضیة فی الزیارة المصطفویة لمن له سعة ای وسعة واستطاعة وترکها غفلة عظیمة.

(ارشاد الساری ۳۳۴ باب زیارت سید المرسلین ﷺ)

(۱) قال الملا علی قاری: ویدخل من باب جبریل او غیره کباب السلام کما علیه العمل والافضل افضل لعل وجهه دخول جبریل علیه من ذلک الباب اولانه کان الی الحجرات من اقرب الابواب فاذا دخله قصد الروضة المقدسة الخ. (ارشاد الساری ۳۳۷ باب زیارة سید المرسلین ﷺ)

(۲) قال الملا علی قاری: ثم یبدأ بتحیة المسجد رکعتین...... فاذا فرغ من ذلک قصد التوجه الی القبر المقدس...... ثم توجه مع رعایة غایة الادب......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



(۳) د حجرې مبارکې ښکلول، لاس لگول، زیات نږدې کیدل، سجده کول، ټیټیدل، او زمکه ښکلول، وغیره ټول ناجائز دی. (شرح لباب)(۱) وهو الموفق

## مسجد نبوی ته داخلیدو نه پس دې تحیة المسجد ادا کړی او بیا دې زیارت وکړی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه کوم سړی د زیارت روضه رسول ﷺ دپاره مسجدنبوی ته داخل شی، نوهغه به مخکښې دوه رکعته تحیة المسجد ادا کوی، او که اول به زیارت کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید رزاق هنگو کوهاټ

**الجواب:** چه کله د زیارت دپاره مسجد نبوی ته داخل شی، نو اول دې دوه رکعته تحیة المسجد ادا کړی، بیا دې روضه مبارکې ته لاړ شی، او باقاعده دې صلاة او سلام ادا کړی. (شرح لباب)(۲) وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) فقام تجاه الوجه الشریف...... مستقبلا للوجه الکریم...... مستدبرا للقبلة ممثلا صورته الکریمة فی خیالک...... مستشعرا بانه علیه الصلاة والسلام عالم بحضورک وقیامک وسلامک...... مسلما...... مقتصدا من غیر رفع صوت ولا اخفاء بحضور وحیاء السلام علیک ایها النبی ورحمة الله وبرکاته...... ثم یتأخر...... الی صوب یمینه ای متوجها الی جانب یساره قدر ذراع فیسلم علی خلیفة رسول الله ﷺ ابی بکر الصدیق...... ثم یتأخر الی یمینه قدر ذراع فیسلم علی خلیفة رسول الله ﷺ عمربن الخطاب الخ.

(المسلک المتقسط ۳۳۸ باب زیارة سید المرسلین ﷺ)

(۱) قال العلامة علی بن سلطان محمد: ولا یمس عند الزیارة الجدار لانه خلاف الادب فی مقام الوقار وکذا لا یقبله لان الاستلام والقبلة من خواص بعض ارکان الکعبة والقبلة ولا یلتصق به ای بالتزامه ولصوق بطنه لعدم وروده ولا یطوف...... ولا ینحنی ولا یقبل الارض فانه کل واحد بدعة ای غیر مستحسنة فتکون مکروهة واما السجدة فلاشک انها حرام الخ.

(المسلک المتقسط فی المنسک المتوسط ۳۴۲ باب زیارة سید المرسلین ﷺ)

(۲) قال العلامة القاری: ثم یبدا بتحیة المسجد رکعتین......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د قبراطهر د زیارت په وخت کښې د خطاب صیغه اوحروف ندا ذکرکول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زید وائي، چه د روضه مبارکې زیارت سره د درود شریف صیغې "الصلاة والسلام علیک یا رسول الله" وغیره یعنی د خطاب صیغې او حروف ندا وئیل، ددې ثبوت په احادیثو کښې نشته. آیا دزید دا وئیل صحیح دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولانا غلام مجتبیٰ دارالعلوم عثمانیه راولپارک لاهور ١٠ رمضان ١٤٠٩ھ

**الجواب:** دا د خطاب صیغې د حضرت ابن عمر رضی الله عنه د اثر نه مروی دی، رواه ابو حنیفه وایضا ان الخطاب جاز من البعید فی بعض الاحوال﴿٢﴾فکیف لا یجوز

---

(بقیه حاشیه) تعظیما وتقدیما لحقه علی حق رسوله کما یقتضی ترتیب حقوق الربوبیة والعبودیة والافضل ان تکون ای تلک الصلاة بمصلاه ﷺ ای فی مقامه بمحرابه...... فاذا فرغ من ذلک قصد التوجه الی القبر المقدس...... ثم توجه ای بالقلب والقالب مع رعایة غایة الادب فقام تجاه الوجه الشریف الخ.

(ارشاد الساری ٣٣٧ باب زیارة سید المرسلین ﷺ)

﴿١﴾ ابوحنیفة عن نافع عن ابن عمر قال من السنة ان تأتی قبر النبی ﷺ من قبل القبلة ویجعل ظهرک الی القبلة وتستقبل القبر بوجهک ثم تقول السلام علیک ایها النبی ورحمة الله وبرکاته، قال الشیخ محمد حسن السنبلی فی شرحه: وفی روایة عبد الرزاق ان ابن عمر کان اذا قدم من سفر اتی قبر النبی ﷺ فقال السلام علیک یا رسول الله.

(مسند امام ابی حنیفة مع شرحه تنسیق النظام ١٢٦ قبیل کتاب النکاح)

﴿٢﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: «یارسول الله گفتن» باراده استعانت واستغاثه یا باعتقاد حاضر وناظر کیدو سره منهی عنه دی اوددې اعتقاد نه بغیر صرف شوقاً او استلذاذاً ماذون فیه دی.

(امداد الفتاویٰ ٥:٣٨٥ کتاب العقائد والکلام)......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



من القریب لان سماع الموتی حق﴿١﴾. وهو الموفق

## د اسطوانه ابو لبابه سره دوه رکعته ادا کول مستحب دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د زیارت روضه مقدسې نه پس اسطوانه ابولبابه سره دوه رکعته ادا کول لازمي دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: خیر محمد ډی آئي خان. ٢٥/٢/١٩٨١

**الجواب:** مستحب دادی، چه د زیارت نه فارغیدو نه پس اسطوانه ابو لبابه سره دوه رکعته مونځ ادا کړي، په شرط ددې چه وخت مکروه نه وي، او نه چا ته تکلیف رسولو او نه خپله تکلیف کښې پریوتلو خطره وي، او د مغفرت دعا دې وکړي. (هندیه وغیره)﴿٢﴾، ﴿٣﴾ وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) وقال العلامة ابن عابدین: یستحب ان یقال عند سماع الاولیٰ من الشهادة صلی الله علیک یا رسول الله وعند الثانیة منها قرت عینی بک یارسول الله.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ١:٢٩٣ قبیل باب شروط الصلاة)

﴿١﴾ قال الشیخ خلیل احمد السهارنفوری: فان قلت ماوجه الجواب بقوله ان الله حرم علی الارض اجساد الانبیاء فان المانع من العرض والسماع هو الموت، وهو قائم قلت لاشک ان حفظ اجسادهم من ان ترم خرق للعادة المستمرة فکما ان الله تعالیٰ یحفظها منه فکذلک یمکن من العرض علیهم ومن الاستماع منهم صلوات الامة ویؤیده حدیث نبی الله حیٌ یرزق. (بذل المجهود فی حل ابی داؤد ٢:١٦٠ باب تفریع ابواب الجمعة)

﴿٢﴾ قال فی الهندیة: ثم یأتی اسطوانة ابی لبابة التی ربط نفسه فیها حتی تاب الله علیه وهی بین القبر والمنبر فیصلی رکعتین ویتوب الی الله ویدعو بماشاء.

(فتاویٰ عالمگیریه ١:٢٦٦ خاتمة فی زیارة قبر النبی ﷺ)

﴿٣﴾ قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلی: ثم یأتی اسطوانة ابی لبابة التی ربط نفسه فیها حتی تاب الله علیه وهی بین القبر والمنبر ویصلی......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## مساجد خمسه او څلویښت مونځونه په مسجد نبوی کښې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه مساجد خمسه چه په سرزمين عرب کښې دی، کوم ځائي دی، او په کوم کتاب کښې ددې ذکر دې، او په مسجد نبوی کښې د څلويښتو مونځونو مسئله په کوم کتاب کښې ذکر ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: محمد قاسم جلال اباد افغانستان. ۱۱۴رمضان ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** حواله د مساجد خمسه مې ونه موندله ﴿۱﴾ او حواله د څلويښتو

---

(بقیه حاشیه) رکعتین ویتوب الی الله تعالیٰ ویدعو بما شاء. **(الاختیار لتعلیل المختار ۱:۲۲۶ فصل فی زیارة قبر النبی علیه السلام)**

قال الملا علی قاری: **وجمیع سواری المسجد ای المصطفوی فی اصل بنائها یستحب الصلاة عندها لانها لا تخلو عن النظر النبوی الیها ای الی ما کان فی موضعها والا فهی لیست عینها بل غیرها وصلاة الصحابة عندها ای فی اماکنها وقربها.**

(ارشاد الساری ۳۴۴ قبیل فصل فی زیارة اهل البقیع)

﴿۱﴾ مسجد فتح یا مسجد احزاب دا جمات د جبل سلع د مغربی غاړې په اوچتې حصې واقع دې، او د خندق جنوب مغرب طرف ته قدرې جنوب طرف ته واقع دې، د غزوه خندق دوران کښې په دغه مقام کښې، کوم ځائي چه اوس مسجد الفتح دې، نبی کریم ﷺ مونځ ادا کړې وو، او درې ورځې ئې مسلسل یعنی د ګل، نهې، او چهارشنبې په ورځ د فتح او نصرت دعا فرمائیلې وه. پس د چهارشنبې په ورځ د دوؤ مونځونو په وخت کښې د نبی کریم ﷺ دعا قبوله شوه، او د طوفان او سیلۍ په وجه په حمله کونکې لښکر کښې غوغا خوره شوه، او هغوی بې امیده او بې طمعې واپس شول، په دغه مقام جمات جوړ کړې شو. د فتح او نصرت د دعا ګانو د قبولیت په وجه دا جمات په مسجد الفتح سره مشهور شو، او د غزوه احزاب په وجه مسجد الاحزاب او د اوچتوالی په وجه ورته مسجد الاعلی هم وئیلې شی.

د مسجد فتح جنوب طرف ته څلور جماتونه لږې لږې فاصلې سره نور هم شته دا جماتونه هم د مسجد فتح سره مساجد فتح نومیږی. او دې ته مساجد خمسه هم وئیلې شی، په هغو کښې د دریو جماتونو دا نومونه مشهور دی. مسجد سلمان الفارسی رضی الله عنه، مسجد علی بن ابی طالب رضی الله عنه... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



مونځونو په طبرانی اوسط او مسند امام احمد بن حنبل کښې د حضرت انس رضی الله عنه نه روایت دې ﴿۱﴾. وهو الموفق

## د مسجد قبا زیارت د هفتې په ورځ مستحب او په هغې کښې مونځ د عمرې برابر دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه بعضې خلق وائي، چه کله حاجی مدینه منورې ته لاړشی، نو د هفتې په ورځ د مسجد قبا زیارت او په هغې کښې مونځ کول ضروری دی، او په هغې کښې دوه رکعته نفل مونځ د عمرې برابر ثواب لری، آیا واقعی دا ضروری ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: ګل شیر داوړ وزیرستان

---

(بقیه حاشیه)... مسجد ابو بکر صدیق رضی الله عنه د څلورم جمات نوم مسجد فاطمه رضی الله عنها دې. او ددې مذکوره نومونو د وجه تسمیه هم څه سند نشته. اکثر زیارت کونکی مزدوران حاجیانو ته د زیارت کولو په وخت کښې ددې جماتونو تعارف په دې نومونو سره کوی، ځکه چه هغوی ددې جماتونو تاریخی نوم نه پیژنی. بیا هم مشهوره داده چه د غزوه خندق په وخت کښې د مسلمانانو لښکر په دې ځائي کښې خیمه زن وو، او دهغوی دپاره په دې ځائي کښې د مونځ دپاره څو ځایونه جوړ کړې شوی وو، او په دې څلورو ځایونو کښې رسول الله ﷺ د خندق په جنګ کښې مونځونه اداکړی دی. مسجد سلمان الفارسی رضی الله عنه د مسجد الفتح سره نزدې جنوب طرف ته واقع دې، مسجد علی ابن ابی طالب رضی الله عنه د مسجد سلمان الفارسی سره نزدې جنوب کښې واقع دې، مسجد ابوبکر صدیق رضی الله عنه د مسجد علی سره نزدې ددې په جنوب کښې لږ مشرق ته مائل واقع دې، لیکن ددې جماتونو په دې نومونو سره د منسوب کیدلو څه وجه متحقق شوې نه ده. او ددې جماتونو موجوده عمارتونه د عثمانی ترکی عهد دی. هغوی کیدې شی، چه سردوباره جوړ کړی وی، یا ئې په کښې ترمیم وغیره کړې وی. والله اعلم. (ماخوذ از زیارة الحرمین فصول وآثار وغیرها عمدة الفقه) اوس وئیلې شی. چه دې ټولو جماتونو لره ختم کړې شوې دی، او په دې ځائي یو لوئي جمات جوړ کړې شوې دې. از مرتب.

﴿۱﴾ **قال النبی علیه السلام: من صلی فی مسجدی اربعین صلاة لا تفوته صلاة کتبت له برائة من النار ونجاة یوم القیامة، رواه الطبرانی فی الاوسط عن انس بن مالک، ولم یروه عن انس الا نبیط تفرد به ابن ابی الرجال. (الفقه الاسلامی وادلته ۳:۲۳۹۷) وفی عمدة الفقه للزوار حسین رواه احمد فی مسنده والطبرانی فی معجمه الاوسط ورجاله ثقات. (عمدة الفقه ۴:۷۰۰ کتاب الحج)**

**الجواب:** د مسجد قبا زیارت هره ورځ جائز دي، او د هفتې په ورځ مستحب دي، (هندیه)﴿۱﴾ او په دې کښې دوه رکعته نفل مونځ د عمرې برابر ثواب لري. (رواه الترمذی)﴿۲﴾،﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ وفی الهندية: ويستحب ان يأتی مسجد قباء يوم السبت كذا ورد عنه عليه السلام ويدعو يا صريخ المستصرخين وياغياث المستغثين يا مفرج كرب المكروبين يا مجيب دعوة المضطرين صل علی محمد وآله واكشف كربی وحزنی كما كشفت عن رسولک كربه وحزنه فی هذا المقام...... قالوا ليس فی هذه المواقف دعاء مؤقت فبأی دعاء دعا جاز كذا فی قاضی خان.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۶۷ قبیل کتاب النکاح)

﴿۲﴾ عن ابو الابرد مولی بنی خطمة انه سمع اسيد بن ظهير الانصاری وكان من اصحاب النبی ﷺ قال الصلوة فی مسجد قبا كعمرة وفی الباب عن سهل بن حنيف.

(جامع الترمذی ۱:۴۳ باب ماجاء فی الصلوة فی مسجد قباء)

﴿۳﴾ قال الدكتور وهبة الزحيلی: يستحب زيارة المساجد الاخریٰ مثل مسجد قباء وهو فی الجنوب الغربی من المدينة وهو اول مسجد اسس فی المدينة وذلک يوم السبت ناويا التقرب بزيارته والصلاة فيه لحديث الترمذی (صلاة فی مسجد قباء كعمرة) وفی الصحيحين عن ابن عمر قال كان رسول الله ﷺ يأتی مسجد قباء راكبا وماشيا فيصلی فيه ركعتين، وفی رواية صحيحة كان يأتيه كل سبت ويدعو بما شاء من كشف الكرب والحزن الخ. (الفقه الاسلامی وادلته ۳:۲۴۰۵ زيارة اهم المعالم الاثرية فی المدينة)

.........





# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه څلورم جلد

# کتاب النکاح

## باب رسم النکاح وشرائطه وآدابه

.........

بسم الله الرحمن الرحيم

......: قال الله تعالى:......

فانكحوا ماطاب لكم من النساء

.....[النساء: ۳]........

..............

.....قال الله تعالى:.......

وانكحوا الايامى منكم والصالحين

من عبادكم وامائكم.

.....[النور: ۲۳].....



# كتاب النكاح

## باب رسم النكاح وشرائطه وآدابه

### په کوېږدن او باقاعده نکاح کښې فرق

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه دهغې تفصيل لاندې ليکلې شوې دې.

چه زما د لور وادۀ د زيد سره ؤشو، چه دهغې باقاعده د عائلى قوانينو مطابق رجسټرى وشوه، او سرکارى کاغذونه موجود دى. د نکاح نه څو ؤرځې پس مخالفينو دروغ پروپګنډه شروع کړه. چه زما د لور عقد نکاح د سکندر سره شوې وه، په دې دعوه باندې هغوى اتۀ دروغژن ګواهان هم پيش کړل، په دې ما د خپل کلي د مولوى صاحب په مشورې سره خپله لور د وادۀ نه نهه ؤرځې پس کور ته راوستله. مولوى صاحب مشوره راکړه، چه معامله جرګې ته پيش شوې ده، ددې وجه نه بهتره داده چه د معاملې فيصلې کيدلو پورې خپله جينۍ کور ته راوله. دهغې نه پس د خاندان درې افراد د جرګې دپاره مقرر شو، دريمګړو بيانونه واخستل، بيا سکندر دريمګړو ته ووئيل، چه که دا سړې ماته دوه زره روپۍ راکړى، نو زۀ د خپل دعوى نه دستبرداره کيږم، دريمګړو دې لره زياتې ؤګڼړو، او فيصله ئې منظوره کړه، اخلاقى جرم دا وو، چه ما اقرار وکړو، او اوس هم کووم، چه زما لور د شپږو کالو وه او سکندر د يو کال وو، او دسکندر پلار زما لور د منسوب کولو خواهش کړې وو، او دا خواهش ما په واضحه لفظونو سره نه قبول کړې وو، او نه مې انکار کړې وو، اونه باقاعده کوېږدن شوې وه. او نه څۀ رواج شوې وو، بلکه د وخت تيريدو سره ماته معلومه شوه، چه دهغه اراده نشته. ددې وجه نه ما

مناسب رشته ملاویدو سره د زید سره نکاح وکړه. او باقاعده نکاح وشوه، اوس سوال دادي، چه آیا د زید سره دا نکاح صحیح شوې ده، یا دا د سکندر حق دي؟ بینوا توجروا

المستفتي: انار ګل پنډی ګیپ کیملپور. ۲۹/۲/۱۹۷۲

**الجواب:** که تا د ګواهانو په مخکښ ایجاب او قبول نه وی کړې، نو دا معامله خطبه ده، نکاح نه ده. لهذا ددې جینۍ نکاح د زید سره بیشکه اوبې شبهې صحیح ده.

قال فی المرقاة لاکن ان تزوج الثانی تلک المرأة بغیر اذن الاول صح النکاح الخ (۲۱۱:۶) ﴿۱﴾ وفی تنقیح فتاویٰ الحامدیة (۱:۳۱) لا تکون الخطبة واقعة موقع عقد النکاح اصلا﴿۲﴾.

که تا د ګواهانو په مخکښ دا الفاظ وئیلي وی، چه ما فلانکۍ فلانکی ته په نکاح سره ورکړه، اوپه دې مجلس کښ بل طرف ته وئیلي شوې وی، چه مونږ د فلانکی دپاره قبوله کړه، نو دا نکاح شرعی ده، ددې جینۍ بل ځائي کښ نکاح کالعدم ده. ﴿۳﴾ وهو الموفق

## د نکاح د پاره د وصفدارې ښځې انتخاب او د وادهٔ شرعی طریقه

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه په یوه ښځه کښ کوم صفتونه او خوبۍ پکار دی، چه دهغې په وجه سړې دهغې سره د نکاح کولو خواهش وکړی،او د وادهٔ شرعی حنفی طریقه څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: شهزاد ګل شیوه. ۸/۴/۱۹۷۵

﴿۱﴾ (مرقاة المفاتیح ۶: ۲۱۱ باب اعلان النکاح والخطبة والشرط الفصل الاول)

﴿۲﴾ (تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱: ۳۱ قبیل فوائد ذکرها المؤلف مفرقة)

﴿۳﴾ قال عبد الله بن مودود الموصلی: ورکن النکاح الایجاب والقبول وینعقد بلفظین ماضیین...... ولا ینعقدنکاح المسلمین الا بحضور رجلین او رجل وامرأتین الخ. (الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۰۹ کتاب النکاح)



**الجواب:** په حدیث شریف کښ راغلی دی، چه د ښځې سره د جمال، مال، حسب او دین په وجه نکاح کولې شی، لیکن د مسلمان دپاره مناسب دادی، چه د ددینداری لحاظ ؤساتی. (متفق علیه)﴿۱﴾ او د باکرې﴿۲﴾، د خاوند سره مینه کونکی او زیات اولاد راؤړونکی ښځې سره نکاح کول پکار دی﴿۳﴾ نکاح د وادهٔ نه مخکښ کول پکار ده.د بلوغ نه پس دې وادهٔ وکړی،د رسم رواج نه بچ کیدل پکاردی،اود وادهٔ نه پس دې ولیمه وکړی﴿۴﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه عن النبی ﷺ قال: تنکح المرأة لاربع: لمالها، ولحسبها، ولجمالها، ولدینها، فاظفر بذات الدین تربت یداک متفق علیه. رواه البخاری (۵۰۹۰) ومسلم (الرضاع ۵۳، ۵۴) وابوداؤد (۲: ۴۷) والنسائی (۶: ۶۸) وابن ماجه (۱۸۵۸) والبیهقی (۷: ۷۹) واحمد (۲: ۴۲۸) والدارقطنی (۳: ۳۰۳). (بلوغ المرام ۳۲۵ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ قال رسول الله ﷺ علیکم بالابکار فانهن اعذب افواها وانتق ارحاما وارضی بالیسیر رواه ابن ماجة مرسلا. (مشکوٰة المصابیح ۲: ۲۶۸ کتاب النکاح الفصل الثانی)

﴿۳﴾ عن معقل بن یسار قال قال رسول الله ﷺ تزوجوا الودود الولود فانی مکاثر بکم الامم رواه ابوداؤد والنسائی. (مشکوٰة المصابیح ۲: ۲۶۷ کتاب النکاح الفصل الثانی)

﴿۴﴾ وفی الهندیة: وولیمة العرس سنة وفیها مثوبة عظیمة وهی اذا بنی الرجل بامرأته ینبغی ان یدعو الجیران والاقرباء والاصدقاء ویذبح لهم ویصنع لهم طعاما واذا اتخذ ینبغی لهم ان یجیبوا. (فتاویٰ عالمګیریه ۵: ۳۴۳ الباب الثانی عشر فی الهدایا والضیافات)

وقال الملا علی قاری: (قال رسول الله ﷺ شر الطعام طعام الولیمة) لانه کان من عادتهم مراعاة الاغنیاء فیها وتخصیصهم بالدعوة وایثارهم وتطییب الطعام لهم ورفع مجالسهم وتقدیمهم وغیر ذلک مما هو الغالب فی الولائم...... والحاصل انه لیس شر الطعام لذاته بل لما یعرض له غالبا من سوء حالاته وصفاته.

(مرقاة المفاتیح شرح المشکوٰة ۶: ۲۵۳ باب الولیمة)

## بغير د څه وجه نه لونړو لره په کور کښې ساتل او نه ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه بغير د څه وجه شرعی نه کوم خلق چه خپلې لونړه يا خويندې په کور کښې ساتی او د ميراث په وجه ئې نه وادهٔ کوی، دهغوی گناه کبيره او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: عزيز الرحمن بازارگی بنير. ۳ رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا سړي ظالم دي او ډير زر په فتنه کښې مبتلاء کيدونکی دي. ﴿۱﴾ قال رسول الله ﷺ: من ولد له ولد فليحسن اسمه وادبه فاذا بلغ فليزوجه فان بلغ ولم يزوجه فاصاب اثما فانما اثمه على ابيه، رواه البيهقى فى شعب الايمان ﴿۲﴾. وهو الموفق

## جينۍ ته جامې اغوستول اوخپلو کښې ډوډۍ ورکول.او دعا کول نکاح نه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړي رشته ؤغوختله، د جينۍ والد ؤوئيل چه زهٔ به ستاسو نه دوه کناله زمکه ليکلې اخلم، که دا شرط منظور وی، نو د رواج مطابق کويژدن وکړه، دهغې نه پس غوختونکی يوه جامه راوړه او جينۍ ته ئې واغوستوله، او دې سره د دواړو طرف نه رشته دار هم يوځائي شو، او ډوډۍ ئې وخوړله او دعا ئې وکړه، دهغې وخت د دوؤ گواهانو بيان دې، چه زمونږ په مخکښې صرف دومره خبره شوې وه، چه د مشرې جينۍ رشته به تاته درکړو، اوس په طرفينو کښې ؤراني پيدا شوې دې، او جينۍ والو انکار کړې دې، او د هلک پلار وائي، چه نکاح شوې وه، مهربانی وکړئ، راته ؤوايئ چه دا نکاح شوې ده او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: چوهدری علی مرد کوهاله ايبټ آباد.

﴿۱﴾ عن ابى هريرة قال: قال رسول الله ﷺ اذا خطب اليكم من ترضون دينه وخلقه فزوجوه ان لا تفعلوه تكن فتنة فى الارض وفساد عريض، رواه الترمذى. (مشكوٰة المصابيح ۲:۲۶۷ كتاب النكاح الفصل الاول)

﴿۲﴾ (مشكوٰة المصابيح ۱:۲۷۱ باب الولى فى النكاح الفصل الثالث)



**الجواب:** په دې صورت کښې صرف خطبه موجوده شوې ده، کومه چه نکاح شرعی نه ده، لهذا دې جينۍ لره بل ځائي په نکاح سره ورکول جائز دی، اگر چه مکروه دی.

فى المرقاة: لكن ان تزوج الثانى تلك المرأة بغير اذن الاول صح النكاح ولكن يأثم ﴿۱﴾ (۶:۲۱۱) وفى تنقيح الفتاوىٰ الحامدية لا تكون الخطبة واقعة موقع النكاح اصلا (۱:۳۱) ﴿۲﴾. وهو الموفق

## په نکاح کښې څه نيت کول پکار دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه په نکاح کښې څه نيت کول پکار دی؟ بينوا توجروا

المستفتی: مفقود الخبر

**الجواب:** ينوى اتباع السنة وتحصين الفرج وتكثير الامة. ﴿۳﴾ وهو الموفق

## دنکاح نه مخکښې ايمان مفصل اومجمل اوروُل نه مطلوب دی اونه ممنوع

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه د نکاح نه

﴿۱﴾ (مرقاة شرح المشكوٰة ۶:۲۱۱ باب اعلان النكاح الفصل الاول)

﴿۲﴾ تنقيح الفتاوىٰ الحامدية ۱:۳۱ قبيل فوائد ذكرها المؤلف مفرقة)

﴿۳﴾ عن انس بن مالك ان النبى ﷺ حمد الله واثنىٰ عليه وقال: لكنى انا اصلى، وانام، واصوم وافطر واتزوج النساء، فمن رغب عن سنتى فليس منى، (متفق عليه) وعن عبد الله بن مسعود رضى الله عنه قال: قال لنا رسول الله ﷺ يا معشر الشباب من استطاع منكم الباءة فليتزوج فانه اغض للبصر واحصن للفرج، ومن لم يستطيع فعليه بالصوم فانه له وجاء (متفق عليه) وعن انس بن مالك قال: كان رسول الله ﷺ يقول: تزوجوا الولود الودود، فانى مكاثر بكم الانبياء يوم القيامة (رواه احمد وصححه ابن حبان).

(بلوغ المرام من ادلة الاحكام ۳۲۵ كتاب النكاح)

مخکښې تجدید ایمان کول او ایمان مجمل او مفصل اورؤلو وغیره څه حکم لري؟ بدعت خو نه دي؟ بینوا توجروا

المستفتی : عبدالغنی ډوبل سنی بنګ راولپنډی. ۲۳ ذی الحجۀ ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** د نکاح نه مخکښې قرآن مجید اورؤل یا ایمان مجمل وغیره اورؤل نه مطلوب دی او نه ممنوع، لهذا دې ته به مباح وئیلې شی، نه بدعت یا سنت، البته د نکاح نه مخکښې د ایمان تلقین د مصلحت نه خالی نه دې. وهو تیقن الشرط من الایمان فافهم ﴿۱﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال الشیخ العلامه عبد العزیز المحدث دهلوی: شرعا د مومن او کافر په مینځ کښې نکاح نه منعقد کیږی، او دا ظاهره ده چه په ناپوهی کښې یا په خطا سره د کفر کلمه اکثر صادریږی، او خلقو ته ددې خبرې پته نه وی، ددې وجه علماء متاخرین چه محتاط دی، احتیاطا داسې کوی، چه دایمان مجمل او ایمان مفصل صفت د زوجینو په مخکښې وائې، او په هغوی باندې وائی. دې دپاره چه نکاح په حالت داسلام کښې منعقد شی، علماء متاخرین چه احتیاطا دا کار په عقد نکاح کښې زیات کړې دې، دا فی الواقع د برکت نه خالی نه دې، کومو خلقو ته چه د اسلام پته نشته. هغه خلق ددې د مزې نه څه خبر دی، آیا دا معلومه نه ده، چه مړو ته تلقین کول. د اکثرو علماؤ په نزد جائز دی، ددې کار سبب د هغې خلقو په نزد څه دې، ځکه چه د ټولو ډلو د اسلام په دې اتفاق دې، چه ایمان بعد البعث صحیح نه دې. د بعث نه مراد انتقال روحانی دې. (فتاوی عزیزی ۵۴۲ مسائل نکاح)

وقال الشیخ عزیز الرحمن الدیوبندی: د اسلام او ایمان نه ناواقفه خلقو ته صرف دا تعلیم ورکولې شی، چه ؤوایه الله یو دې. محمد ﷺ د الله تعالی رشتونې رسول دې، او دې لره په زړۀ کښې رښتیا ؤګنړه، پس په دې سره سړې مومن او مسلمان کیږی، ددې اقرار اخستلونه پس هغه سره نکاح صحیح ده. او دا ظاهره ده، چه د تصدیق قلبی نه بغیر ایمان نه حاصلیږی، لیکن ناپوهو او جاهلانو باندې صرف دا وئیل پکار دی، کوم چه مخکښې تیر شو، دهغه نه دا تپوس پکار نه دې، چه ایمان څه څیز دې، او تصدیق څه څیز دې، او ایمان مفصل کوم یو دې، او ایمان مجمل کوم یو دې، غرض دا چه داسې خبره وکړې شی، چه هغې سره هغه مسلمان جوړ کړې شی، نه داچه دهغه نه تحقیقات کولو سره کافر جوړ کړې شی، (بهرحال چه کله هنده خپل ځان ته مسلمانه وائې، او په حقیقت کښې ده هم مسلمانه نو هغې سره نکاح صحیح ده، د تعلیم کمې دې، لهذا هغې باندې کلمه وغیره احتیاطا وئیل پکاردی. (فتاوی دارالعلوم دیوبند ۷:۱۴۷ دوسرا باب متعلقات نکاح وغیره)



## د نکاح په وخت د هلک اوجینۍ نه شپږ کلمې او ایمان مجمل وغیره اورول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د نکاح تړلو په وخت کښې نکاح خوان د هلک او جینۍ نه شپږ کلمې او ایمان مجمل او ایمان مفصل وغیره اوروی، بعضې کندذهنه خلق هغه الفاظ په ښه طریقې سره نشی ادا کولې، آیا دا نکاح شرعا صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی : عبد الرشید جهلم. ۳/۱۱/۱۹۷۴

**الجواب:** د نکاح دارومدار د ګواهانو په مخکښې په ایجاب او قبول دې﴿۱﴾ نۀ په شپږو کلمو وئیلو باندې، لهذا داسې نکاح جائز ده. وهو الموفق

## د نکاح خطبه نه وئیلو سره په نکاح کښې فساد نه راځی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې که په یو نکاح کښې ایجاب او قبول ؤشی، او ټول کارونه پوره شی، البته خطبه د نکاح ؤنه وئیلې شی، ایا دا نکاح فاسده ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی : مولوی نور الحسن موهړه بیروت هزاره.

**الجواب:** د نکاح نه مخکښې خطبه وئیل مستحب دی﴿۲﴾، ددې وجه نه ددې په نشتوالی سره فساد د نکاح لازم نه راځی. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابوالبرکات عبد الله النسفی: النکاح هو عقد...... ینعقد بایجاب وقبول...... عند حرین او حر وحرتین عاقلین بالغین مسلمین.

(کنز الدقائق ۱:۹۷ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: ویندب اعلانه وتقدیم خطبة وکونه فی مسجد یوم جمعة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۸۲ کتاب النکاح)

## د نکاح خطبه په مخکښې لوستلې کیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ علاقه کښې د نکاح او ایجاب وقبول نه پس خطبه لوستلې شی، او بعضې علماء مخکښې خطبه لولی او بیا ایجاب او قبول کوی. په دې کښې کوم عمل صحیح دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: گوهررحمن کاټیلی سوات ۳/۱۰/۱۹۷۴

**الجواب:** د نکاح خطبه د عقد نه مخکښې لوستل مستحب دی.

لما رواه الدارمی﴿۱﴾ وفی الدر المختار ویندب اعلانه وتقدیم خطبة﴿۲﴾ فتاخیرها عن العقد مخالفة الحدیث والفقه. وهو الموفق

## عقد نکاح په جمات کښې افضل دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه نکاح په جمات کښې تړل بهتر دی، او که کور کښې؟ هرکله چه بعضې خلق جمات ته تللو نه انکار کوی، دې باره کښې د شریعت محمدی څه حکم دې؟

المستفتی: عبد الرشید جهلم. ۸ ذی قعده ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** که د منکراتو خطره نه وی، نو په جمات کښې عقدنکاح افضله ده﴿۳﴾

---

﴿۱﴾ عن عبد الله قال علمنا رسول الله ﷺ خطبة الحاجة الحمد لله نحمده ونستعینه ونستغفره...... ثم یتکلم بحاجته.

(سنن الدارمی ۲:۱۹۱ باب فی خطبة النکاح)

﴿۲﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۸۴ کتاب النکاح)

﴿۳﴾ قال الملا علی قاری: قوله (واجعلوه فی المساجد) وهو اما لانه ادعی الی الاعلان او لحصول برکة المکان وینبغی ان یراعی فیه ایضا فضیلة......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



لحدیث رواه الترمذی، اعلنوا هذا النکاح واجعلوه فی المساجد واضربوا علیه بالدفوف.﴿۱﴾

## حدیث ``لا نکاح بین العیدین،، ثابت نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د عامو خلقو خیال دې، چه د اخترونو مینځ کښې نکاح صحیح نه ده، او په دې دا حدیث: لا نکاح بین العیدین پیش کوی. ددې مسئله او حدیث حقیقت څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد القیوم کامونکی گوجرانواله. ۲۷ رمضان ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** د دوؤ اخترونو مینځ کښې نکاح بغیر د شک او شبهې نه او بغیر د کراهت نه جائزده. د نبی کریم ﷺ نکاح مبارک د حضرت عائشې رضی الله عنها سره هم په دې میاشت کښې شوې وه، او(لا نکاح بین العیدین) اول خو حدیث نه دې، یا ددې نه مراد جمعه او صلاة العیددې، او دا واقعه جزئیه ده، نه کلیه.

**کما فی الشامیة ۲:۲۸۴ وتاؤیل قوله علیه السلام لا نکاح بین العیدین ان صح انه علیه السلام کان رجع عن صلوٰة العید فی اقصر ایام الشتاء یوم الجمعة فقاله حتی لا یفوته الروح فی الوقت الافضل الی الجمعة﴿۲﴾. وهو الموفق**

---

(بقیه حاشیه)الزمان لیکون نورا علی نور وسرورا علی سرور قال ابن الهمام یستحب مباشرة عقد النکاح فی المسجد لکونه عبادة وکونه فی یوم الجمعة وهو اما تفاؤلا للاجتماع او توقع زیادة الثواب اولانه یحصل به کمال الاعلان.

(مرقاة المفاتیح ۶:۲۱۷ باب اعلان النکاح الفصل الثانی)

﴿۱﴾ (سنن الترمذی ۱:۱۲۹ باب ماجاء فی اعلان النکاح)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۸۴ کتاب النکاح تحت قوله فی مسجد یوم جمعة)

## د نکاح تړلو حقدار څوک دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دي مسئلې باره کښې چه په يو کلي کښې امام او قاضي مقرر وي، ددې امام په موجودګۍ کښې دهغه د اجازت نه بغير بل سړي نکاح تړلې شي او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد يعقوب آزاد کشمير ۲/۷/۱۹۷۴

**الجواب:** د طرفينو په اجازت سره هر سړي نکاح تړلې شي، شرعا په دې کښې څه ممانعت نشته، البته د امام د اجازت نه بغير نکاح تړلو کښې د بې انتظامۍ خطره موجوده ده.﴿۱﴾ وهو الموفق

## د زاني او مزنيه نکاح تړلو والا عالم حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دي مسئلې باره کښې چه يو امام په ناخبرۍ کښې د زاني او مزنيې نکاح ؤتړوله، روستو بيا معلومه شوه. اوس بعضې خلق دهغه نه خفه دي، چه هغه د زاني او مزنيه نکاح تړلې ده، او امام صاحب وائي، چه ماته ددې څه خبر نه وو، آيا په دې نکاح خوان څه زور نه شته؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيدرحيم خان هزار مری. ۳۱/۱۲/۱۹۸۴

**الجواب:** د زاني او مزنيه چه هرکله خپلو کښې نکاح صحيح ده، نو تړلو والا باندې د زورنې څه وجه نشته.

فی الدرالمختار وصح نکاح حبلی من زنا...... **ولو نکحها الزانی حل له﴿۲﴾.**

وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال الشيخ عزيز الرحمٰن الديوبندي: نکاح خواني د يو خاص خاندان يا د يو خاص سړي حق شرعا نه دي، څوک چه هم نکاح وتړي نو نکاح منعقد کيږي، انتظامي خبره بله ده، څنګه چه حاکمان مصلحت ګڼړي نو انتظام د کوي. (فتاوی دارالعلوم ديوبند ۱۶۳/۷ مسائل متعلقات نکاح)

﴿۲﴾ (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۳۱۷ قبيل مطلب فيما لو زوج المولىٰ امته)



## د شيعه نکاح خوان کيدل او روستو بيا د تجديد نکاح کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دي مسئلې باره کښې چه زيد کله د خپل ځوی د نکاح دپاره د بکر کلي ته سره د ملګرو لاړو، نو د نکاح په وخت معلومه شوه چه نکاح خوان مولوی شيعه دې، هلک چه کله اعتراض وکړو، نوجينۍ والو ؤوئيل چه تاسو کله خپل کورته لاړشئ، نوپه سني مولانا باندې د نکاح تجديد وکړئ، ځکه چه دلته دا مسئله اوچتول، د مصلحت نه خلاف دی. ددې وجه زيد چه کله واپس راغلو، نو دخپل جمات امام چه سني دې، ئې راؤغوختلو او د نکاح تجديد ئې وکړه. په تجديد کښې حق مهر وغيره ټول هرڅه د مخکښې پشان کيخودلې شو، اوس که يو سړې په دې تجديد نکاح کونکي باندې دا اعتراض وکړي، چه دا نکاح دې ولې ؤتړله، نو ددې شرعي حيثيت څه دې؟ او دا تجديد نکاح کول څنګه دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: حافظ بشيراحمد نعماني ګوجرانواله. ۱۹رمضان ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د نکاح خوان حيثيت صرف د معلم دې، نه د شاهد، لهذا دا اوله نکاح په حقيقت کښې هم نکاح ده، او دويمه نکاح افضل او مستحب ده، ناجائز نه ده.

**کما فی الدرالمختار ۳: ۲۰ ولذا استحسنوا التجديد عند الزفاف﴿۱﴾ وبمعناه فی الهندية فليراجع﴿۲﴾. وهوالموفق**

## په نکاح تړلو د اجرت اخستلو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دي مسئلې باره کښې چه په نکاح تړلو باندې اجرت اخستل جائز دی او که؟ او په قرون ثلاثه کښې په نکاح تړلو باندې اجرت اخستلې کيدو او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتي: ګل زمان. ۲۹/۱۲/۱۹۷۵

---

﴿۱﴾ (الدرالمختار هامش ردالمحتار ۲: ۳۲۴ باب الولی)

﴿۲﴾ وفی الهندية: واذا زوج غير الاب والجد الصغيرة......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

**الجواب:** د نکاح خوان اجرت انعام دي، کما لا یخفی علی من راجع الی العرف او که اجرت وی بیاهم جائز دی، لکونها اجرة علی تعلیم الایجاب والقبول وتلقینها(۱). وهو الموفق

---

**(بقیه حاشیه) فالاحتیاط ان یعقد مرتین مرة بمهر مسمی ومرة بغیر مهر مسمی لامرین احدهما الخ. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)**

(۱) شاه اشرف علی تهانوی رحمه الله په بوادر النوادر کښې د الصراح فی اجرة النکاح په نوم سره یوه مقاله لیکلې ده، چه په هغې کښې ئې په حواله د مسائل اربعین از مولانا محمد اسحاق دهلوی رحمه الله یوه فتوی نقل کړې ده. فرمائی:

مسئله: بعد نکاح بقاضی ووکیل وشاهدان که از طرف عروس مې آیند بخوشی خود بدون مطالبه شان چیزې دادن جائز است که نه؟ جواب یعنی دادن این مرد مان بدون مطالبه و جبراز طرف ایشان مباح است واگر جبر کنند وخواه مخواه بکد واصرار طلب نمایند بگیر ند پس مباح نیست چنانچه در کتاب خزانة الروایات مرقوم است.

**ومما سنه القضاة فی دار الاسلام ظلم صریح وهو ان یاخلوا من الانکحة شیئا ثم یجیزون اولیاء الزوج والزوجة بالمناکحة فانهم مالم یرضوا بشیئ من اولیاء هما لم یجیز وبذلک فانه حرام للقاضی والمناکح.**

ددې فتوې نقل کولو نه پس حضرت تهانوی رحمه الله ددې څلور قسمونه جوړ کړې دی، چه کوم څیز چاته ورکولې شی، هغه یا په عوض کښې ورکولې شی یا بغیر د عوض نه، که په عوض کښې ورکولې شی، نو هغه به شرعا د مال متقوم په بدله کښې ورکولې شی، یا غیر متقوم او غیر قابل عوض په مقابله کښې به ورکولې شی. پس که اول وی نو هغې ته اجر او ثمن وئیلې شی، او که دویم دې، نو دا رشوت یا سود دې، او که بغیر د عوض نه ورکولې شی، نو هغه هم د دوؤ حالتونو نه خالی نه دې، یا خوبه په خوښه سره ورکولې شی، نو دا هدیه او تحفه ده، او یابه په ناخوښه سره ورکولې شی، نو دا ظلم او جبر فی التبرع کښې داخل دې.

دا د حضرت تهانوی رحمه الله د تقسیم خلاصه ده. او که غور وکړې شی، نو زمونږ په وطن کښې چه کوم عرف دې، او د جماتونو امامانو ته په نکاح تړلو کښې چه څه ورکولې شی، نو ظاهره داده چه دا اعطاء بلا عوض ده، او بیا عوام هم د خپل خپل حیثیت مطابق کم او زیات ورکوی، ددې نه معلومه شوه چه دا هدیه، عطیه او انعام دې، نه په دې کښې جبر وی، او نه د زوج یا زوجې اولیاء په دې کښې څه تنګی محسوسوی، او که دې لره د نکاح خوان ددې عمل اجرت وګڼړلې شی، اګر چه په دې د اجارې د صحت لوازم صادق نه راځی، ..........

(بقیه حاشیه په راروانه حصه)



## که باقاعده ایجاب او قبول نه وی او شهادت نه وی نودا نکاح شوې نه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه نیکه د نابالغه نوسې د نکاح پروګرام د یو سړې سره جوړ کړو. دې سړې لره مخکښې کښینولې شو، او یوه ښځه په مجلس کښې موجوده وه، نیکه د نابالغې د طرف نه ایجاب وکړو، لیکن دې سړی قبول و کړو، اوس نیکه مړ شوې دې، او جینۍ هم بالغه شوې ده، او د نیکه په نکاح راضی نه ده، او قبلونکی هم قبوله کړې نه ده، اوس شرعی حکم څه دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبد الحق برهان کیمل پور

---

(بقیه حاشیه).... لیکن که بالفرض کوم خلق چه دې ته اجاره وائي، نو بیاهم جائز ده، چه دا د ایجاب او قبول په تعلیم او تلقین باندې اجرت دې.

**ویجوز بالاتفاق الاستئجار علی تعلیم اللغة والادب والحساب والخط والفقه والحدیث ونحوها وبناء المساجد والقناطر والرباطات لانها لیست بفرض ولا بواجب وقد تقع قربة تارة وتارة غیر قربة،**

او د "الصراح فی اجرة النکاح" د تحقیق نه معلومیږی، چه کوم قاضی وغیره چه ددې دپاره مقرر دی، او باقاعده تنخواه دار دی. که هغه ته څه ورنکړې شی، نو بیا هغه د نکاح اجازت نه ورکوی، نو د خزانة الروایات قول هم په دې قسم خلقو باندې صادق راځی. چه دا کار ددوی ذمه واری ده، او باوجود ددې نه په ظلم سره وصولی کوی. لهذا د خزانة الروایات قول په عام امامانو د جماتونو باندې صادق نه راځی. چه هغوی نه ددې تنخواه اخلی، او نه د حکومت نه څه معاوضه ملاویږی، په خلاف د قاضی نه، او فقهاؤ تصریح کړې ده، چه په کوم قاضی د نکاح مباشرت لازم وی، لکه نکاح د وړوکو هلکانو یا جینکو، نو هغه لره په دې نکاح څه اخستل جائز نه دی. او دهغې نه علاوه ورله جائز دی. **کما قال القاضی محمد بن الحسینی: ولا یحل للقاضی اخذ شیئ علی النکاح ان کان نکاحا یجب علیه مباشرته کنکاح الصغائر وفی غیره یحل.**

**(فتاویٰ انقرویه ۱:۳۵۱ فصل فی اجرة المشخص الخ)**

**وقال العلامه مفتی کفایت الله الدهلوی:** نکاح تړونکی ته د نکاح خوانۍ اجرت ورکول جائز دی، او که نکاح خوان د مخکښې نه اجرت مقرر کړی او نکاح ؤتړی، نو دا هم جائز ده، او هغه لره د مقرر شوې اجرت جبرا وصولولو حق دې. (کفایت المفتی ۵:۱۵۴ کتاب النکاح).......... ازمرتب

**الجواب:** بشرط صدق و ثبوت دا معامله د نکاح صحیح نه ده، دې جینۍ لره بل ځائې کښې په نکاح سره ورکول صحیح دی.

**لان رکن النکاح هو الایجاب والقبول والشرط هی الشهادة ﴿۱﴾ وفی الصورة المسئولة لا یوجد القبول ولا الشرط ولان عقد الابعد یتوقف علی اجازة الاقرب ولم توجد. (ماخوذ از هندیه ۱: ۲۸۴ ﴿۲﴾ والدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۳۲ فلیراجع) ﴿۳﴾. وهوالموفق**

## نکاح باقاعده د ایجاب او قبول نوم دې، نه د شهرت

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړي سره ایجاب او قبول نه دې شوې، صرف د نکاح مشهورتیا په کلي کښې شوې ده، آیا په دې سره نکاح منعقد کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتي: سید رسول محکمه زراعت کوهاټ. ۷/۱۱/۱۹۷۴

**الجواب:** هرکله چه د ګواهانو په مخکښې باقاعده ایجاب او قبول نه وی شوې نو نکاح شرعی به موجوده نه وی، اګر که شهرت شوې وی. لعدم الرکن والشرط ﴿۴﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال الشیخ عبد الغني الغنیمي المیداني: وهو ینعقد بالایجاب من احد المتعاقدین والقبول من الآخر ...... ولا ینعقد نکاح المسلمین بصیغة المثنی الا بحضور شاهدین حرین بالغین الخ. (اللباب فی شرح الکتاب ۳: ۱۴۰ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: ولو زوجها الا بعد حال قیام الاقرب حتی توقف علی اجازة الاقرب. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفي: فلو زوج الابعد حال قیام الاقرب توقف علی اجازته، قال ابن عابدین: ای حضوره وهو من اهل الولایة الخ. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۴۱ باب الولی)

﴿۴﴾ قال الدکتور وهبة الزحیلي: ورکن الزواج عند الحنفیة الایجاب والقبول فقط...... واما الشهود فشرط ایضا الخ. (الفقه الاسلامی وادلته ۹: ۶۵۲۱ المبحث الثانی ارکان الزواج)



## د نابالغ او نابالغې د ایجاب او قبول مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه نابالغ هلک او نابالغه جینۍ، هرکله چه د والد اجازت دلالة موجود وی، نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتي: عمران الله چارسده. ۱۹ رجب ۱۳۹۷ھ

**الجواب:** د نابالغ او نابالغې په خپله ایجاب او قبول کولو سره نکاح منعقد کیږي، هرکله چه مخکښې اجازت وی. یا ددې نه پس ورته اجازت وُشی.

**کما فی تنقیح الفتاویٰ ۲: ۱۶۶ ان الصبی المحجور لو تصرف تصرفا یجوز علیه لو فعله ولیه فی صغره کبیع وشراء وتزوج وتزویج امته وکتابة قنه ونحوه فاذا فعله الصبی بنفسه یتوقف علی اجازة ولیه مادام صبیا ﴿۱﴾ وفی الهدایة ۳: ۳۷۱ واذا اذن ولی الصبی للصبی فی التجارة فهو فی البیع والشراء وکذا کل ما هو دائر بین النفع والضرر کالتزوج کالعبد الماذون ﴿۲﴾ وبمعناه فی ردالمحتار ﴿۳﴾، وفی الهدایة ۳: ۳۷۲ ویصیر (الصبی) ماذونا بالسکوت کما فی العبد ﴿۴﴾**

---

﴿۱﴾ (تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۲: ۱۶۶ کتاب الودیعة ومطالبه)

﴿۲﴾ (هدایه ۳: ۳۷۱ کتاب الماذون فصل واذا اذن ولی الخ)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله یدور بین نفع وضر) اما النفع المحض فیصح کقبوله الهبة والصدقة وکذا اذا آجر نفسه ومضی علی ذلک العمل وجبت الاجرة استحسانا ویصح قبول بدل الخلع من العبد المحجور بغیر اذن المولیٰ لانه نفع محض وتصح عبارة الصبی فی مال غیره وطلاقه وعتاقه اذا کان وکیلا.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵: ۱۰۱ کتاب الحجر)

﴿۴﴾ (هدایه ۳: ۳۷۲ قبیل کتاب الغصب)

وبمعناه فی ردالمحتار ۵:۱۲۵ ﴿۱﴾ وشرح المجلة ۵۴۳ ﴿۲﴾. وهو الموفق

## مجنون د ایجاب او قبول د پاره اهل نه دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د زید دماغی توازن خراب دې، او اخوا دیخوا ګرځی راګرځی. او د بې حیایئ وغیره خبرې کوی، تردې پورې چه وائي، چه زۀ خدائي یم. او زمکه اسمان ما پیدا کړی دی، په دې حالت کښې زید یو څو کسانو لره راجمع کړل. او د خپلې لور چه نابالغه وه. نکاح ئې وکړه. اوس زید صحت مند شوې دې. او د خپلې لور په نکاح باندې پښیمانه دې. آیا د لیونتوب په وجه دغه دا نکاح منعقد شوې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ظاهر شاه دارالعلوم قاسمیه شعبه پیښور

**الجواب:** که د عقد نکاح په وخت د والد دماغی توازن خراب کیدل یقینی او مبرهن وو، نو دا نکاح به کالعدم او باطل شمارلې شی. کما فی التنویر بشرط حریة وتکلیف واسلام﴿۴﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولو اشتریٰ العبد وباع ساکتا عن اذنه وحجره کان ماذونا. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵:۱۲۱ کتاب الماذون)

﴿۲﴾ قال العلامة محمد خالد الآتاسی: فان اذن لهما الولی فهما فی شراء وبیع کعبد ماذون فی کل احکامه فیصیر ماذونا بالسکوت. (شرح المجلة للآتاسی ۳:۵۳۰ الماده : ۹۷۲)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن نجیم: (قوله ولا ولایة لعبد وصغیر ومجنون) لانه لا ولایة لهم علی انفسهم فاولیٰ ان لا یثبت علی غیرهم ولان هذه ولایة نظریة ولا نظر فی التفویض الی هؤلاء...... واراد بالمجنون المطبق وهو شهر وعلیه الفتویٰ وفی فتح القدیر لا یحتاج الی تقییده به لانه لا یزوج حال جنونه مطبقا او غیر مطبق ویزوج حالة افاقته عن جنون مطبق او غیر مطبق لکن المعنی انه اذا کان مطبقا تسلب ولایته فتزوج ولا ینتظر افاقته وغیر المطبق الولایة ثابتة له فلا تزوج وتنتظر افاقته کالنائم الخ. (البحر الرائق ۳:۱۲۳ باب الاولیاء والاکفاء)

﴿۴﴾ الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۳۸ باب الولی)



## ګواهان په مجلس کښې حاضر نه دی. بلکه د دیوال نه اخوا اوریدونکی دی. ددې نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دِین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی او ښځه په خپله نکاح تړی، او ایجاب او قبول هم خپله کوی. او دوۀ سړو لره د دیوال نه شاته کښېنوی. چه مجلس کښې حاضر نه وی، البته ددوی دا خبری ضرور اوری، دا نکاح صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا ظفر الحق ازاد ناظم دارالعلوم حقانیه. ۲۷\۱۱\۱۹۸۶

**الجواب:** که په دې کور کښې صرف دا دوه کسان موجود وی، نو د شهادت د تحمل د صحیح کیدلو په وجه نکاح صحیح ده. (ماخوذ از ردالمحتار ۲:۳۷۴)﴿۱﴾. وهو الموفق

## د جهیز معامله کول ایجاب او قبول نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرغ متین دې مسئلې باره کښې چه دیوې ځوانې جینۍ والدینو د جینۍ په مخکښې او د ګواهانو په مخامخ د جهیز وغیره معامله وکړه، لیکن دوه میاشتې پس والدین دغې جینئ لره بل ځائي کښې ورکول غواړی، آیا دا نکاح صحیح کیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: همیش ګل تورډهیر صوابی ۱۳/۳/۱۹۸۵

**الجواب:** که ددې جینۍ په اجازت سره د ګواهانو په مخکښې ایجاب وقبول یا په شهادت شرعیه سره ثابت شی﴿۲﴾ نودا معامله د نکاح ده ګنی نکاح نه ده.

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ولا بد من تمییز المنکوحة عند الشاهدین لتنتفی الجهالة فان کانت حاضرة منتقبة کفی الاشارة الیها والاحتیاط کشف وجهها فان لم یروا شخصها وسمعوا کلامها من البیت ان کانت وحدها فیه جاز ولو معها اخریٰ فلا لعدم زوال الجهالة. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۹۵ مطلب الخصاف کبیر فی العلم)

﴿۱﴾ قال الفقیه عبید الله بن تاج الشریعة: النکاح ینعقد......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

(قواعد فقه)﴿۱﴾. وهوالموفق

## د نكاح وكيل دا وئيل "ما قبوله كړه" صحيح دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره كښې چه يو سړى په مجلس نكاح كښې خپل وكيل مقرر كړو، مولوى صاحب وكيل ته ؤوئيل چه فلانۍ بنت فلانكې تا د زيد دپاره قبوله كړه؟ وكيل په جواب كښې ؤوئيل چه آو ماته قبول ده. درې ځله ئې داسې ؤوئيل. مولوى صاحب ؤوئيل چه نا داسې ؤوايه چه ما دغه سړې دپاره قبوله كړې ده. وكيل بيا هغه الفاظ ووئيل. آيا په مخكښنو الفاظو سره نكاح منعقد كيږى؟ بينوا توجروا

المستفتى: مولوى سيد محمد كوئټه بلوچستان

**الجواب:** دوكيل داجواب صحيح دې﴿۲﴾ لان الوكيل لم يقل لنفسى بل اراد النكاح

---

(بقيه حاشيه) بايجاب وقبول لفظهما ماض ...... عند الشهود الخ.

(شرح الوقاية ۲:۶،۹ كتاب النكاح)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: (فلا ينعقد بقبول بالفعل كقبض مهر ولا بتعاط) قال فى البحر وهل يكون القبول بالفعل كالقبول باللفظ كما فى البيع قال فى البزازية اجاب صاحب البداية فى امرأة زوجت نفسها بالف من رجل عند الشهود فلم يقل الزوج شيئا لكن اعطاها المهر فى المجلس انه يكون قبولا وانكر صاحب المحيط وقال الامام مالم يقل بلسانه قبلت بخلاف البيع لانه ينعقد بالتعاطى والنكاح لخطره لا ينعقد حتى يتوقف على الشهود.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۸۷ قبيل مطلب التزوج بارسال كتاب)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفى: وينعقد ملتبسا بايجاب من احدهما وقبول من الآخر وضعا للمضى كزوجت نفسى او بنتى او موكلى منك وبقول الآخر تزوجت، قال ابن عابدين: قوله كزوجت نفسى، اشارة الى عدم الفرق بين ان يكون الموجب اصيلا اووليا او وكيلا...... ويقول الآخر تزوجت اى او قبلت لنفسى او لموكلى او ابنى او مؤكلتى.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۲۸۵ كتاب النكاح)



للموكل ولو سلم انه اراد النكاح لنفسه فكلامه ايجاب ولم يتحقق القبول فانعدم ركن النكاح فى حقه نعم وجد الايجاب للموكل وتحقق القبول له وكالة فى ذلك المجلس فوجد الركن فى حق الموكل، والامر واضح﴿۱﴾. وهوالموفق

## "د فلانكى لوڼ فلانكې ته وئيلې ده" خطبه ده نكاح نه ده؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره كښې چه يو سړى خپله لور يو هلك ته ؤبخله، نكاح ئې ؤنه تړله. بلكه دا ئې ؤوئيل "چه د فلانكئي لور مې فلانى ته وئيلې ده" اوس نكاح شوې ده او كه نه؟ بينوا توجروا

المستفتى: نامعلوم...... ۲۷/۱۲/۱۹۸۳

**الجواب:** بشرط صدق وثبوت دا معامله خطبه ده نكاح شرعى نه ده. لعدم وجود الركن وهو الايجاب والقبول ولعدم وجود الشرط وهى الشهادة﴿۲﴾. وهو الموفق

## د ايجاب او قبول الفاظ درې ځله وئيل ضرورى نه دى

**سوال:** څه فرمائى علماء دين شرع متين دې مسئلې باره كښې چه نكاح خوان د

---

﴿۱﴾ وفى الهندية: واما اذا قال الوكيل هب ابنتك من فلان فقال الاب وهبت لا ينعقد النكاح مالم يقل الوكيل قبلت فاذا قال قبلت لفلان او قال قبلت مطلقا ففى الوجهين ينعقد العقد للموكل هكذا فى المحيط.

(فتاوئ عالمگيريه ۱:۲۹۸ الباب السادس فى الوكالة بالنكاح)

﴿۲﴾ وفى الهندية: واما ركن النكاح فالايجاب والقبول كذا في الكافى...... واما شروطه فمنها الشهادة قال عامة العلماء انها شرط جواز النكاح هكذا فى البدائع.

(فتاوئ عالمگيريه ۱:۲۶۷ كتاب النكاح الباب الاول)

............

ايجاب او قبول الفاظ دري ځله وائي. آيا په يو كتاب كښې ددې استحباب يا سنت كيدل مذكور دى؟ بينوا توجروا

المستفتي : مولوى اعظم خان جنوبى وزيرستان

**الجواب:** ددې الفاظو دري ځله تكرار نه ضرورى دې او نه مستحب دې. بل موهم لكون النكاح قبل المرة الثالثة ضعيفا ذا و هن كا لطلاق﴿۱﴾. وهو الموفق

## د جينئ د پاره صرف جامو ليږلو سره نكاح نه كيږي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره كښې چه زيد ناصر ته ؤوئيل چه خپله لور ما ته راكړه. ناصر ؤوئيل چه د خپلوانو سره مشوره كولو نه پس به ئې دركړم. اوس زيد بازار ته لاړو او د جينئ د پاره ئې جامې وغيره واخستلې. او د ناصر كور ته ئې ؤليږلې. ناصر جامې واپس كړې ليكن زيد ؤوئيل چه كه مشوره ؤنشوه. نو زۀ به جامې واپس يوسم، چه كله ناصر مشوره وكړه، نو خپلوانو انكار وكړو. او د خپلوۍ ختمولو زور نه ئې وركړه، ددې وجه نه ناصر د خپلې لور نكاح د بل سړي سره وكړه، او اوس وادۀ هم شوې دې، اوس بعضې خلق وائي، چه دا رشته صحيح نه ده، او اولاد ئې هم حرامى دې، اوس سوال دادې چه په دې كښې كومه يوه نكاح صحيح ده؟ بينوا توجروا

المستفتي : مولانا نور رحمٰن لانډهى كراچى. ۲۹/۹/۱۹۸۵

**الجواب:** په دې صورت كښې ددې جينئ دا نكاح صحيح ده، حرامه او مكروه نه ده﴿۲﴾.

---

﴿۱﴾ وفى المنهاج: وائمة المساجد يؤخرون (الخطبة) عن العقد ويخالفون الحديث والفقه، وكذا يكررون الايجاب والقبول من عند انفسهم وهذا موهم لكون النكاح قبل المرة الثالثة ضعيفا ذا وهن كالطلاق وكذا يعبرون عن الماضى المطلق بلفظ الماض البعيد والماض القريب، ويعبرون عن اللفظ الواحد بالمعنيين وهذا احتياط بارد.
(منهاج السنن شرح ترمذى ۴: ۲۶۳ باب ماجاء فى الخطبة)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن الشحنه: وينعقد بالايجاب والقبول ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



لعدم النكاح والرضاء بالخطبة﴿۱﴾. ټول اولاد ئې حلالي دې. وهو الموفق

## ناكح (نكاح تړونكې) ګواه جوړيدې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره كښې چه د زيد او هندې په مينځ كښې دهغوى مور پلار د ګواهانو په مخكښې عقد نكاح وكړه، د نكاح په وخت كښې دواړه بالغ وو. او رخصتي ؤنشوه، تقريبا اووه كاله پس د زيد كشر ورور او هنده چرته لاړل. او چرته په يو ښار كښې ئې نكاح وكړه، چه په هغې كښې دا كشر ورور او هنده خپله شريک وو، او يو ګواه او يو ناكح يعنى نكاح تړونكې وو، آيا دا نكاح صحيح ده؟ آيا ناكح ګواه جوړيدې شي؟ بينوا توجروا

المستفتي : محمد حليم شاه ګجرات مردان. ۱۱/۷/۱۹۸۵

**الجواب:** كه د زيد او هنده په مينځ كښې نكاح شوې وى، او يقيني يا شهادت شرعيه سره ثابته وى، نو دا دويمه نكاح كالعدم ده. لقوله تعالى (والمحصنٰت من النساء)﴿۲﴾ او كه دا عقد نكاح ثابت نه وى، نو دا دويم عقد صحيح دې، ځكه چه نكاح خوان صرف معلم وى، عاقد يا وكيل نه وى، فيصير الشاهد. وهو الموفق

---

(بقيه حاشيه) بلفظين يعبر بهما عن الماضى ...... ولا ينعقد نكاح المسلمين الا بحضور شاهدين حرين عاقلين بالغين مسلمين الخ.
(لسان الحكام فى معرفة الاحكام ۳۱۵ الفصل الثالث عشر فى النكاح)

﴿۱﴾ قال الوهبة الزحيلى: الخطبة مجرد وعد بالزواج وليست زواجا، فان الزواج لا يتم الا بانعقاد المعروف، فيظل كل من الخاطبين اجنبيا عن الآخر، ونص قانون الاحوال الشخصية السورى: الخطبة والوعد بالزواج وقرأة الفاتحة وقبض المهر وقبول الهدية لا تكون زواجا.
(الفقه الاسلامى وادلته ۹: ۶۴۹۳ مقدمات الزواج)

﴿۲﴾ قال الجلال السيوطى: وحرمت عليكم (المحصنت).. (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## په نکاح کښ یو سړي د طرفینو قائمقام کیدې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه زید خپله نابالغه لور د ګواهانو په مخکښ عمرو ته د بکر دپاره په دې الفاظو ایجاب وکړو. چه ما خپله لور فاطمه لره بکر ته په نکاح سره ورکړه. عمرو ؤوئیل چه ما فاطمې لره د بکر دپاره په اتۀ سوه مهر مقررولو سره قبوله کړه، اوس څه حکم دې؟ چه دا نکاح په دې الفاظو سره د بکر دپاره منعقد کیږی؟ که عند الشرع دا نکاح منعقد شوې وی، نو بغیر د شرعی جدایئ نه د بکر نه سوا د بل چا سره ئې نکاح کیدې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حبیب الله. ۱۲/۳/۱۹۷۵

**الجواب:** واضحه دې وی چه د زید کلام توکیل دې، ایجاب نه دې، پس که عمرو دا وائي، چه ما دا فلانکۍ فلانې ته په نکاح کړه، نو دا کلام به د ایجاب او قبول دواړو قائمقام وو، او نکاح به صحیح وې، دغه رنګې دا کلام چه فلانکۍ مې د فلانې دپاره قبوله کړه، نو دا هم د ایجاب او قبول دپاره قائمقام دې. او دا نکاح به منعقد وی.

کما فی الدرالمختار: وینعقد ایضا بما ای بلفظین وضع احدهما له للمضی والآخر للاستقبال او للحال فالاول الامر کزوجنی اوزوجینی نفسک او کونی امرءتی فانه لیس بایجاب بل هو توکیل ضمنی فاذا قال فی المجلس زوجت او قبلت او بالسمع والطاعة بزازیة قام مقام الطرفین. (هامش ردالمحتار ۲: ۳۱۱، ۳۱۲)﴿۱﴾

پس ددې ښځې بل ځائي نکاح کول حرامه ده. وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) ای ذوات الازواج (من النساء) ان تنکحوهن قبل مفارقة ازواجهن حرائر مسلمات کن اولا.

(التفسیر الجلالین ۱: ۸۲ پاره: ۵ سورة النساء آیت: ۲۴)

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۸۵، ۲۸۶ کتاب النکاح)



## په خطبه او نکاح کښ د ایجاب عرفی مطلب او د هغې نه پس د دویم عقد حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه زید خپله نابالغه لور د بکر نابالغ ځوی ته په دې الفاظو ایجاب کولو سره ورکړه، چه زما نابالغه لور فلانۍ د بکر نابالغ ځوی فلانې ته ورکړه. او بکر دخپل ځوی دپاره د عامو خلقو په مخکښ قبول کړه. او دا کار د جمات د امام په مشرۍ کښ ؤشو، د قانون مطابق رجستری ؤنشوه، او د جمات امام ته تحفه هم پیش کړې شوه، دوه کاله پس دا جینۍ ؤتښتولې شوه، او د یوې میاشتې نه ئې هیڅ پته نه لګی، آیا شرعا ایجاب او قبول سره نکاح منعقد کیږی؟ که دې الفاظو سره نکاح صحیح کیږی، نو دې جینۍ سره نکاح ثانی کیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۲۶/۹/۱۹۷۲

**الجواب:** که ستاسو په اصطلاح او رواج کښ د ایجاب نه مراد خطبه او رضامندی وی، نو دا معامله د نکاح شرعی نه ده او که د ایجاب نه مراد نکاح وی، نو دا معامله د نکاح ده﴿۱﴾، او ددې جینۍ سره دویم عقد باطل او کالعدم دې. وفی الهندیة اما رکنه فالایجاب والقبول واما شروطه فمنها العقل والبلوغ. ومنها الشهادة باختصار. (۱: ۲۸۴)﴿۲﴾ وهو الموفق

## وړوکی جینۍ د نکاح شهرت او دعوی او د مدعا علیها د انکار مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه یو سړې مړشو

---

﴿۱﴾ قال القاضی القضاة محمد بن الحسینی: ولو قال بزنی داری فبعض مشائخ بلخ جعلوه استفهاما وبعضهم امراء، قال عمر النسفی ومعنی الامر راجح فی العرف قلت فهذا یدل علی ان بالاستفهام لا ینعقد وفی شط قال له هل اعطیتها فقال اعطیت فان کان المجلس للوعد فوعدوان کان لعقد النکاح فنکاح. (فتاویٰ انقرویه ۱: ۳۳ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۶۷ کتاب النکاح الباب الاول)

او د لسو کالولور او ښځه ئې پریخودل، چه جینۍ بالغه شوه نو یو سړي دعوی وکړه، چه دا جینۍ زما د خوی ښځه ده، ځکه چه د دې پلار په ژوند کښې د دوؤ گواهانو په مخکښې زما خوی ته په نکاح راکړې وه، او گواهان اشرف او شبیر د جینۍ پلار سره بُغض ساتلو. او جینۍ وائي، چه نه ماته ددې نکاح علم شته، او نه ئې منم. او نه زما پلار وصیت کړې وو. لهذا زۀ دا دروغ دعوی نه منم. اوس سوال دادې چه:

۱) د جینۍ دا انکار به منظور وی او که نه؟

۲) که منظور وی، نو آیا په اخوا دیخوا خبرو سره یا په مشهور گواهانو سره به نکاح ثابتیږی که نه؟

۳) ددې دوؤ مذکوره گواهانو تکذیب نور دوه گواهان کولې شی او که نه؟

۴) آیا جینۍ په دې مقدمه کښې خپلې مورلره یا بل چالره وکیل جوړولې شی؟

۵) د گواه نه موجودیدلو په صورت کښې جینۍ قسم خوړولې شی او که نه؟

المستفتي: مولانا عبد الرشید راولپنډی.

**الجواب:** ۱) جینۍ د نکاح نه انکار کوی، او دا شرعی مدعی علیها ده، پس که مدعی د شرع مطابق خپله دعوی ثابته کړی، نو د جینۍ انکار به قضاءً رد کړی شی، او نکاح به ثابته شی، گنی نکاح نه ثابتیږی ﴿۱﴾.

۲) د نکاح د اثبات دپاره دوه گواهان داسې پکار دی، چه هغوی د نکاح په مجلس کښې حاضر وو. یا په مجلس کښې حاضر خو نه وو لیکن په خپلو غوږونو ئې د مجلس ایجاب او قبول اوریدلې وی، یا د حاضر کسانو نه ئې اوریدلې وی، هسې د عام مشهورتیا او افواگانو هیڅ اعتبار نشته.

**قال الشامی ناقلا عن جامع الفصولین الشهادة بالسماع من الخارجین من بین جماعة حاضرین فی بیت عقد النکاح بان المهر کذایقبل لا ممن .......**

**﴿۱﴾ قال الفقیه ابو اللیث السمرقندی: لوادعی رجل علی امرأة نکاحا وهی تجحده واقام الرجل بینة علیها یقضی له بالنکاح. (فتاوی النوازل ۱۸۹ مسائل متفرقة کتاب النکاح)**



سمع من غیرهم ﴿۱﴾.

۳) څه وجه به پیش کوی. یا به داسې جرح بیانوی چه هغې سره د گواهانو تکذیب ثابت شی، نو کیدې شی چه دهغوی گواهی قاضی واپس کړی، دا خبره هم دهغې موقع او مجلس سره تعلق ساتی، د قاضی په مخکښې چه کوم شهادت پیش کولې شی، دهغې د واپس کولو او قبلولو به هم هغه وخت کښې پته لگی.

۴) جینۍ خپلې مقدمې چلولو دپاره هرچا لره وکیل جوړولې شی.

۵) خوړلې شی. وهو الموفق

## مفرور او مجرم سړي په نکاح کښې گواه جوړیدلې شی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د انعام او روخانئی په مینځ کښې نکاح وشوه، مالره جینۍ وکیل جوړ کړې وو. مولوی صاحب چه کله نکاح ؤتړله، نو روستو ماته پته ؤلگیدله، چه په گواهانو کښې یو سړې مفرور او مجرم دې. ددې وجه نه ما نکاح ناجائز کړه، دا نکاح شوې ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: مولوی شائسته خان گاړو نوشهره. ۱۹/۹/۱۹۸۵

**الجواب:** مفرور گواه جوړیدلې شی﴿۲﴾.ددې په وجه نکاح لره ناجائز کول او کالعدم کول غلط او بې فائدې دی. وهو الموفق

**﴿۱﴾(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۴:۴۱۷ قبیل باب القبول وعدمه)**

**﴿۲﴾ وفی الهندیة: ویصح بشهادة الفاسقین والاعمیین کذا فی فتاویٰ قاضی خان وکذا بشهادة المحدودین فی القذف وان لم یتوبا کذا فی البحر الرائق وکذا یصح بشهادة المحدود فی الزنا کذا فی الخلاصة الخ.**

**(فتاویٰ عالمگیریه ۱:۳۶۷ کتاب النکاح الباب الاول)**

## د بالغې جینۍ نه اجازت غوختل اویه توکیل باندې د گواه مقررولو معروفه طریقه

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه د پلار دپاره د بالغې لور نه د نکاح اجازت غوختل ضروری دی او که نه؟ که ضروری وی نو ددې طریقه به څنګه وی. یوه طریقه خو داده، چه بعضې علماء دوه گواهان جینۍ ته ؤلیږی. او د گواهانو په مخکښې جینۍ بهر یو سړې دخپل نفس باره کښې د ایجاب او قبول دپاره وکیل مقرر کړی، بیا دوه گواهان بهر راشي او گواهي ورکوی. د محلې د امام په مخکښې آیا ددې وکیل ایجاب او قبول صحیح دې، هرکله چه دننه دغې دوؤ گواهانو د دې موکله ښځې سره مخامخ خبرې نه وی کړې؟ یا بله څه طریقه هم شته؟ بینوا توجروا جزاکم الله احسن الجزاء فی الدارین وعم فیوضاتکم

المستفتی: عبدالله

**الجواب:** چونکه عاقله بالغه مجبورولې نشي. لهذا د نکاح نه مخکښې اجازت غوختل یا روستو خبرول ضروری دی﴿۱﴾، او په دې اجازت باندې گواهان جوړول مستحب دی. دې دپاره چه د ضرورت په وخت کښې پریشانی نه وی﴿۲﴾، او هم دا ښه طریقه ده. وهو الموفق

## د شرعی مجبورۍ نه بغیر د جینۍ نکاح کولونه پس نه واده کول مکروه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه زيد خوانه

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفي: ولا تجبر البالغة البكر على النكاح لانقطاع الولاية بالبلوغ فان استاذنها هو اى الولى وهو السنة او وكيله اورسوله او زوجها وليها واخبرها رسوله او فضولى عدل الخ. (الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۳۲۴ باب الولى)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدين: واعلم انه لا تشترط الشهادة على الوكالة بالنكاح بل على عقد الوكيل وانما ينبغى ان يشهد على الوكالة اذا خيف جحد الموكل اياها. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۵۲ مطلب فى الوكيل والفضولى فى النكاح)



جینۍ د څلورو پنځو کالو نه کښینولې ده، او نکاح کولو نه پس رخصتی نه ورکوی، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد نواز کرنالوی بهکر میانوالی

**الجواب:** د شرعی مجبورې نه بغیر دا عمل مکروه دې.

**كما يقتضيه قوله عليه السلام فان بلغ ولم يزوجه فاصاب اثما فانما اثمه على ابيه، ومن بلغت ابنته اثنتى عشرة سنة ولم يزوجها فاصابت اثما فاثم ذلك عليه (مشكواة شريف ۲: ۲۷۱ باب الولى)﴿۱﴾**

لیکن دا په حقیقت کښې ارشاد دې چه ددې پریخودونکې فاسق نشي کیدې. وهو الموفق

## د نکاح شغار حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه (۱) یو سړې بل ته ؤوئیل چه تۀ خپله لور زما خوی ته راکړه، او زۀ به خپله لور ستا خوی ته درکړم، او دا معامله د مهر د ذکر نه بغیر وی، صرف دا ؤوائي، چه دا جینۍ به ستا د لور په بدله کښې درکړم، ددې څه حکم دې؟

(۲) او که په دې صورت کښې دا ؤوائي، چه زما د لور مهر مثل دوه زره روپۍ دې، او ستا د لور مهر هم دوه زره روپۍ دې، بیا خپلو کښې یوبل ته دوه زره روپۍ ورنکړی، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاضی محمد بلوچستانی. ۵/۱۱/۱۹۸۵

**الجواب:** (۱) دا نکاح شغار ده، او نکاح شغار منعقد ده، او شرط باطل دې، او مهرمثل واجب دې (هندیه) ﴿۲﴾.

(۲) دا نکاح، نکاح شغار نه دې، لوجود الامهار. وهو الموفق

﴿۱﴾ رواهما البيهقى فى شعب الايمان. (مشكواة المصابيح ۲: ۲۷۱ باب اعلان النكاح والخطبة والشرط)

﴿۲﴾ وفى الهندية: وقد قالوا ان نكاح الشغار منعقد...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

## د نکاح شغار حکم او د مهر مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه پښتنائۀ خلق چه په بدل نکاح کوی، آیا دا صحیح ده؟ او په دې صورت کښې د مهر څه حکم دې؟ ځکه چه اکثر مهر نه مقرروی، او د اختلاف په صورت کښې د طلاق څه مسئله ده، که یوې ته طلاق ورکړې شی، نو آیا بله به خود بخود طلاقیږی؟ بینوا توجروا

المستفتی: متعلم دار العلوم حقانیه ۱۸/۱۲/۱۹۸۳

**الجواب:** د نکاح په بدل کښې نکاح صحیح ده، او د بدل په ځائې به مهر مثل یا مهر مسمی لازم وی﴿۱﴾، او که په دې دواړو کښې یوه ناشزه وی، یا یوې ته طلاق ورکړې شی، نو دا لازم نه راځی، چه دویمه ښځه هم طلاقه شی، دا د ناپوهۍ کارونه دی.﴿۲﴾ وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه) والشرط باطل ولکل واحدة من المرأتین مهر مثلها وهو ان یزوج الرجل ابنته علی ان یزوجه الزوج اخته او امه علی ان یکون بضع کل واحدة منها صداق الاخریٰ کذا فی الجوهرة النیرة. (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۳۰۳ الباب السابع فی المهر)

﴿۱﴾ وفی الهندیة: قد قالوا ان نکاح الشغار منعقد والشرط باطل ولکل واحدة من المرأتین مهر مثلها وهو ان یزوج الرجل ابنته علی ان یزوجه الزوج اخته اوامه علی ان یکون بضع کل واحدة منهما صداق الاخریٰ.

(فتاوی عالمگیریه ۱: ۳۰۳ قبیل الفصل الثانی فیما یتاکد به المهر والمتعة)

﴿۲﴾ قال الشیخ محمد خالد الآتاسی: عن ابی سعید الخدری قال قال رسول الله ﷺ لا ضرر ولا ضرار، وهو من جوامع الکلم وفی الفرق بین الضرر والضرار اقوال قیل: الضرر الحاق مفسدة بالغیر مطلقا، والضرار الحاق مفسدة بالغیر علی وجه المقابلة ای کل منهما یقصد اضرار صاحبه من غیر جهة الاعتداء بالمثل الخ. (شرح المجله ۱: ۲۴ الماده: ۷ الضرر لا یکون قدیما)



## "یوه لور ستا او یوه ستا" نه نکاح ده نه خطبه

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې په مرض الموت کښې خپلو دوؤ لونړو لره د ترۀ ځامنو ته داسې وئیلو سره ورکړې چه یوه ستا او یوه ستا. چه دې ته په پښتو کښې بخنه وائې. اوس جینکې د پلار ددې وینا باوجود بل ځائې کښې نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد امین چهوټا لاهور صوابی ۱/۳/۱۹۸۴

**الجواب:** په ظاهر کښې دا معامله نه د نکاح ده او نه خطبه﴿۱﴾. دا جینکې آزادې او خودمختارې دی. وهو الموفق

## دروغو سره جینۍ د چا په نوم کولو سره نکاح نه کیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی د زید لور د زید نه په نکاح سره ؤغوختله. زید ؤوئیل چه ما دا د بکر ورور ته ورکړې ده، بلکه یو ځل ئې ؤوئیل چه ما هم د بکر ورور ته ورکړې ده، ورکړې ده، ورکړې ده، بیا یو ځل زید مونږ ته ؤوئیل چه ما لور د بکر ورور ته نه ده ورکړې، بلکه په اصل کښې ما ستاسو نه پټوله، ددې وجه نه که اوس تاسو غواړئ، نو زۀ درکولو ته تیار یم. آیا ددې اقرار نه پس دا جینۍ به زمونږ هلک دپاره جائز وی، چه اول ئې د بکر ورور ته ورکړې وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبدالله مسلم دوست شموزی مردان ۱۲ رمضان ۱۴۱۵ هـ

**الجواب:** په دې صورت کښې د زید دا الفاظ ایجاب نه دې. بلکه دروغ دی. ستاسو د هلک دپاره جائز ده﴿۲﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ان المجلس للنکاح وان للوعد فوعد.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۸۷ قبیل مطلب التزویج بارسال کتاب)

﴿۲﴾ یدل علیه ما قال الشیخ طاهر بن عبد الرشید: رجل خطب بنتا صغیرة لرجل منه لاجل ابنه الصغیر وقال ابو البنت زوجتها من فلان قبل هذا ......

(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## په نکاح کښې د جینۍ د طرف نه د ګیرې خرڅولو شرط لګولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه بعضو ځايونو کښې ښځې د نکاح دپاره دا شرط لګوی، چه ګیره دې ؤخرائي، په شريعت کښې ددې شرط څه حيثيت دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: مفقود العنوان ۱۹۷۸\۱۰\۹

**الجواب:** دا هغه خلق دی، چه شهوت لره په شريعت باندې فوقيت ورکوی، او د اعذارباره په ذريعې سره په خپلو نفسونو پرده اچوی، اعاذنا الله منها، په نيک خاندانونو او نيکو ښځو سره نکاح کولو کښې دا خطرات نه وی﴿۱﴾. وهو الموفق

## د نکاح ثبوت په شهادت شرعی باندې دې. د نکاح خوان انکار نامنظوردې

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه د ډيرو خلقو په قسم سره دا بيان دې، چه د کفرئ نکاح مولوی رحمت د اسلام نومې سړې

(بقيه حاشيه)فلم يصدقه الخاطب فقال ان لم اكن زوجتها من فلان فقد زوجتها ابنک فلان وقبل ابوالابن بمحضر من الشهود ان لم يكن زوجها من احد قبل هذا صح النكاح.
(خلاصة الفتاوٰی ۲:۳ كتاب النكاح)

﴿۱﴾ قال الملا على قاری: (قوله فاظفر بذات الدين) ای فز بنكاحها قال القاضی رحمه الله من عادة الناس ان يرغبوا فی النساء ويختاروها لاحدی اربع خصال عدها (المال، والحسب، والجمال، والدين) واللائق بذوی المروات وارباب الديانات ان يكون الدين من مطمح نظرهم فيما يأتون ويذرون لا سيما فيما يدوم امره ويعظم خطره.
(مرقاة المفاتيح شرح المشكواة ۶:۱۸۸ كتاب النكاح الفصل الاول)

...... په نکاح کښې داسې قسم شرائط باطل اوناجائز وی بلکه بعضې ځل د (استخفاف) په صورت کښې دکفر خطره هم وی، بهرحال دا شرط باطل او نکاح صحيح ده خو چه د نکاح لوازمات پوره کړې شوی وی........(از مرتب)



سره تړلې ده، د کفرئ پلار هم دا خبره کوی، ليکن نکاح خوان مولوی رحمت ددې نکاح نه منکر دې، په آخر کښې د کفرئ نکاح بل ځائې کښې وکړې شوه. اوس څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: معززين موچی ګړهی

**الجواب:** طرفين دې باقاعده يو مستند عالم سره ملاؤشی او تصفيه دې وکړی، يعنی اسلام به د نکاح دعوی وکړی، او په هغې باندې ګواهی قائمولو نه پس به دا جينۍ اسلام ته حواله کړې شی﴿۱﴾، اګر که نکاح خوان انکاری وی، دهغه انکار به نامنظور اوګرځولې شی. وهو الموفق

## په نکاح باندې د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه يو سړی د خپلې نابالغې لور نکاح خپله د دوؤ ګواهانو مخکښې په دې الفاظو ؤتړله، چه ما د زرو روپو په بدله کښې د خپلې لور نکاح د فلانی سړې سره وکړه، رواجی رجسټريشن ئې ونکړو، يو کاله پورې ښځه خاوند ؤسيدل، ددې نه پس جينۍ مروره شوه او کراچۍ ته ؤتښتيدله، پلار ئې هم کراچۍ ته لاړوو او د جينۍ نکاح چه اوس بالغه شوې ده، د باقاعده رجسټريشن په ذريعه ئې د بل سړې سره وکړه، اوس سوال دادې، چه:
(۱) ؤړومبۍ نکاح صحيح وه او که نه؟ (۲) دويمه نکاح شوې ده او که نه؟

﴿۱﴾ قال القاضی القضاة محمد بن الحسينی: لو ادعی النكاح بمحضر من الشهود لابة وان يذكر سماع الشهود كلام المتعاقدين اذالعلماء اختلفوا فی ان سماع الشهود كلامهما هل هو شرط والاصح انه شرط فلا بد من ذكره لتصح الدعوٰی.
(الفتاوٰی انقروية ۲:۱۱۴ العاشر فی دعوی النكاح وفساده)

وقال: واذا ادعت المرأة على رجل نكاحا فجهد فاقامت البينة يقضی لها ولا يفسد النكاح بجحوده. (فتاوٰی انقروية ۱:۳۷ الباب الثانی فی الوكالة فی النكاح والفضولی)

(۳) که ؤرومبی نکاح صحیح وی، او دویمه صحیح نه وی، نو د دویمې نکاح د مهر به څه کیږی؟

(۴) د جینۍ د والد متعلق څه حکم دی؟ هغه وائي چه زما لور ده ما صحیح کار کړې دی.

(۵) ددې دویم ناکح (نکاح کونکي) څه حکم دی، هرکله چه هغه ته معلومه وه، چه دا منکوحه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: بخشش الهی کیمل پور اټک. ۲۷/۴/۱۹۷۰

**الجواب:** (۱) که د ګواهانو په مخامخ هم په هغه مجلس کښې قبول هم شوې وی نوؤرومبې نکاح بغیرد شک اوشبهې نه صحیح ده لوجود الرکن والشرط﴿۱﴾

۲) که اوله نکاح باقی وی، د طلاق په ذریعې یا د حاکم د تنسیخ په ذریعې نه وی ختم شوې، نو دویمه نکاح نه ده شوې﴿۲﴾.

۳) د امام اعظم رحمه الله په نزد د شبهة العقد په وجه سره حد ساقط دې، لهذا مال به په هغه واجب وی﴿۳﴾.

٤) د نکاح اول په وجه دا سړې (پلار) فاسق دې، په شرط ددې چه حلال ئې نه ګڼړی ګنی کافر دې.

٥) که حلال ئې نه ګڼړی نو فاسق دې ګنی کافر دې، په شرط ددې چه اوله نکاح باقی وی﴿۴﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال عبد الله بن مودود الموصلی: ورکنه الایجاب والقبول ...... ولا ینعقد نکاح المسلمین الا بحضور رجلین او رجل وامرأتین فالشهود شرط لقوله علیه السلام لانکاح الا بشهود. (الاختیار لتعلیل المختار ۲:۱۰۹ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: لا یجوز للرجل ان یتزوج زوجة غیره وکذلک المعتدة. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۰ القسم السادس المحرمات التی یتعلق بها حق الغیر)

﴿۳﴾ قال فی الشامیة: وفی الخانیة لو تزوج محرمه لاحد علیه عند الامام وعلیه مهر مثلها بالغا مابلغ. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۳۸۱ مطلب فی النکاح الفاسد)

﴿۴﴾ قال الملا علی قاری: ان استحلال المعصیة ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## په نکاح باندې نکاح کول حرام او خطبه باندې خطبه کول مکروه تحریمی دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی د خپلې خور نکاح د قرآن مجید په وعدې سره وکړه، او په مهر کښې ئې پنځه کناله زمکه د خور په اجازت سره واخستله. اوس ددې سړې کشر ورور ددې جینۍ رشته بل ځائي کښې وکړه. اوس کومه یوه نکاح باقی ده او کومه باطل ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: قمر علی کوهاله راولپنډی. ۲۶/۸/۱۹۷۵

**الجواب:** که د اول خاطب سره باقاعده د نکاح عقد شوې وی، نو بل ځائي په نکاح ورکول به حرام وی، قال الله تعالی (والمحصنت من النساء)﴿۱﴾ او که نکاح نه وی شوې، نو بل ځائي کښې نکاح کول مکروه تحریمی ده.

لحدیث لا یخطب الرجل علی خطبة اخیه﴿۲﴾ وفی الخیریة علی ......

---

(بقیه حاشیه)صغیرة کانت او کبیرة کفر، اذا ثبت کونها معصیة بدلالة قطعیة وکذا الاستهانة بها کفر بان یعدها هینة سهلة ویرتکبها من غیر مبالاة بها ویجریها مجری المباحات فی ارتکابها.

(شرح فقه الاکبر للقاری ۱۵۲ ومنها استحلال المعصیة)

﴿۱﴾(سورة النساء پاره: ۵ آیت: ۲۴)

﴿۲﴾ رواه البخاری فی کتاب النکاح باب لا یخطب علی خطبة اخیه حتی ینکح او یدع (حدیث رقم: ۵۱۴۴) ومسلم فی باب تحریم الجمع بین المرأة وعمتها فی النکاح (حدیث رقم ۱۴۰۸) وفی باب تحریم الخطبة علی خطبة اخیه حتی یأذن او یترک (۱۴۱۳) وابوداؤد فی باب کراهة ان یخطب الرجل علی خطبة اخیه (۲۰۸۰) والترمذی فی باب ماجاء ان لا یخطب الرجل علی خطبة اخیه (۱۱۳۴) والنسائی فی باب النهی ان یخطب الرجل علی خطبة اخیه (۶:۷۱) وابن ماجة فی باب لا یخطب الرجل علی خطبة اخیه (۱۸۶۷) ومالک فی باب لا یخطب علی خطبة اخیه(۲:۵۲۳) واحمد فی مسنده (۲:۴۲)

هامش تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱: ۴۱ قال فی الذخیرة کما نهی النبی ﷺ عن الاستیام علی سوم الغیر نهی عن الخطبة علی خطبة الغیر وان من ارتکب محرما لم یرد فیه حد مقرر یعزر و کما تحرم الخطبة تحرم اجابتها لانه اعانة علی المعصیة فیعزر المجیب القادر علی المنع ﴿۱﴾. وهو الموفق

## زمونږ په عرف کښ د "درمې کړه" الفاظ کنائي دی. او د نکاح او خطبه دواړو احتمال لری

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښ چه نيکه د خپلې نوسې نکاح د خپل نوسي سره په دې الفاظو سره وکړه، چه ماد فلانې لور د فلانې ځوی واقف خان ته وکړه، په دې مجلس کښ دهغه ځامن هم موجود وو.او د جينۍ والد هم دا اقرارکوی، چه نيکه دا الفاظ وئيلې وو، نور رشته دار هم موجود وو.او ټولو وئيلي وو، چه ډيره ښه ده، او يو بل ته ئې مبارکی ورکړه، په دې طريقې سره د شريعت مطابق نکاح منعقد کيږی او که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: گل مست خان مانکی صوابی ۸/۱/۱۹۶۹

**الجواب:** که د نيکه مراد نکاح وی، چه دا جينۍ به بغير د طلاق وغيره نه بل چاته نشي ورکولې.او دا جينۍ به د مهرمثل حقداره وی، او نيکه په خپل مراد باندې گواهان خبر کړې وو، يا نورې نښې د نکاح موجود وې، نو په دې صورت کښ دا جينۍ ددې هلک په نکاح کښ داخل شوې ده.او که د نيکه مراد او مقصد دا وو، چه دې جينۍ لره ما ددې هلک په نوم کړه، او ددهٔ دپاره مې متعين کړه،دې دپاره چه نور رشته دار وغيره ددې په طمع او اميد نه وی، نو په دې صورت کښ دا نکاح نه ده، وجه داده، چه "ورمې کړه" الفاظ د کنايه دی.او د نکاح او خطبه دواړو احتمال لری، پس بغير ددې شرطونو نه په دې لفظ سره نکاح نه کيږی. فی الدر المختار: .....

﴿۱﴾ (الفتاویٰ الخیریة علی هامش تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱: ۴۱ کتاب النکاح)



وانما يصح بلفظ تزويج ونكاح لانهما صريح وما عداهما كناية وهو كل لفظ وضع لتمليك عين ﴿۱﴾ وقال الشامي في ردالمحتار ۲: ۲۷۰ هذا حاصل ما في الفتح وملخصه: انه لا بد في كنايات النكاح من النية قرينة او تصديق القابل للموجب وفهم الشهود المراد واعلامهم به انتهیٰ ﴿۲﴾ ويدل على كونه محتملا ما في الهندية ۱: ۲۸۸ وفي مجموع النوازل عن الشيخ الامام نجم الدين النسفي ان في قوله "دختر خويش مراده" لا بد ان يقول "بزني" ويقول الآخر "بزني دادم" فاما بدون ذلك فلا ينعقد النكاح عند بعض المشائخ وعند بعضهم ينعقد فلا بد من هذه الزيادة لتصير المسئلة متفقا عليها كذا في المحيط انتهیٰ ﴿۳﴾

او زمونږ په عرف کښې وئيلي کيږی چه فلانئ فلانی ته ورکړې شوې ده ليکن نکاح ئې نه ده شوې.وهوالموفق

## په خطبه او وعده کښ ئې د يو نوم واخستلو. او په نکاح کښ دويم نوم...؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښ چه يو سړې خپله نابالغه لور ورکولو وعده وکړه، او بل طرف ته هلک هم نابالغ وو، او دواړو ته منظوره وه، ليکن چه کله نکاح د گواهانو په مخکښ تړلې کيده، نو د جينۍ پلار د مشرې نابالغې جينۍ نوم واخستلو، د هلک پلار هم د خپل مشر ځوی دپاره منظور کړه، ځکه چه هغه هم نابالغ وو، په دې خبره مونږ په بله ؤرځ خبر شو، اوس سوال دادې، چه ددې مشرې نابالغې جينۍ نکاح وشوه که نه؟ بينوا توجروا

المستفتی: مياں اشتياق احمد تله کنگ چکوال. ۲۲شعبان ۱۴۰۲ھ

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۹۰ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۲۹۲ قبیل مطلب هل ینعقد النکاح بالالفاظ المصحفة)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۱ الباب الثانی فیما ینعقد به النکاح ومالا)

**الجواب:** د کومې جینۍ نوم چه اخستلې شوې دې، دهغې سره نکاح منعقد شوې ده. (هندیه ۱/۲۸۷)﴿۱﴾. وهو الموفق

## په نکاح کښې د جینۍ په ځائې د جینۍ د مور نوم اخستل

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د نکاح په وخت د جینۍ د نوم په ځائې د مور نوم اخستلې شوې دې، آیا دا نکاح صحیح شوه او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سعدالله جلبئ صوابی ۲۳ذی قعده ۱۳۹۴ھ

**الجواب:** بشرط صدق و ثبوت که ددې عقد نه مخکښې یا روستو په صحیح نوم سره نکاح اونه شی. نو دا عقد کالعدم او واجب الاعاده دې.

کما فی شرح التنویر: وکذا لو غلط فی اسم بنته (هامش ردالمحتار ۲: ۳۷۸)﴿۲﴾

قلت: والعقد علی ام المخطوبة لم یصح لعدم الاصالة ولا الوکالة ولعدم الاجازة. فافهم

## په نکاح کښې ئې نیم نوم صحیح واخستلو او نیم نوم ئې غلط. ددې نکاح څه حکم دې؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د یوې جینۍ نیکه چه د نکاح دپاره وکیل وو، د نکاح کړې شوې جینۍ اصل نوم جمال بانو دې، او نیکه ئې واحد سړې دې، چه هغې ته جمال آراء وائي، او خپله جینۍ او مور او پلار ئې د جمال آراء د نوم نه انکار کوی، د نکاح په وخت

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ولو کان لرجل بنتان کبریٰ اسمها عائشة وصغریٰ اسمهافاطمة واراد ان یزوج الکبریٰ وعقد باسم فاطمة ینعقد علی الصغریٰ.

(فتاوىٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۰ قبیل الباب الثانی فیما ینعقد به النکاح ومالا)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۲۹۸ قبیل فصل فی المحرمات)



کښې ئې جمال آراء ؤلیکلو، اوس دا نکاح به دوباره کیږی او که نه؟ او که ؤرومبې نکاح شرعا منعقد شوې نه وی نو ګناه د چا ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الاحد میاں مردان ۲۴/۸/۱۹۷۲

**الجواب:** که دا جینۍ د "جماله" په نوم سره مشهوره وی، او اختلاف په تتمه کښې وی، نو یقینی طور باندې د فساد نکاح فیصله کول صحیح نه دی. البته احتیاطا تجدید نکاح ضروری ده، او که دا جینۍ د جمال بانو په نوم سره مشهوره وی، او نیکه ئې په غلط فهمۍ کښې مبتلاء وی، نو اوله نکاح کالعدم ده، او دویمه نکاح ضروری ده. (لعدم رفع الجهالة)﴿۱﴾ او د لاعلمۍ په وجه فساد سره ګناه نه کیږی. وهو الموفق

## په لور سره د نیولې شوی جینۍ دپاره د پلار د نوم مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زیب النساء لره د پیدائش نه لس ؤرځې پس چا واخستله، او هغه ئې ؤساتله، د جینۍ د اصل پلار نوم اسلام او د مور نوم ئې خدیجه دې، د پالونکی نوم هاشم دې،

﴿۱﴾ وفی الهندیة: جاریة سمیت فی صغرها باسم فلما کبرت سمیت باسم آخر قال تزوج باسمها الاخر اذا صارت معروفة باسمها الآخر والاصح عندی ان یجمع بین الاسمین کذافی الظهیریة رجل له بنت واحدة اسمها فاطمة قال لرجل زوجت منک ابنتی عائشة ولم تقع الاشارة الی شخصها ذکر فی فتاوىٰ الفضلی انه لا ینعقد النکاح الخ.

(فتاوىٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۰ قبیل الباب الثانی فیما ینعقد به النکاح ومالا)

وقال العلامة الافندی: وظاهره انها لو جرت المقدمات ای مقدمات الخطبة علی معینة وتمیزت عند الشهود ایضا یصح العقد وهی واقعة الفتوىٰ لان المقصود نفی الجهالة وذلک حاصل بتعینها عند العاقدین والشهود وان لم یصرح باسمها کما اذا کانت احداهما متزوجة ویؤیده ماسیأتی من انها لو کانت غائبة وزوجها وکیلها فان عرفها الشهود علموا انه ارادها کفی ذکر اسمها والا لا بد من ذکر الاب والجد.

(ردالمحتار ۲: ۳۶۷ کتاب النکاح قوله ولا المنکوحة مجهولة)

چه کله جینۍ د شلو کالو شوه، نو د نکاح په وخت د اصل پلار نوم په ځائي د پالونکي نوم هاشم واخستلې شو، اوس سوال دادې، چه دا نکاح صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نور محمد ګلبرګ نمبر ۲۰ پشاور ۲۸ شعبان ۱۴۰۸ھ

**الجواب:** که دا جینۍ په دې مجلس کښې موجوده نه وه، نو دا نکاح صحیح نه ده، ﴿۱﴾

**كما فى فتاوىٰ قاضى خان: امرأة وكلت رجلا بان يزوجها فزوجها وغلط فى اسم ابيها لا ينعقد النكاح اذا كانت غائبة (هامش الهندية ۱: ۳۲۴)﴿۲﴾، ﴿۳﴾. وهو الموفق**

---

**﴿۱﴾قال العلامة ابن عابدين: لو كانت غائبة وزوجها وكيلها فان عرفها الشهود علموا انه ارادها كفى ذكر اسمها والا لابد من ذكر الاب والجد. (ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۳۶۷ كتاب النكاح ولا المنكوحة مجهولة)**

**﴿۲﴾(فتاوىٰ قاضى خان على هامش الهندية ۱: ۳۲۴ الفصل الاول فيما يتعلق به انعقاد)**

﴿۳﴾ په فتاوٰی دارالعلوم دیوبند کښې دی، **سوال:** د نکاح په وخت کښې عمرو د شرم په وجه د حبیبې د پلار نوم د بکر په ځائي زید ؤښودلو، حبیبه د نکاح په مجلس کښې حاضره نه وه، او ګواهانو کښې اکثرو خلقو ته علم وو، چه منکوحه د زید لور نه ده، بلکه د بکر لورده، او ناکح ته مطلقا علم نه وو، څه حکم دې، نکاح جائزده او که نه؟

**الجواب:** چونکه د شاهدانو په نزد حبیبه مجهوله نه ده، او د عمرو د علم سره حبیبې لره د زید لور ښودل د مجاز قرینه ده، ددې وجه نه نکاح صحیح شوه، لکه چه شامی کښې دی.....د ولا المنكوحة په شرح کښې لیکلی دی:

**فلو زوج بنته منه وله بنتان لا يصح الا اذا كانت احدهما متزوجة فينصرف الى الفارعة الخ وفى معناه ما اذا كانت احداهما محرمة عليه قلت وظاهره انها لو جرت مقدمات الخطبة على معينة وتميزت عند الشهود ايضا يصح العقد وهى واقعة الفتوىٰ لان المقصود نفى الجهالة وذلک حاصل بتعينها عند العاقدين والشهود الخ. (فتاوىٰ دار العلوم ديوبند ۷: ۱۱۶)**

او په فتاوٰی دارالعلوم دیوبند کښې دی، چه د پیژند ګلو ښځو د پلار نوم که بدل هم کړې شی، نو نکاح جائز ده.

**سوال:** د یوې جینۍ پلار مړ شو، د هغې مور د خپل خاوند حقیقی ورور سره نکاح وکړه، ددې جینۍ نکاح ددې د تره یعنی.......... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د کنډې ایجاب او قبول او شرط نه پوره کیدلو په وجه د انکار مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه هنده کنډه او د بچو مور ده، زید د هندې رور خالد ته ؤوئیل چه خپله خور ماته راکړه، خالد د هندې نه تپوس وکړو، هندې ؤوئیل چه زۀ به په دې شرط د زید سره

---

(بقیه حاشیه) ...میرنیزې پلار په اجازت سره وشوه، او د نکاح په وخت کښې د اصل پلار د نوم په ځائي د میرنزې پلار نوم واخستلې شو، پس په دې صورت کښې دا نکاح صحیح شوه او که نه؟

**الجواب:** ظاهره داده چه نکاح صحیح شوه، اګر چه د در مختار د یو عبارت نه داسې معلومیږي، چه داسې غلطۍ سره نکاح نه صحیح کیږي. هغه عبارت دادې.

**غلط وكيلها بالنكاح فى اسم ابيها بغير حضورها لم يصح للجهالة الخ،**

په دې باندې علامه شامی لیکلی دی:

**قوله لم يصح لان الغائبة يشترط ذكر اسمها واسم ابيها وجدها وتقدم انه اذا عرفها الشهود يكفى ذكر اسمها فقط خلافا لابن الفضل وعند الخصاف يكفى مطلقا والظاهر انه فى مسئلتنا لا يصح عند الكل لان ذكر الاسم وحده لايصرفها عن المراد الى غيره بخلاف ذكر الاسم منسوبا الى اب آخر فان فاطمة بنت احمد لا تصدق على فاطمة بنت محمد تامل وكذا يقال فيما لو غلط فى اسمها الخ.**

لیکن ددې جواب دادې، چه اول خو د درمختار ددې قول "للجهالة" نه معلومیږي، چه علت د عدم جواز په دې غلطۍ کښې جهالت دې، چه په دې صورت کښې نشته، دویم د در مختار مسئله د غلطۍ په صورت کښې فرض کړې شوې ده، چه وکیل په غلطۍ سره نوم بدل کړې وی، او په دې مسئله کښې غلطۍ سره داسې نه دی شوې، بلکه د معروف او شهرت په وجه داسې کړې شوې دی، ځکه چه په عرف کښې د مور دویم خاوند ته پلار وئیلې کیږي، غرض دا چه کوم رفع د جهالت ده هغه دلته کښې حاصل ده، ځکه چه مطلب ددې نسبت دادې، چه فلانۍ جینۍ چه د فلانې په تربیت کښې ده، او فلانې هلک چه د فلانې سړې په تربیت کښې دې، ددوی عقد شوې دې، بلکه دا د حیرانتیا خبره نه ده، چه اصل پلار طرف ته نسبت کولو سره هغومره شهرت نه وی، کوم چه په دې نسبت کښې حاصل دې، او مقصود اصلی رفع د جهالت ده، لکه چه په شامی کښې د درمختار ددې قول: ولا المنكوحة مجهولة لاندې ئې لیکلی دی:

**قلت وظاهره انها لوجرت المقدمات على معينة وتميزت عند الشهود ايضا يصح العقد وهى واقعة الفتوىٰ ......** (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

واده کوم، چه زما ماشومانو لونړو لره زما د خاوند رور ما سره زید کره پریږدی، زید ؤوئیل چه دا اجازت ما اخستلي دي، اوس د خالد او زید په مینځ کښ ایجاب او قبول ؤشو. زید یوه جوړه جامې هندې ته ورکړې، او هندې هغه واغوستلې، څو هفتې پس د واده تیارې شروع شوې، چه اچانک د خاوند ورور راغلو او د هندې نه ئې ماشومان بوتلل، او وې وئیل چه نه زه د خپل ورور یتیمان بچی د زید سره پریږدم، او نه ما زید ته داسې اجازت ورکړې دي، هندې چه کله دا حالت ؤلیدو نو د زید جامې ئې ؤویستلې، او وې وئیل چه اوس زه د زید سره واده نه کوم، ځکه چه شرط پوره نه شو، اوس زید وائي چه هنده زما په نکاح کښ ده. ایجاب او قبول شوې دي، حالانکه خپله د زید او خالد په عرف اورواج کښ داسې قسمه ایجاب او قبول ته نکاح نه وئیلې کیږی، اوس که خدائي مه کړه دې رسمی ایجاب او قبول نه پس که خاطب په دې مخطوبې بد نظر سره لاس واچوی، نو معامله به قتل او قتال ته ؤرسی، اوس سوال دادې، چه آیا هنده آزاده ده او که د زید په نکاح کښ ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: احمدمیمن دارالتوحید شهداد پورسانګهړ ۱۰ ربیع الثانی ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** که دا ایجاب او قبول د دوؤ سړو یا یو سړې او دوؤ ښځو په مخامخ شوې وی، نو دا معامله دنکاح شرعی ده، خطبه نه ده.

فی الدرالمختار: **وینعقد ملتبسا بایجاب من احدهما وقبول الخ وفیه ایضا وما یصح ولا یبطل بالشرط الفاسد لعدم المعاوضة المالیة القرض والهبة والصدقة والنکاح الخ. وهوالموفق**

(بقیه حاشیه) **لان المقصود نفی الجهالة وذلک حاصل بتعینها عند العاقدین والشهود وان لم یصرح باسمها کما اذا کانت احداهما متزوجة ویؤیده ماسیأتی من انها لو کانت غائبة وزوجها وکیلها فان عرفها الشهود وعلمه انه ارادها کفی ذکر اسمها والا لابد من ذکر الاب والجد ایضا الخ**

دفتاوی فریدیه اوفتاوی دیوبند په دې فتاوو کښ په ظاهره تعارض معلومیږی، لیکن په واقع کښ نشته، ځکه چه دفتاوی فریدیه فتوی محموله ده په مجهوله باندې، او د فتاوی دیوبندفتوی محمول ده په معروفه اومشهوره او پیژندلې شوې باندې. (سیف الله حقانی)



## د ښځې دا قول چه زه طلاقه کړې شوې یم. باندې اعتماد کول او نکاح ورسره کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښ چه یوې منکوحې ښځې یو سړې ته ؤوئیل چه زه طلاقه کړې شوې یم، او اول خاوند ماته طلاق راکړې دې، آیا د ښځې په دې زبانې وینا سره هغې سره نکاح صحیح ده؟ آیا په دې کښ مولوی صاحب نکاح خوان او ګواهان یو شان مجرمان دی،؟ دې خلقو سره په صف کښ د مونځ کولوَ څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا سید محمد صابر شاه ضلع بنون ۲۰/۱/۱۹۲۹

**الجواب:** چونکه نکاح خوان او ګواهانو د ښځې په وینا اعتماد کړې دې، او په قصد سره ئې دا نکاح او ګواهان کیدل نه دی کړې، لهذا دا مولوی صاحب او ګواهان مجرمان نه دی، بیشکه دا ناکح مجرم دې، که دې سره ئې په قصد سره نکاح کړې وی. وفی الهدایة وکذا لوقالت لرجل طلقنی زوجی وانقضت عدتی فلا باس ان یتزوجها﴿۱﴾. او یو مسلمان لره د مونځ او جمات نه منع کول جائز نه دی. بدلیل قصة الثلاثة الذین خلفوا﴿۲﴾. دهغوی سره په صف کښ اودریدل جائز دی. وهو الموفق

﴿۱﴾ **(هدایة ۴: ۴۶۹ کتاب الکراهیة فصل فی البیع)**

﴿۲﴾ **قال کعب بن مالک...... ونهی رسول الله ﷺ المسلمین عن کلامنا ایها الثلاثة من بین من تخلف عنه فاجتنبنا الناس وتغیروالنا حتی تنکرت فی نفسی الارض فما هی التی اعرف فلبثنا علی ذلک خمسین لیلة فاما صاحبای فاستکانا وقعدا فی بیوتهما یبکیان واما انا فکنت اشب القوم واجلدهم فکنت اخرج فاشهد الصلوٰة مع المسلمین واطوف فی الاسواق ولا یکلمنی احد واتی رسول الله ﷺ فاسلم علیه وهو فی مجلسه بعد الصلوٰة فاقول فی نفسی هل حرک شفتیه برد السلام علی ام لا ثم اصلی قریبا منه فاسارقه النظر فاذا اقبلت علی صلاتی اقبل الی واذا التفت نحوه اعرض عنی الخ.**

**(صحیح البخاری ۲: ۶۳۵ باب حدیث کعب بن مالک کتاب المغازی)**

## د واده کولو د پاره د پلار نه د کور اخستلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه مونږ څلور رونړه يو، والدين هم ژوندی دی، د درې رونړو ودونه شوې دی، زه د ټولو نه وړوکې او ناواده کړې يم، اوس زه وايم، چه زما واده وکړئ او کور کښې چه مې څومره حصه کيږی، را کړئ، که تاسو زما واده نه کوئ، نو ټول کور ما ته راکړئ، او والدصاحب کور خرڅول غواړی، زما د پاره څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد رحيم کلاډير سوات

**الجواب:** د ستا په والدينو او رونړو باندې ستا د واده هيڅ حق نشته، او نه تۀ د يو څيز خرڅولو او اخستلو نه پلار منع کولې شې، هغه مالک دې، البته که والدوغيره داحسان اومروت په وجه څه وکړي، نو منع نه دی﴿۱﴾. وهو الموفق

## يو ځائي کښې خطبه منظورولو نه پس
## بيا بل ځائي کښې د ورکولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه زيد د خپلې لور رشته اول په زبانی وعدې سره يو کس ته ورکړه. او دهغې نه پس ئې بل ځائي کښې په پوره شرطونو سره د شريعت دحکم مطابق وعده وکړه، او موجوده جرګې او جينۍ په خپله پلار ته د قرآن مجيد واسطه ورکړه، چه زما رشته هم دلته ورکړه، او نقد روپۍ ئې هم واخستلې او وعده ئې وکړه، چه

﴿۱﴾ يدل عليه مافى الدر المختار قال العلامة الحصكفي: ولا يطالب الاب بمهر ابنه الصغير الفقير اما الغنى فيطالب ابوه بالدفع من مال ابنه لامن مال نفسه اذا زوجه امرأة الا اذا ضمنه على المعقد كما فى النفقة فانه لا يؤخذ بها الا اذا ضمن.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۳۸۷ قبيل مطلب فى منع الزوجة نفسها)



فلانی ورځ به رشته درکړو، مونږ خلق دهغې ورځې په انتظار کښې وو، چه هغه سمدستې دريم ځائي کښې رشته ورکړه. اوس ددې سړي په شريعت کښې څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: سيد صابر حسين کوهاله ۱۹۷۵/۶/۳

**الجواب:** بشرط صدق و ثبوت دا سړې زيد د حرامو د ارتکاب په وجه د تعزير لائق دې.

كما فى الخيرية على هامش تنقيح الفتاوىٰ الحامدية ۱: ۴۱ وكما تحرم الخطبة تحرم اجابتها لانه اعانة على المعصية فيعزر المجيب اليها القادر على المنع ﴿۱﴾. وهوالموفق

## بعد البلوغ د نکاح د خطبې فسخ

**سوال:** څه فرمائي علماء دين شرع متين دې مسئلې باره کښې چه ديوې نابالغې جينۍ د نکاح خطبه شوې وه، آيا د بلوغ نه پس هغې ته د فسخ حق حاصل دې؟ بينوا توجروا

المستفتي: مولانا محمد سليمان مظفر آباد

**الجواب:** که د دوؤ ګواهانو په مخکښې باقاعده ايجاب او قبول شوې نه وی، نو دا معامله د خطبې ده، نکاح نه ده﴿۲﴾، او دا جينۍ هرکله چه د خيار بلوغ

﴿۱﴾ قال العلامة خير الدين المنيف: سئل فى رجل خطب من آخر بنته البالغة العاقلة وسمى المهر وقبل الاب وركن قلبها الى الخاطب واحضر المهر ومابقى الا العقد فرجع الاب لطروخاطب عالم بخطبة الاول فما الحكم الشرعى فى ذلک، اجاب المصرح فى كتب الحنفيه وغيرهم حرمة الخطبة على خطبة الغير قال فى الذخيرة كما نهى النبى ﷺ عن الاستيام على سوم الغير نهى عن الخطبة على خطبة الغير وان من ارتكب محرما لم يرد فيه حد مقدر يعزرو كما تحرم الخطبة الخ.

(الفتاوىٰ الخيرية على هامش تنقيح الفتاوىٰ الحامدية ۱: ۴۱ كتاب النكاح)

﴿۲﴾ قال الفقيه ابو الليث السمرقندى: وركن (النكاح) الايجاب والقبول وحكمه الاثر الثابت بالعقد وانما حضور الشاهد عند العقد وهو شرط الصحة. (فتاوىٰ النوازل ۱۶۰ كتاب النكاح)

په وجه نکاح فسخ کولې شي﴿۱﴾ نوخطبه په طریقه اولی سره فسخ کولې شي، پس داجینۍ په خپله مرضۍ سره بل ځائي کښې واده کولې شي. وهو الموفق

## د بالغې جینۍ يو ځائي کښې مقرر شوې کوېژدن

## نه انکار او بل ځائي کښې د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زۀ پیغله جینۍ یم، په ماشوموالی کښې والدینو په یو ځائي کښې د رشتې وعده کړې وه، او اوس زۀ بالغه شوې یم، او په پوره عقل سره سوچ کولو نه پس پوهه شوم چه کوم ځائي زما والدین زما رشته کول غواړی، هلته کښې مادپاره ژوند تیرول ګران دی، ددې وجه نه زۀ په خپله مرضۍ سره واده کول غواړم، او دهغې مقرر شوې رشتې نه، چه نکاح نه ده شوې صرف وعده شوې ده، زۀ انکاری یم، او حالات دومره خراب دی، چه که زما رشته هلته وکړې شوه، نو کیدې شي چه زۀ خودکشي وکړم، چه حرام مرګ دې، اوس د شریعت مطابق ددې مخکښنۍ رشتې نه زما انکار صحیح جائز دی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتي: ن، ت، ج، بکوټ، ایبټ آباد ۳/۵/۱۹۷۳

**الجواب:** که ستا والدینو صرف وعده کړې وی، نکاح ئې نه وی کړې، نو تۀ بل ځائي کښې نکاح کولې شې.

فی الهندیة ۱:۳۰۵ ولایجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب اوسلطان بغیر اذنها بکرا کانت او ثیبا فان فعل ذلک فالنکاح موقوف علی اجازتها﴿۲﴾.

وهوالموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: ولهما خیار الفسخ بالبلوغ فی غیر الاب والجد بشرط القضاء ای للصغیر والصغیرة اذا بلغا وقد زوجا ان یفسخا عقد النکاح الصادر من ولی غیر اب ولا جد بشرط قضاء القاضی بالفرقة.

(البحر الرائق ۳:۱۲۰ باب الاولیاء والاکفاء)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)



## د مجبورۍ نه بغیر د خطبې وعده نه پوره کولو باندې ګناه لازم راځی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې خپله لورد شهباز د ځوی دپاره مقرر کړه، متهائي هم تقسیم کړې شو، عام خلق هم خبرشو، چه فلانې خپله لور فلانې ته ورکړه، لیکن نکاح ئۀ نه تړلې شوه، اوس هغه سړې د لور ورکولو نه انکاری دې، شرعا څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: زیارت ګل کتوزئي شبقدر پشاور ۱۸ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** دا معامله د خطبې ده د نکاح نه ده. لعدم تحقق الایجاب والقبول فی حضور الشهداء ظاهرا﴿۱﴾. پس دا سړې د مجبورۍ په حالت کښې وعده نه پوره کولو سره ګناهګار نه دې، او بغیر د مجبورۍ نه ګناه ګار دې﴿۲﴾،

ویدل علی عدم کون الخطبة نکاحا ما قال القاری ایضا: ........

---

﴿۱﴾ قال الامام شمس الدین محمد الخراسانی القهستانی: النکاح ینعقد بایجاب...... وقبول...... لفظهما ماض...... او امر...... وماض...... وشرط لصحة النکاح سماع کل منهما ای المتعاقدین لفظ الآخر وشرط ایضا حضور شاهدین حرین عند العقد الخ.

(جامع الرموز ۱:۴۴۶ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ قال الشیخ العلامة زینة المحدثین مولانا نصیر الدین الغرغوشتوی: الوعد الاخبار بایصال الخیر فی المستقبل فاذا اخبر انسان بانه یهب احدا او یتصدق علیه او یکرمه او غیر ذلک فهل یجب الوفاء به فیه اختلاف قال طائفة قلیلة یجب الوفاء بالوعد استدلالا بظاهر الحدیث وذهب الجمهور منهم ابوحنیفة والشافعی الی انه یستحب الوفاء بالوعد استحبابا مؤکدا ویکره خلافه کراهة تنزیهیة لا تحریم ویحمل الحدیث عندهم علی العزم علی الاخلاف حال الوعد فانه لا شک فی حرمته...... اقول ویؤیده ایضا حدیث زید بن ارقم عن النبی ﷺ قال اذا وعد الرجل اخاه ومن نیته ان یفی له فلم یف ولم یجیئ للمیعاد فلا اثم علیه رواه ابوداؤد والترمذی.

(حاشیة الغورغشتویة علی المشکوٰة ۱:۱۸ باب الکبائر وعلامات النفاق)

**وهو ما نصه لکن ان تزوج الثانی تلک المرأة بغیر اذن الاول صح النکاح ولکن یاثم.**

(مرقاة ۲ : ۲۱۱)﴿۱﴾. وهوالموفق

## د کویژدن نه پس انکار د وعدې مخالفت دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زید او عمرو د نابالغه لونړو رشتې د یو بل ځامنو ته د ورکولو وعده او اقرار کړې وو، اوس زید دخپلې وعدې نه انکاری دې، او رشته نه ورکوی، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی : سید اعظم کوهاله مری ۱۰ ذی قعده ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** دا سړې د وعدې مخالفت کوی، او که معذور شرعی نه وی، نو په دهٔ کښې شعبه د نفاق موجوده ده﴿۲﴾ کما فی الحدیث اذاوعد اخلف﴿۳﴾ وهو الموفق

## د ضرورت په وجه کویژدن ماتولو سره گناه نه راځی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه د یوې جینۍ کویژدن دوه کاله مخکښې دیو هلک سره وشوه. څو ځله د جینۍ والدینو

---

﴿۱﴾ **(مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ٦ : ۲۱۱ باب اعلان النکاح الفصل الاول)**

﴿۲﴾ **قال العلامة المحدث امین الله فی الارض مولانا نصیر الدین الغورغشتوی: ان الوفاء بالوعد لیس بواجب شرعی بل هو من مکارم الاخلاق بعد ان کان بنیة الوفاء واما جعل الخلف فی الوعد من علامات النفاق کما مر فمعناه الوعد علی نیة الخلف وقیل الخلف فی الوعد من غیر مانع حرام وهو المراد هنا وکان الوفاء بالوعد ماموراً به فی الشرائع السابقة ایضا.** (حاشیة غورغشتویة علی المشکوٰة ۲ : ٤۱٦ **باب الوعد الفصل الاول)**

﴿۳﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه قال : قال رسول اللهﷺ : **آیة المنافق ثلاث، اذا حدث کذب وذا وعد اخلف واذا اؤتمن خان، رواه البخاری (۳۳) ومسلم (الایمان/ ۵۹)** وغیرهما. (بلوغ المرام ۱ : ٤۸۵ **باب الترهیب من مساوئ الاخلاق** )



هغوی ته ؤوئیل چه وادهٔ وکړئ، لیکن اوسه پورې ئې ټال متول کوؤ، اوس هغه هلک یوه رشته داره جینۍ په بهانه ؤتښتوله. او هغه جینۍ وادهٔ کړې هم ده، ددې نه علاوه دا هلک یوڅومیاشتې مخکښې راغلې وو، او زما ښځې ته ئې وئیلې وو چه زما مور او پلار په دې کویژدن خوشاله نه دی. لهذا زما د طرف نه دا جینۍ آزاده ده، لیکن لیکلې ئې رانکړل، اوس زما لور بالغه او تعلیم یافته ده، ددې وجهې نه دهغې په کوربانډې کښېنول مناسب نه معلومیږی او اوس دا جینۍ دهغې هلک سره وادهٔ کولو نه هم انکار کوی، اوس سوال دادې، چه هغه هلک پټ دې، او دهغه مور او خویندې وائي، چه کله هغه راشی نو فیصله به کیږی، اوس زمونږ دپاره څه لاره ده؟ بینوا توجروا

المستفتی : محمد زرین نوشهره

**الجواب:** دا خبره دې واضحه وی، چه کویژدن کښې د گواهانو په مخکښې ایجاب او قبول نه وی شوې، نو دا نکاح نه ده، داسې ښځه آزاده ده.

**لان الخطبة لیس بنکاح لعدم وجود الرکن والشرط﴿۱﴾ وکما فی المرقاة ۵ : ۲۱۱ فی حدیث لا یخطب الرجل علی خطبة اخیه لکن ان تزوج الثانی تلک المرأة بغیر اذن الاول صح النکاح ولکن یأثم انتهیٰ﴿۲﴾، قلت ولا اثم عند تحقیق الضرورة التی جاز عندها تطلیق الحاکم ایاها. وهوالموفق**

## که خطبه کونکی انکار وکړی، نو بل ځائي کښې په نکاح سره ورکولو کښې څه کراهت نشته

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې دخپل

---

﴿۱﴾ **وفی الهندیة: واما رکن (النکاح) فالایجاب والقبول کذافی الکافی...... واما شروطه فمنها الشهادة قال عامة العلماء انها شرط جواز النکاح هکذافی البدائع.**

(فتاویٰ عالمگیریه ۱ : ۲٦۷ **کتاب النکاح الباب الاول)**

﴿۲﴾ **(مرقاة المفاتیح شرح المشکوٰة ٦ : ۲۱۱ باب اعلان النکاح والخطبة والشرط)**

ځوی دپاره د نکاح باره کښې صرف خبرې او وعده وکړه، باقاعده نکاح ئې نه وه کړې بیا هغه سړې انکار وکړو، چه مونږ بل ځائي کښې نکاح کوؤ، آیا اوس دا جینۍ بل ځائي کښې نکاح کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتي: حفیظ الله کمین وزیرستان ۲۲/۱۱/۱۹۷۲

**الجواب:** داخبره دې واضحه وی، چه دې قسمه معاملې ته خطبه وئیلې شي، دا نکاح نه ده. نکاح بغیر د ایجاب او قبول او ګواهانو نه منعقد کیږی نه.

فی تنقیح الفتاویٰ ۱: ۳۱ **لا تکون الخطبة واقعة موقع النکاح اصلا﴿۱﴾ وفی المرقاة ۶: ۲۱۱ لکن ان تزوج الثانی تلک المرأة بغیر اذن الاول صح النکاح ولکن یأثم** انتهیٰ﴿۲﴾ **قلت ولا اثم فی هذه الصورة المسئولة لوجود الترک وقال النبی ﷺ لا یخطب علی خطبة اخیه حتی ینکح او یترک﴿۳﴾**

پس بهرحال جینۍ بل ځائي کښې نکاح کولې شي. وهو الموفق

## د خطبې د وصیت خلاف ورزی او بل ځائي کښې نکاح

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه زید د مرګ په وخت کښې دخپلې نابالغې لور متعلق د ماشومې نیکه ته وصیت وکړو، چه ځما خپله لور د عمروخوی ته ورکوم، په دې کښې ستا هیڅ دخل نشته، اوس د جینۍ مور جینۍ لره بل ځائي ته بوتله، او هلته کښې ددې جینۍ نکاح بل چاسره کوی، او جینۍ لا نابالغه ده؟ ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: راجه محمد یوسف سبزی منډی کیملپور ۱۵/۷/۱۹۷۲

---

﴿۱﴾ (تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۱: ۳۱ قبیل فوائد ذکرها المؤلف مفرقة)

﴿۲﴾ (مرقاة المفاتیح شرح المشکوٰة ۶: ۲۱۱ باب اعلان النکاح الفصل الاول)

﴿۳﴾ (مشکوٰة المصابیح ۲: ۲۷۱ کتاب النکاح باب اعلان النکاح)



**الجواب:** په دې صورت کښې ایجاب او قبول نشته﴿۱﴾. لهذا دې جینۍ لره بل ځائي په نکاح سره ورکول صحیح دی. البته بهتره داده چه وصیت پوره کړې شي. وهو الموفق

## د ټیلی فون په ذریعې د نکاح کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دې مسئلې باره کښې چه نن صبا خلق د ټیلی فون په ذریعې نکاح کوی. آیا دا جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتي: حاجی رشیدالدین واه کینټ ۳۰/۷/۱۹۷۸

**الجواب:** کوم سړې چه د ټیلی فون په ذریعې سره نکاح کوی. مثلا هغه په لاهور کښې وی، او ښځه په لندن کښې وی، نودا سړې دې هغې ښځې یا دهغې ولی ته د ټیلی فون په ذریعه وؤائي، چه خپلې لور سره زما نکاح وتړه، نو هغه دې د ګواهانو په مخامخ دا وؤائي، چه فلانې د ټیلی فون په ذریعې دا پیغام راکړې دې، چه زما د فلانئ سره نکاح وتړه، نو ما فلانئ د فلانې په نکاح کښې ورکړه، که دا ولی (پلار) لاهور والا ته دا کلام د ټیلې فون په ذریعه واؤروی، او که نه اوروی، نکاح شوې ده. (ماخوذ از فتح القدیر بحواله شامی ۲/۳۶۴)﴿۲﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة علاء الدین السمرقندی: واما (النکاح) فی الشرع فعبارة عن وجود رکن العقد مع شروطه امارکنه فهو الایجاب والقبول من الزوجین وهما لفظان یعبر بهما عن الماضی او یعبر باحدهما عن الماضی والاخر عن المستقبل.
(تحفة الفقهاء ۲: ۱۷۶ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله بل غائب) الظاهر ان المراد به الغائب عن المجلس وان کان حاضرا فی البلد......وصورته ان یکتب الیها یخطبها فاذا بلغها الکتاب احضرت الشهود وقرأته علیهم وقالت زوجت نفسی منه او تقول ان فلانا کتب الی یخطبنی فاشهدوا انی زوجت نفسی منه اما لو لم تقل بحضرتهم سوی زوجت نفسی من فلان لا ینعقد لان سماع الشطرین شرط صحة النکاح وباسماعهم الکتاب......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د خط او کتابت په ذریعې د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دي مسئلې باره کښې چه سړې په انګلستان کښې دې، او دغه جنګله په پاکستان کښې ده، نو نکاح څنګه کول پکار ده، ددې قسم یوه مسئله په ماهنامه طیبه سیالکوټ فروری ۱۹۵۶ ص ۳۱ په آخر کښې د سوال اوجواب په شکل کښې درج ده، سوال دادې، چه هلک په برطانیه کښې دې، اوجینۍ دلته، آیا د خط او کتابت په ذریعې نکاح کیدې شی؟ جواب دادې، کیدې شی، په دې طریقه چه جینۍ په خپله یا دغې په خوښه دغې وکیل هلک ته ؤلیکی چه فلانۍ جینۍ مې تاله په نکاح درکړه، اوهلک دې خط لره د ګواهانو په مخکښې ؤلولی، اوبیا دغې ګواهانو په مخکښې قبول اوکړی، ینعقد بکتابه... غائب شرط اعلام الشهود کما فی الکتاب (درمختار ۱۸۰) درخواست دې، چه دا جواب سره ددې مکمل عبارت اود صحیح ترجمې سره د تصدیق شده مهر نه راؤلیږئ؟ ډیره مهربانی به وی.

المستفتي: شیر محمد قریشی کهوټه راولپنډی. ۱۲/۴/۱۹۷۲

**الجواب:** مکمل عبارت دادې، ولا بکتابه حاضر بل غائب بشرط اعلام الشهود بما فی الکتاب مالم یکن بلفظ الامر فیتولی الطرفین فتح (هامش ردالمحتار ۲:۳۶۴)(۱) یعنی په مجلس کښې د حاضر سړي نکاح د خط او کتابت په ذریعې سره صحیح نه ده، بلکه صرف د غائب سړی نکاح د خط او کتابت په

---

(بقیه حاشیه) اوالتعبیر عنه منها قد سمعوا الشطرین بخلاف ما اذا انتفیا قال فی المصفی هذا ای الخلاف اذا کان الکتاب بلفظ التزوج اما اذا کان بلفظ الامر کقوله زوجی نفسک منی لا یشترط اعلامها الشهود بما فی الکتاب لانها تتولی طرفی العقد بحکم الوکالة ونقله عن الکامل وما نقله من نفی الخلاف فی صورة الامر لا شبهة فیه علی قول المصنف والمحققین اما علی قول من جعل لفظة الامر ایجابا کقاضی خان علی ما نقلناه عنه فیجب اعلامها ایاهم ما فی الکتاب. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۸۸ مطلب التزوج بارسال کتاب)

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۸۸ کتاب النکاح)



ذریعې صحیح ده، په شرط ددې چه مرسل الیه ګواهانو لره د خط په مضمون باندې خبر کړی، لیکن که مرسل په خط کښې د امر صیغه ؤلیکله، مثلاً زما نکاح د خپل ځان سره منعقد کړه، نو دې مضمون نه ګواهانو لره خبرول ضروری نه دی، بلکه دومره کافی ده، چه د ګواهانو په مخکښې ؤوائي، چه ما مثلاً فلانۍ په نکاح کښې قبوله کړه. وهو الموفق

## د ؤرک شوی سړی د کویژدن کړې جینۍ د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین شرع متین دي مسئلې باره کښې چه د زید د لور د عمرو د ځوی سره کویژدن شوې وه، د کویژدن په څو شپو کښې د رواج مطابق خلق جمع شوې وو، خوراک وغیره تقسیم شوې وو، لیکن د نکاح خطبه نه وه لوستې شوې، اوس د عمروځوی د دولسو کالونه ؤرک دې، د ډیر کوششونو نه پس ئې هم پته ؤنه لګیده، اوس د زید لور بالغه شوې ده، آیا هغه د بل سړې په نکاح کښې ورکولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتي: مسافر شاه کتوزئي چارسده. ۲۴/۸/۱۹۷۷

**الجواب:** داخبره دې واضحه وی، چه خطبه "کویژدن" نکاح نه ده، لعدم الرکن والشرط ویدل علیه ما فی المرقاة ۶\۲۱۱، لکن ان تزوج الثانی تلک المراة بغیر اذن الاول صح النکاح ولکن یاثم(۲). پس په دې صورت کښې ددې جینۍ بل ځائې کښې نکاح کول جائز دی، او نافذ دی، او ګناه په کښې هم نشته، ځکه چه په داسې صورت کښې چه منکوحې دپاره تنسیخ نکاح جائز وی، نود مخطبې دپاره به بل ځائې کښې نکاح کول په طریقه اولی جائزوی. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة المرغیناني: النکاح ینعقد بالایجاب والقبول...... ولا ینعقد نکاح المسلمین الا بحضور شاهدین حرین عاقلین...... ان الشهادة شرط فی باب النکاح لقوله علیه السلام لانکاح الا بشهود. (هدایه ۲:۳۰۵،۳۰۶ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ (مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۶:۲۱۱ باب اعلان النکاح الفصل الاول)

## په صلح کښې رشته ورکولو کښې د ایجاب او قبول او خطبې مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید او سلمان قریبي رشته دار دی، په هغوی کښې څه جګهړه وه. او خفګان سخت شوې وو، زید د سلمان خاندان والو ته ؤوئیل چه مونږ صلح کول غواړو. او رشته هم، نو زید یوه جرګه د حیات نور په مشری کښې واستوله. زید د خپلې لور ګل مکئی چه نابالغه وه. دهغې وکیل ئې حیات نور مقرر کړو، حیات نور ؤوئیل چه که مالره مختار او وکیل جوړوې، نو زۀ دا رشته د سلمان ورور لقمان دپاره اخلم، ځکه چه هغه ستا نه زیات خفه دې، زید ؤوئیل چه زما دطرف نه تاته مکمل اختیار دې. نو زید درې ځله اختیار ورکړو، یعنی دا ایجاب او قبول درې ځله ؤشو. اوس سوال دادې. چه دې درې ځله ایجاب او قبول سره ددې جینۍ نکاح د لقمان سره ؤشوه او که نه؟ او که بل ځائې کښې دا رشته ورکړې شی. نو دا نکاح به منعقد وی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالحئې بټل هزاره. ۱۲اپریل **۱۹۸۵**

**الجواب:** دا درې ځله ایجاب او قبول د توکیل دپاره شوې دې، ددې نه د حیات نور وکیل کیدل ثابتیږی. اوپه کوم ایجاب او قبول سره چه نکاح منعقد کیږی، په دې کښې دهغې هیڅ ذکر لیکلې شوې نه دې، لهذا دا معامله د خطبې ده د نکاح نه ده، پس بل ځائې کښې ددې جینۍ نکاح سره د کراهیت نه جائز ده.

**کما فی المرقاة ۲: ۲۱۱ لکن ان تزوج الثانی تلک المرأة بغیر اذن الاول صح النکاح ولکن یأثم﴿۱﴾. وهوالموفق**

## آیا په رسم د سوره کښې جینۍ ورکولو سره نکاح منعقد کیږی؟

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه بعضې علماء او د قوم

﴿۱﴾ (مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۲: ۲۱۱ باب اعلان النکاح الفصل الثانی)



مشران د دشمنانو په مینځ کښې صلح کوی، مثلا چرته قتل شوې وی، که په قصد سره وی، او که په خطاء سره. نو په صلح کښې د قاتل لور یا خور، که لویه وی او که وړوکې، د مقتول په خاندان کښې چاته په نکاح سره ورکوی. دې دپاره چه رشته داری قائمه شی او دزړۀ نه صلح وشی، دې ته رسم سوره وائي، په دې رسم کښې نکاح منعقد کیږی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نامعلوم...... ۳۰ صفر ۱۴۰۲ھ

**جواب: لا ضیر فی هذا النوع من النکاح لان سد باب الفتنة مصلحة عظیمة﴿۱﴾ ولیس هذا نکاح الشغار لوجود الامهارفیه دون نکاح الشغار ولان نکاح الشغار منهی مادام کان شغاراوالامر ان نکاح الشغار یلزم فیه مهر المثل فینقلب الی النکاح الشرعی﴿۲﴾. وهوالموفق**

﴿۱﴾ د سورې په رسم کښې دوه خبرې عموما پیښیږی، یو هغه کوم چه په سوال کښې ذکرده، چه بیا د زړۀ مینه او رشته داری قائمه شی او دشمنې ختمه شی، او د نزدې رشته دارو په شان ؤسیږی، او دویمه خبره داچه په بعضو علاقو کښې د سورې په شکل کښې انتقام ددې مظلومې جینۍ نه اخستلې کیږی، اوهغې سره د ځناورو نه بد تره رویه ساتلې شی، پس په کومو علاقو کښې چه د سورې نه مصلحت او صلح صفائي حاصلیږی، نوبیا دا لاباس به ده، اودویم صورت کښې چه جینۍ نه د دشمنۍ انتقام اخستلې شی، او جینۍ لره په اور کښې اچوی اوخپله آرام سره ژوند تیروی، نوبیا دا رسم سوره د ظلم یو صورت دې، اوجائز نه ده، او د نکاح چه کومه معامله ده، که د نکاح ټولې شرعي تقاضې پوره شوې وی، نو په دواړو صورتونو کښې نکاح بهرحال جائز ده، البته په عاقله بالغه باندې جبر دنکاح نشې کولې............ (از مرتب)

﴿۲﴾ **قال العلامه الحصکفی: ووجب مهر المثل فی الشغار ان یزوجه بنته علی ان یزوجه الآخر بنته او اخته مثلاً معاوضة بالعقدین وهو منهی عنه لخلوه عن المهر فاوجبنا فیه مهر المثل فلم یبق شغاراً.**

**( الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۶۱ مطلب نکاح الشغار)**

## د رخصتی نه پس د خاوند په کور کښې د نکاح تړلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلې باره کښې چه زمونږ په علاقه کښې یو خاصه قبیله د وادهٔ په موقع د خپلو جینکو نکاح رخصتی نه پس د خاوند په کور کښې تړي، دا نکاح جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبد الرحمٰن
خطیب کوټ نجیب الله هزاره ۱۳ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د رخصتی نه پس د خاوند په کور نکاح تړل خلاف سنت، خلاف تعامل سلف او خلاف تعامل امت دی. البته ممنوع یا حرام نه دی. ﴿۱﴾ وهو الموفق

## څه موده تیریدو نه پس د تجدید نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلې باره کښې چه آیا په کتابونو کښې دا مسئله موجوده ده. چه څه موده تیریدو نه پس تجدید نکاح کول پکار دی، بنده سره اوس دا فکرملګرې شوې دې، چه اوسه پورې ما دا کار نه دې کړې، لهذا د مسئلې وضاحت ؤفرمایئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: امان الله

**الجواب:** تجدید نکاح څه ضروری کار نه دې، البته مستحب دې.
کمافی ردالمحتار ۱: ۳۹ **والاحتیاط ان یجدد الجاهل ایمانه کل یوم ویجدد نکاح امرء ته عند شاهدین فی کل شهر مرة او مرتین﴿۲﴾. وهو الموفق**

﴿۱﴾ یدل علیه ما فی الدر المختار: ولذا ستحسنوا التجدید عند الزفاف.
(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۲۵ باب الولی)
﴿۲﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱: ۳۲ قبیل مطلب فی فرض الکفایة وفرض العین)
..........



## هره میاشت تجدید نکاح او په عام سړي باندې د تجدید کولو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلې باره کښې چه د دوؤ ګواهانو په موجودګۍ کښې یو عام سړې د تجدید نکاح دپاره په خاوند او ښځې ایجاب او قبول کوی، آیا دا صحیح ده، او په شریعت کښې څو ورځې پس د تجدید نکاح ګنجائش دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: صالح مسعود اسلام آباد سکیټریټ. ۱۹ رمضان ۱۴۰۹ھ

**الجواب:** دا تجدید صحیح او د شریعت مطابق دې، او تجدید نکاح هره میاشت یا نیمه میاشت پس جائز ده.
**کما فی ردالمحتار ۱: ۳۹ ویجدد نکاح امرء ته عند شاهدین فی کل شهر مرة او مرتین اذا لخطأ وان لم یصدر من الرجل فهو من النساء کثیر﴿۱﴾. وهو الموفق**

## د معشوقې سره وادهٔ نه کیدلو په وجه په آخرت کښې د ملاویدو دعا کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلې باره کښې چه یو سړې د تره لور سره محبت کوی، او هغه د دهٔ معشوقه ده، لیکن د کوششونو باوجود نکاح ؤنشوه، اوس که زید دا دعا کوی، چه په آخرت کښې ماته دا د تره لور ملاؤ شی، نو د دې دعا په غوختلو هغه ګناهګار دې او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الرحمٰن نوشهره. ۲۹/۱۲/۱۹۸۵

**الجواب:** دا سوال نه مطلوب شرعی دې او نه ممنوع شرعی دې، د مسلمان دپاره بالکل دا مناسب نه ده، چه د حالت نزع، عذاب قبر، عذاب حشر او عذاب جهنم نه غافله شی، او د نفس د خواهشاتو آرزومند شی﴿۲﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدر المختار ۱، ۳۲ قبل مطلب فی فرض الکفایة وفرض العین)
﴿۲﴾ قال لله تبارک وتعالیٰ: من کان یرید حرث الآخرة نزدله فی حرثه ومن کان یرید حرث الدنیا نؤته منها وماله فی الآخرة من نصیب.
(سورة الشوریٰ آیت: ۲۰ پاره: ۲۵)

## د حضرت آدم علیه السلام او حضرت حواء د نکاح مهر او د ګواهانو تحقيق

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه د حضرت آدم علیه السلام نکاح په کوم ځائي کښې چا کړې وه، او ګواهان څوک جوړ شوي وو، او مهر څه مقرر شوي وو؟ بينوا توجروا

المستفتی : فريق الله صالح

**الجواب:** (۱) ددې متعلق په وحی (قران و حديث) کښې تفصيل نه ملاويږی، او په ظاهر کښې دا معلوميږی چه آدم علیه السلام ته د وحی په ذريعه د استمتاع (فائده اخستلو) اجازت ملاؤ شوي وو. لکه څنګه چه مونږ ته د ګواهانو په مخامخ ايجاب و قبول کولو سره اجازت ملاويږی.

(۲) د مهر متعلق په بعضو رواياتو کښې راغلې دی، چه په نبی کريم صلی الله علیه وسلم باندې درود شريف ليږل حق مهر مقرر کړې شوي وو. کما فی الصاوی ﴿۱﴾ وغيره ﴿۲﴾ فليراجع. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة الفقير احمد الصاوی المالکی: وقد خلقت بعد دخول الجنة نام فلما استيقظ وجدها فاراد ان يمديده اليها فقالت له الملائکة مه ياآدم حتی تؤدی مهرها، فقال وما مهرها فقالوا ثلاث صلوات او عشرون صلاة علی سيدنا محمد صلی الله علیه وسلم ولا يقال ان شرط الصداق عود منفعته للزوجة لاننا نقول ليس المقصود منه حقيقة المهر وانما هو ليظهر قدر محمد لآدم من اول قدم اذ لولاه ما تمتع بزوجة فهو الواسطة لکل واسطة حتی آدم.

(حاشية الصاوی علی تفسير الجلالين ۱: ٦۲ تحت الآيت اسکن انت وزوجک الجنة)

﴿۲﴾ قال الشيخ محمد ابن احمد بن اياس الحنفی: فلما نزل آدم عن المنبر جلس بين الملائکة فالقی الله عليه النوم لان فيه راحة للبدن فلما نام رأی حواء فی منامه قبل ان تخلق فمال اليها حين نظرها ثم اخرجها من ضلعه الايسر فخلقت منه حواء علی هيئته وان الله خلقها واعطاها حسن الف حورية فکانت احسن النساء اللآتی من بناتها الی يوم القيامة وکان لها سبع مأة ضفيرة من الشعر فکانت علی طول......

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



(بقيه حاشيه) آدم والبسها الله من الجنة الحلی والحلل فکانت تشرق اشراقا ابهی من الشمس فانتبه آدم من منامه فوجدها بجانبه فاعجبته والقی الشهوة فی آدم فهم بها فقيل له لاتفعل حتی تؤدی صداقها فقال وما صداقها قال نهيتک عن شجرة الحنطة فلا تاکل منها فهو صداقها وقيل ان الله قال اعطها صداقا، قال وما صداقها قال الصلواة علی نبی وحبيبی محمد، فقال آدم يارب ومايکون محمد، قال انه من اولادک وهو آخر الانبياء ولولاه ما خلقت خلقا...... ثم زوج الله تعالیٰ آدم بحواء وکان ذلک يوم الجمعة بعد الزوال ولهذا سن عقد التزوج فی يوم الجمعة الخ.

(بدائع الزهور فی وقائع الدهور ۳۵، ۳٦ ذکر قصة آدم عليه السلام)

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

## فتاوی فریدیه ثلورم جلد

## باب ما یجوز تزویجها وما لا یجوز



..........



بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

قال الله تعالى:........

حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهٰتُكُمْ وَبَنٰتُكُمْ وَأَخَوٰتُكُمْ
وَعَمّٰتُكُمْ وَخٰلٰتُكُمْ وَبَنٰتُ الْأَخِ وَبَنٰتُ الْأُخْتِ
وَأُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِىٓ أَرْضَعْنَكُمْ وَأَخَوٰتُكُم مِّنَ
الرَّضٰعَةِ وَأُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ وَرَبٰٓئِبُكُمُ الّٰتِى فِى
حُجُورِكُم مِّن نِّسَآئِكُمُ الّٰتِى دَخَلْتُم بِهِنَّ ز
فَإِن لَّمْ تَكُونُوا دَخَلْتُم بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ
عَلَيْكُمْ ز وَحَلٰٓئِلُ أَبْنَآئِكُمُ الَّذِينَ مِنْ
أَصْلٰبِكُمْ لا وَأَن تَجْمَعُوا بَيْنَ الْأُخْتَيْنِ إِلَّا
مَا قَدْ سَلَفَ ط إِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿٢٣﴾ لا

......[النساء: ٢٣]........

# باب ما یجوز تزویجها وما لا یجوز (المحرمات)

## قانونی پابندی باوجود هر سړي ته د ثلورو ښځو اجازت شته

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلي باره کښ چه یو سړي تقریبا اتۀ کاله مخکښ واده کړې دې، او اولاد ئي هم موجود دي، اوس هغه سړي دویم وادهٔ کړې دې، اګر چه د شریعت مطابق درست او صحیح دي، لیکن د حکومتي قانون مطابق ناجائز دي، او هغه سړي د حکومت د قانون خلاف ورزی کړې ده، او د حکومت نه ئي هم اجازت اخستلي نه دې، او نه ئي دخپلي ښځي نه اجازت اخستلي دې، آیا دا دویمه نکاح جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: مفقود العنوان

**الجواب:** د هر سړي دپاره په شریعت کښ د ثلور ښځو کولو اجازت دي﴿۱﴾، که اوله ښځه اجازت ورکوی او که نه، که حکومت اجازت ورکوی او که نه، په شرط د دي چه د دي بلي حق نه تباه کوی، قال الله تعالیٰ: **فانکحوا ماطاب لکم من النساء مثنی وثلث ورباع فان خفتم الا تعدلوا فواحدة** (الآیة)﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾وفی الهندیة: لا یحل للرجل ان یجمع بین اکثر من اربع نسوة کذا فی محیط السرخسی. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۷۷ المحرمات بالجمع)

وقال العلامة الحصکفی: وصح نکاح اربع من الحرائر والاماء فقط للحر لا اکثر. (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۱۶ قبیل مطلب لو زوج المولیٰ امته)

﴿۲﴾قال جلال الدین السیوطی: (فانکحوا) تزوجوا ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## اوله نکاح په شرعی رجسټر کښ نه درج کیدلو باوجود بل ځائي کښ نکاح حرامه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلي باره کښ چه یو سړي دعائلي قوانینو نه مخکښ وادهٔ کړې وو، لیکن د نکاح د رجسټرار په رجسټر کښ نکاح نه وه، اوس بل سړي دي ښځي لره ؤتښتوله او خپله ئي ورسره نکاح وکړه، او د نکاح د رجسټرار په رجسټر کښ ئي درج کړه، اولنی خاوند د ښځي او سړي خلاف په عدالت کښ مقدمه واچوله، عدالت سره ددي نه چه مولوی صاحب هم شهادت ورکړو چه دا نکاح ما تړلي ده، لیکن عدالت د ښځي بیان او رجسټرړ ته ترجیح ورکړه، او د مقدمې فیصله ئي د بل سړي په حق کښ وکړه، آیا شرعا دا نکاح صحیح ده؟ که صحیح نه وی، نو آیا دا دویم سړي واجب القتل دې؟ دا ښځه او په دي نکاح کښ امداد کونکی وغیره واجب القتل دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد شفیع کیولری لاهور ۱۲/۴/۱۹۶۹

**الجواب:** شرعی لحاظ سره د منکوحي دویمه نکاح حرامه ده، قال الله تعالیٰ: والمحصنات من النساء (الآیة)﴿۱﴾. اودا ټول په ټوله واجب التعزیر دی، د عوامو دپاره ضروری ده چه دوی سره تعلقات ختم کړی، او د حاکم دپاره ضروری ده، چه دوی ته مناسب سزا ورکړی،

وفی الهندیة (۲:۱۸۷) وینقسم الی ما هو حق الله وحق العبد والاول یجب علی الامام

(بقیه حاشیه) (ما) بمعنی من (طاب لکم من النساء مثنیٰ وثلاث ورباع) ای اثنین اثنین وثلاثا ثلاثا واربعا اربعا ولا تزیدوا علی ذلک (فان خفتم ان لاتعدلوا) فیهن بالنفقة والقسم (فواحدة) انکحوها (او) اقتصروا علی (ماملکت ایمانکم) من الاماء اذ لیس لهن من الحقوق ما للزوجات (ذلک) ای نکاح الاربع فقط او الواحدة او التسری (ادنی الا تعولوا) تجوروا. (التفسیر الجلالین ۱:۷۷ سورة النساء آیت ۳ پاره: ۴)

﴿۱﴾(سورة النساء پاره: ۵ آیت: ۲۴)

ولا یحل له ترکه...... قالوا لکل مسلم اقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة و اما بعد المباشرة فلیس ذلک لغیر الحاکم﴿۱﴾ وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم من رءیٰ منکم منکرا فلیغیره بیده (الحدیث)﴿۲﴾. وهو الموفق

## د حمل حمل سره نکاح، شرعی نکاح نه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه شپږ کسان یوځائي ناست وو، پنځو کسانو زید ته د چائي څکولو ؤوئیل، زید ؤوئیل چه چائي خو څه معامله نه کلو نه پس څکولې کیږي، په خبرو خبرو کښې زید ؤوئیل چه د طالب وادهٔ شوي دي، کیدې شي چه ښځه ئې حامله وي، طالب ؤوئیل چه آو حامله ده، زید ؤوئیل چه زما ښځه هم حامله ده، نو سودا به داوي، چه که دیو جینۍ او دبل هلک پیدا شو، نو دا جینۍ به ددې هلک منکوحه وي، طالب هم منظوري ورکړه، او آؤ ئې وکړل، دهغې نه پس زید مجلس والو باندې چائي وڅکوله، او د دعا سره مجلس ختم شو، اوس د الله تعالیٰ کول داسې وو، چه زید ته ئې هلک او طالب ته ئې جینۍ ورکړه، زید څه موده پس د یو عالم نه تپوس وکړو، هغه ؤوئیل چه نکاح شوې ده، لیکن طالب په توقه واړوله، ددې نکاح څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتي: قاسم نائب قاصد ماتونګی لکی مروت ۲۴ جمادی الاول ۱۴۰۲هـ

**الجواب:** چونکه محل د نکاح ښځه ده﴿۱﴾، کما فی ردالمحتار ۲:۳۵۶﴿۲﴾ او

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۲:۱۶۷ فصل فی التعزیر)

﴿۲﴾ (رواه مسلم، مشکواة المصابیح ۲:۴۳۶ باب الامر بالمعروف)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: (ومن شروطها) المحل القابل وهی المرأة التی احلها الشرع بالنکاح کذا فی النهایة. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۶۷ کتاب النکاح)

﴿۴﴾ قال العلامة الشامی: (قوله من امرأة) والمراد بها ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



اضافت الی المستقبل نامنظور او کالعدم دي، کما فی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۴:۲۳۴ ﴿۱﴾. پس دا وعده شرعی نکاح نشي کیدې، وقد کان من امر الجاهلیة ومضی. وهو الموفق

## د یوې ښځې د پیرې سړي سره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې که یوه ښځه دا دعوی وکړي، چه ما پیرې سره نکاح کړې ده، آیا شرعا دا جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتي: سید رزاق کوهاله مری

**الجواب:** فقهاؤ د انسان دپاره د پیری سره نکاح ناجائز ګڼرلې ده، په دې سره د زنا دروازه پرانستې شي. والتفصیل فی ردالمحتار فلیراجع﴿۲﴾. وهو الموفق

## د مخطوبة الاب سره د نکاح حکم :

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړي یوې ښځې ته د

(بقیه حاشیه) المحققة انوثتها بقرینة الاحتراز عن الخنثی...... والاولیٰ ان یقال ان محلیته انثیٰ محققة من بنات آدم لیست من المحرمات الخ.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲:۲۸۱ کتاب النکاح)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: ولا اضافته الی المستقبل کتزوجتک غدا او بعد غد لم یصح. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۲۰ قبیل باب الولی)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: فی الاشباه عن السراجیة لا تجوز المناکحة بین بنی آدم والجن وانسان الماء لاختلاف الجنس ومفاد المفاعلة انه لا یجوز للجنی ان یتزوج انسیة ایضا...... الاصح انه لا یصح نکاح آدمی جنیة کعکسه لاختلاف الجنس فکانوا کبقیة الحیوانات. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۲۸۲ کتاب النکاح)

نکاح پیغام ورکړو . لیکن نکاح شوې نه وه، اوس ددې سړي په وفات کیدلو سره ددې سړي ځوی دهغې ښځې سره نکاح کولې شي؟ بینوا توجروا

المستفتی : نامعلوم...... ۲۵/۵/۱۹۸۵

**الجواب:** که باقاعده ایجاب او قبول شوې نه وی، نو د اعراض یا وفات نه پس ځوی دهغې سره نکاح کولې شي.

لان العقد يتم حقيقة بالايجاب والقبول لا الخطبة﴿۱﴾ ويدل عليه ما في الهندية ۱: ۲۸۵ وتثبت حرمة المصاهرة بالنكاح الصحيح دون الفاسد فلو تزوجها نكاحا فاسدا لا تحرم عليه امها بمجرد العقد بل بالوطء﴿۲﴾. وهو الموفق

## د مقتول ښځې سره د قاتل نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید یو سړې لره ددې وجه نه وژنی چه دهغه ښځې سره نکاح وکړي، آیا دا نکاح جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی : محمد خورشید ګنډهیری، نوښار

**الجواب:** قتل ډیر لوئي ظلم او ګناه ده، لیکن په دې سره د نکاح حراموالي نه راځي، البته د میراث نه محرومه کیدل راځي﴿۳﴾، دا قسمه واقعه د هابیل او قابیل متعلق نقل ده﴿۴﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن نجيم: وينعقد النكاح اى ذلك العقد الخاص ينعقد بالايجاب والقبول حتى يتم حقيقة في الوجود. (البحر الرائق ۳: ۸۱ كتاب النكاح)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۴ القسم الثانى المحرمات بالصهرية)

﴿۳﴾ وفي الهندية: القاتل بغير حق لا يرث من المقتول شيئا عندنا سواء قتله عمدا او خطأ. (فتاویٰ عالمگیریه ۲: ۴۵۴ الباب الخامس في الموانع)

﴿۴﴾ قال العلامة عماد الدين ابن كثير: كان لا يولد......(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## د شاګرد د پاره د پیر یا داستاذ ښځه یا خور جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د پیر یا استاذ ښځه یا خور شاګرد یامرید دپاره په نکاح کښې راوستل جائزدی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی : محمد ولی الله ۱۰/۲/۱۹۷۳

**الجواب:** اجماعا جائز او حلال ده.﴿۱﴾ وهو الموفق

## وکیل لره د مؤکلې د لور سره نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه وکیل لره د خپلې مؤکلې د لور سره نکاح جائز ده او که نه؟ او زمونږ په معاشره کښې عموما دې لره ناجائز ګڼړلې شي. د شریعت مطابق څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی : شفیع الله مغلپوره لاهور ۱۲ ذی قعده ۱۳۰۹۷ه

---

(بقيه حاشيه) لآدم مولود الاولد معه جارية فكان يزوج غلام هذا البطن جارية هذا البطن الآخر ويزوج جارية هذا البطن غلام هذا البطن الآخر، حتى ولد له ابنان يقال لهما: هابيل وقابيل وكان قابيل صاحب زرع وكان هابيل صاحب ضرع وكان قابيل اكبرهما وكان له اخت احسن من اخت هابيل، وان هابيل طلب ان ينكح اخت قابيل فابى عليه، وقال هي اختي ولدت معي وهي احسن من اختک وانا احق ان اتزوج بها فامره ابوه ان يزوجها هابيل فابى وانهما قربا قربانا الى الله عزوجل ايهما احق بالجارية...... فلما انطلق آدم قربا قربانا، وكان قابيل يفخر عليه، فقال: انا احق بها منک هي اختي وانا اكبر منک وانا وصي والدي...... فاكلت قربان هابيل وتركت قربان قابيل فغضب وقال: لاقتلنک حتى لا تنكح اختي فقال هابيل انما يتقبل الله من المتقين . رواه ابن جرير. (تفسير ابن كثير ۲: ۵۹ سورة المائدة آيت: ۲۷)

﴿۱﴾ قال الله تبارک وتعالیٰ: واحل لكم ما وراء ذلكم. (سورة النساء آيت: ۲۴ پاره: ۵)

الجواب: د وکیل د خپلې مؤکلې د لور سره نکاح جائز ده، دا دغه د محرماتو نه نه ده، او عدم جواز صرف محرماتو پورې خاص دې، کما فی کتب الفقه﴿١﴾. وهو الموفق

## د دینی ورور سره نکاح او په مهر کښې د شریک کیدلو مسئله

سوال: څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دینی ورور (په خولې وئیلې شوې ورور) سره نکاح جائز ده او که نه؟ او دا ورور په مهر کښې حصه دار دې او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عارف ژوب ملیشا بلوچستان

الجواب: وکیل د نکاح، که هغه ته د نکاح پلار وئیلې شی، او که ورور، دغه شان دینی ورور نه د ټول مهر حقدار دې، اونه د بعضې مهر حقدار دې، او نه دغه سره نکاح حرامه ده، او نه دغه مخکښې بې پرده کیدل جائز دی، ونظیره کالمتبنی﴿٢﴾. وهو الموفق

﴿١﴾ قال الامام اکمل الدین البابرتی: (بیان المحرمات) لما کانت من بنات آدم من اخرجها الله عن محلیة النکاح بالنسبة الی بعض بنی آدم احتاج الی ذکرها فی فصل علی حدة واسباب حرمتهن تتنوع الی تسعة انواع القرابة والمصاهرة والرضاع والجمع وتقدیم الحرة علی الامة وقیام حق الغیر من نکاح او عدة والشرک وملک الیمین والطلقات الثلاث وکل ذلک مذکور فی الکتاب.

(شرح العنایة علی هامش فتح القدیر ٣:١١٧ فصل فی بیان المحرمات)

﴿٢﴾ قال الله تعالیٰ: وما جعل ازواجکم الّٰئی تظهرون منهن امهتکم وما جعل ادعیآئکم ابنائکم، ذلکم قولکم بافواهکم والله یقول الحق وهو یهدی السبیل، ادعوهم لآبائهم هو اقسط عند الله فان لم تعلموا ابائهم فاخوانکم فی الدین وموالیکم.

(سورة الاحزاب پاره: ٢١ آیت: ٤،٥)



## پردې سړې د نکاح وکیل جوړیدلو سره ورور نه جوړیږی

سوال: څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د وادۀ په وخت کښې چرته لرې رشته دار لره د نکاح دپاره وکیل جوړولو دپاره ورور جوړولې شی، ددې نه پس هغه ددې خور سره رابطه ساتی، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: نعیم الرحمٰن ارباب روډ پیښور. ٢شعبان ١٤٠١ھ

الجواب: دا سړې که دغه ښځې د محارمو نه نه وی، نود نکاح وکیل جوړیدلو سره ورور نه جوړیږی، دا پردې وی، ددۀ نه پرده کول ضروری دی، دا د ضررونو او خرابو نه ډک یو جاهلانه رسم دې﴿١﴾. وهو الموفق

## دینی ورور خور جوړیدل شیطانی مکر دې او په دواړوکښې نکاح جائزده

سوال: څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ما یوې ښځې ته دینی خور وئیلې دی، آیا زۀ دغې سره نکاح کولې شم؟ بینوا توجروا

المستفتی: شبیر حسین کوهاټ

الجواب: دا ښځه نه ستا خور ده، او نه دغې سره د خور شان رویه جائز ده، دا یو شیطانی مکر دې، چه په ناجائزتعلقاتو باندې پردې اچولو دپاره استعمالولې شی، بهرحال د داسې ښځې دې دینی ورور سره نکاح بالکل جائز ده. وهو الموفق

﴿١﴾ قال عبد الله النسفی: (ذلکم قولکم بافواهکم) ای ان قولکم للزوجة هی ام وللدعی هو ابن قول تقولونه بألسنتکم لا حقیقة له اذ الابن یکون بالولادة وکذا الام (والله یقول الحق) ای ما حق ظاهره وباطنه.

(التفسیر النسفی ٢:٣٣٤ سورة الاحزاب پاره: ٢١ آیت:٥)

## د انشورنس کاروبار کونکی د لور سره رشته کولو کښې هیڅ ګناه نشته

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې د یو معتبر دینداره سړې په مخکښې دا الفاظ ؤوئیل چه مولانا صاحب ما د یو کال سوچ او فکر نه پس د انشورنس کاروبار شروع کړې دې، او زهٔ دې لره عبادت ګڼړلو سره کوم، کوم سړې چه د الله تعالی حرام شوې لره حلال ؤګڼړی، او صرف ګڼړی ئې نه، بلکه عملاً دغې کاروبارهم کوی، د داسې سړې لور سره رشته کول جائز دی او که نه؟

المستفتی: بشیر احمد جامعه اشرفیه سرګودها. ۱۲/۷/۱۹۷۴

**الجواب:** په ظاهر کښې د لور دا عقیده کیدل معلوم نه دی، لهذا په دې رشته کښې به هیڅ ګناه نه وی﴿۱﴾.وهو الموفق

## که د تښتولې شوې ښځې نکاح نه منلې شوې وی.
## او نه دلائل وی. نو بل ځائې کښې نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې یوه جینۍ ؤتښتوله، چه دغې رپورټ د اسلام آباد په تهانه کښې لیکلې شوې دې، د ډیر کوشش نه پس مونږ دغه جینۍ ؤموندله، د جینۍ اقرار دادې، چه دغې سړې نکاح نه ده کړې، د ملزم رشته دار هم دا اقرار کوی، او ملزم خپله پټ دې، آیا مونږ ددې جینۍ نکاح بل ځائې کښې کولې شو؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اصبر کوهستانی اسلام آباد. ۹/۸/۱۹۷۸

**الجواب:** که تښتونکی سره باقاعده نکاح کول ﴿۲﴾ نه مسلمه وی، اونه مبرهنه،

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفي: وفی شرح الوهبانية للشرنبلالی ما یکون کفرا اتفاقا یبطل العمل والنکاح.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۳۲۸ باب المرتد)

﴿۲﴾ قال العلامه الحصکفي: النکاح هو عقد یفید ملک... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



نو ددې تښتولې شوې ښځې بل ځائې کښې نکاح جائز ده﴿۱﴾. وهو الموفق

## د نابالغ لیور سره نکاح نه پس بل ځائې کښې نکاح باطله ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوه کنډه ښځه د عدت تیرولو نه پس د خاوند مرحوم کشر وررور سره نکاح وکړی، چه هغه وخت کښې نابالغه وی، او ښځه په خپله مرضۍ سره مهر مقرر کړی، او وکیل هم مقرر کړی، د نکاح په وخت دوه ګواهان هم موجود وی، د جمات امام ته د خپلې رضا سره د عقد کولو لیکل هم ورکړی، بیا شپږ میاشتې پس د والدینو په وینا دهغه کور ته لاړه شی، اوس والدین هغې لره بل ځائې کښې ورکول غواړی، آیا دا نکاح په نکاح باندې جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوفی محمد اسماعیل سکوائر روډ راولپنډی.

**الجواب:** که دا عقد دعدت تیریدو نه پس (یعنی د وضع حمل یا څلور میاشتې او لس ؤرځې تیریدو نه پس) شوې وی﴿۲﴾، او د هلک د طرف نه څه وکیل یا ولی موجود وو، او دهغه په ذریعه ایجاب او قبول شوې وی﴿۳﴾، نو ددې کنډې بل ځائې نکاح باطل او کالعدم دی، قال الله تعالی: والمحصنٰت من ....

---

(بقیه حاشیه) المتعة ای حل استمتاع الرجل من امرأة لم یمنع من نکاحها مانع شرعی فخرج الذکر...... والمحارم.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۸۱ کتاب النکاح)

﴿۱﴾ وفی الهندية: لا یجوز للرجل ان یتزوج زوجة غیره و کذلک المعتدة.

(فتاویٰ عالمګیریه ۱:۲۸۰ القسم السادس المحرمات التی یتعلق بها حق الغیر)

﴿۲﴾ وفی الهندية: لا یجوز للرجل ان یتزوج زوجة غیره و کذلک المعتدة سواء کانت العدة عن طلاق او وفاة او دخول فی نکاح فاسد الخ.

(فتاویٰ عالمګیریه ۱:۲۸۰ القسم السادس المحرمات التی یتعلق بها حق الغیر)

﴿۳﴾ وفی الهندية: واما شروطه فمنها العقل والبلوغ ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

من النساء ﴿۱﴾ وصرح به جمیع ارباب الفتاوی﴿۲﴾. وهو الموفق

## د میرنزې خوابنې سره نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د یو سړې خوم د (خوابنې نه علاوه) ددې سړې بلې ښځې سره نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد خان نو ښار ۴ صفر ۱۴۰۵ھ

**الجواب:** داد محرماتو نه نهٔ ده. (ماخوذاز (شامی ۲: ۳۹۱، ۳۹۰)﴿۳﴾ وهو الموفق

## د ځوی د ښځې د ښوابنې د دویم خاوند سره نکاح کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیوې ښځې داول خاوند نه یو ځوی وو، هغې ښځې دویم وادهٔ وکړو، ځوی ئې هم وادهٔ وکړو او مړشو،

---

(بقیه حاشیه)والحریة فی العاقد الا ان الاول شرط الانعقاد فلا ینعقد نکاح المجنون والصبی الذی لا یعقل والاخیران شرطا النفاذ فان نکاح الصبی العاقل یتوقف نفاذه علی اجازة ولیه.

(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲٦٧ کتاب النکاح الباب الاول)

﴿۱﴾ (سورة النساء آیت: ۲۴ پاره: ۵)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجیم: والتفاء محلیة المرأة للنکاح شرعا باسباب تسعة...... السادس المحرمة لحق الغیر کمنکوحة الغیر ومعتدته الخ.

(البحر الرائق ۳: ۹۲ فصل فی المحرمات)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: فجاز الجمع بین امرأة وبنت زوجها او امرأة ابنها او امة ثم سیدتها لانه لو فرضت المرأة او امرأة الابن او السیدة ذکرا لم یحرم بخلاف عکسه.

(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۹ فصل فی المحرمات)

.............



او س د ځوی ښځې ئې ددې ښځې ددویم خاوند سره نکاح وکړه، آیا دا ښځه یعنی دهلک مور او دهلک ښځه په یوه نکاح کښې جمع کیدې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ نیک محمد هائي سکول شیخان پیښور ۱۲ ربیع الاول ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** دا جمع جائز ده.

کما فی شرح التنویر ۲: ۳۹۱ علی هامش ردالمحتار: فجاز الجمع بین امرأة وبنت زوجها او امرأة ابنها﴿۱﴾. وهوالموفق

## ماما د خورې طلاقه کړې شوې ښځې سره نکاح کولې شی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید خپلې منکوحې زبیدې ته طلاق ورکړو، او د زبیدې د زید نه یوه جینۍ هم ده، عدت پوره کیدو نه پس د زید حقیقی ماما د زبیدې سره نکاح کول غواړی، آیا دا جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید حیات شاه کریمی انډسټریز سټیل ورکس نوشهره

**الجواب:** د زید د ماما دپاره د زید طلاقه کړې شوې ښځې سره نکاح جائز ده، قال الله تعالی واحل لکم ما وراء ذالکم. (الآیة)﴿۲﴾ وهو الموفق

## د زید د علاتی (پلار شریک) خور نکاح د زید ماما سره صحیح ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د زید علاتی خور فاطمه ده، یعنی د پلار نه ده، او د مور نه ئې نه ده، دهغې نکاح د زید خپل ماما بکر سره صحیح ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاجی فضل غفار خیبر بوټ هاؤس مینګوره سوات

---

﴿۱﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۹ فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ په دې کښې د حرمت هیڅ وجه نشته.

قال لله تعالیٰ: واحل لکم............ (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**الجواب:** په دې صورت کښې د بکر نکاح د فاطمې سره صحیح ده. ﴿۱﴾ وهوالموفق

## د چاچې او مامې سره نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه ځوارهٔ د خپل ترهٔ مرحوم ښځې سره او خورې د خپل ماما مرحوم ښځې سره نکاح کولې شي او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: منتظر شاه پاک جرمن فارم ملتان ۱۷/۴/۱۹۷۲

**الجواب:** د ترهٔ او ماما ښځې سره نکاح جائز ده.

لعدم ورود النهی عنه فی القرآن والحدیث وکتب الفقه﴿۲﴾ وقال الله تعالیٰ: احل لکم ما ورآء ذلکم﴿۳﴾ ویدل علیه مفهوم الدرالمختار وزوجة اصله وفرعه مطلقا﴿۴﴾ فافهم. وهوالموفق

(بقیه حاشیه) ما ورآء ذلکم ای سویٰ ما حرم علیکم من النساء.

(تفسیرجلالین ۱: ۸۲ پاره: ۵ آیت: ۲۴)

﴿۱﴾ په دې کښې د حرمت هیڅ وجه نشته:

لقوله تعالیٰ: واحل لکم ما ورآء ذلکم. (پاره: ۵ آیت: ۲۴)

﴿۲﴾ قال العلامة الکاسانی: فالمحرمات بالقرابة سبع فرق الامهات والبنات والاخوات، والعمات، والخالات، وبنات الاخ وبنات الاخت...... ثم اخبر سبحانه وتعالیٰ انه احل ما وراء ذلک بقوله (واحل لکم ما ورآء ذلکم) وبنات الاعمام والعمات والاخوال والخالات لم یذکرن فی المحرمات فکن مما وراء ذلک فکن محللات، وکذا عمومات النکاح لا توجب الفصل ثم خص عنها المحرمات المذکورات فی آیة التحریم فبقی غیرهن تحت العموم الخ. (البدائع الصنائع ۲: ۵۲۹، ۵۳۱ کتاب النکاح المحرمات بالقرابة)

﴿۳﴾ (سورة النساء پاره: ۵ آیت: ۲۴)

﴿۴﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۲ فصل فی المحرمات)



## د میرنزی مور لور سره د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیو سړې دوه ښځې دی، دیوې نه هلک پیدا شوې وو، اوس دا سړې وفات شو، او دویمې ښځې ئې بل ځائي نکاح وکړه، او دهغې نه یوه جینۍ پیدا شوه، آیا ددې هلک او جینۍ په مینځ کښې نکاح جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مفقود العنوان ۲۲/۵/۱۹۷۲

**الجواب:** ددې هلک دپاره د میرنزې مور هغه اولاد سره چه ددهٔ د پلار نه نه وی، نکاح جائز ده. لقوله تعالی: واحل لکم ماوراء ذالکم﴿۱﴾ وفی در مختار: واما بنت زوجة ابیه او ابنه فحلال (۲: ۳۸۳)﴿۲﴾ وهو الموفق

## د ځوی د ښځې خور سره نکاح کول

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د زید پلار پرله پسې څلور ښځې وکړې، د زید د پلار د اولې ښځې یوه خور وه، چه دهغې نکاح بل ځائي کښې شوې وه، اودهغې نه یو هلک بکر پیدا شوې دې، او د بکر دوه لونړه دی، د بکر د مشرې لور وادهٔ ؤشو، لیکن بیا طلاقه شوه، اوس هغې عدت پوره کړې دې، اوس د بکر د کشرې لور نکاح د زید مشرځوی اظهر سره شوې ده، اوس زید خپله د بکر مشرې لور سره نکاح کول غواړي. آیا شرعا دا جائز ده، چه دوه خویندې په یو کور کښې یو د پلار سره او یو د ځوی سره وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عادل محمود قریشی ریاض سعودی عرب ۲۱ رمضان ۱۴۰۵ھ

﴿۱﴾ (سورة النساء پاره: ۵ آیت: ۲۴)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۲ فصل فی المحرمات)

**الجواب:** هرکله چه زید د خپل پلار د ښځې د لور سره نکاح جائز ده، لکه چه شرعی حکم هم دادې﴿١﴾، نو دغې لونړه به څنګه محرماتې وی، بهرحال زید ددې طلاقې کړې شوې سره نکاح کولې شی. قال الله تبارک وتعالی: واحل لکم ماوراء ذالکم﴿٢﴾. وهو الموفق

## د اخیافی (یعنی مور شریکې) وُریرې سره نکاح حرامه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه سکینې بی بی د الله وسایا سره وادهٔ وکړو، دهغې نه یو هلک غفران پیدا شو، دغفران نه بیا یوه جینی شګفته پیداشوه، اوس الله وسایاوفات شو دهغه نه پس سکینه بی بی دالله دته سره وادهٔ وکړو، اودهغې خاوندنه ئې یوهلک مهربان پیداشو، اوس د مهربان او شګفتې په مینځ کښ نکاح کیدې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد نواز لغاری آئي ډی او مردان. ٩/٢/١٩٧٢

**الجواب:** شګفته بی بی د مهربان وُریره ده، لهذا ددې دواړو په مینځ کښ نکاح بالکل حرامه ده، قال الله تعالی وبنات الاخ (الایة)﴿٣﴾ وفی در مختار حرم علی المتزوج اصله وفروعه وبنت اخیه الخ﴿٤﴾ والمسئلة واضحة﴿٥﴾ وهوالموفق

---

﴿١﴾ قال العلامه الحصکفی: واما بنت زوجة ابیه او ابنه فحلال.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٣٠٣ فصل فی المحرمات)

﴿٢﴾ سورة النساء پاره: ٥ آیت: ٢٤)

﴿٣﴾ (سورة النساء پاره: ٤ آیت: ٢٣)

﴿٤﴾ (الدرلمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٣٠١ فصل فی المحرمات)

﴿٥﴾ قال العلامة الکاسانی: وتحرم علیه بنات الاخ وبنات الاخت بالنص وهو قوله تعالیٰ (وبنات الاخ وبنات الاخت) وان سفلن بالاجماع.
(بدائع الصنائع ٢: ٥٣٠ المحرمات بالقرابة)



## د خورې ښځې سره د ماما نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه د خورې ښځه د ماما دپاره جائز ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: شیرزمین چارسده روډ پیښور ١٤ جمادی الثانی ١٤٠٢ھ

**الجواب:** ټولو فتاوؤ زوجه اصل او زوجه فرع لره په محرماتو کښ شمارکړې دی﴿١﴾، نه د وړور ښځه او نه د ماما ښځه﴿٢﴾. وهو الموفق

## د میرنزی پلار ښځې او لور سره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه دوه رونړه عبدالله او شریف الله دی، عبدالله دیوې ښځې شریفې سره وادهٔ وکړو، او دهغې نه یو ځوی عابد پیدا شو، عبدالله مړشو او شریفې سره شریف الله نکاح وکړه، شریفه هم مړه شوه، او شریف الله د زینب سره دویمه نکاح وکړه، چه دهغې نه عابده لور پیدا شوه، بیا شریف الله هم مړ شو، اوس د عابد نکاح د زینب یا عابدې سره کیدې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: حاکم ګل مدرسه انجمن تعلیم القران کوهاټ١٤محرم ١٤٠٣ھ

**الجواب:** د ترهٔ ښځې او د ترهٔ لور سره نکاح جائز ده، دا دواړه په محارموکښ

---

﴿١﴾ قال العلامة الحصکفی: وزوجة اصله وفرعه مطلقا ولو بعیدا الخ.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ٢: ٣٠٢ فصل فی المحرمات)

﴿٢﴾ قال العلامة عبد الله بن مودود الموصلی: ان المحرمات بکتاب الله وسنة نبیه ﷺ تسعة اقسام: بالقرابة وبالصهریة...... فالمحرمات بالقرابة سبعة انواع...... وما عداهن من القرابات محللات بقوله تعالیٰ واحل لکم ما ورآء ذلکم (الآیة).
(الاختیار لتعلیل المختار ٢: ١١٢ فصل فی المحرمات)

داخل نه دی﴿۱﴾. د ناکح د والدې د ناکح د ترۀ سره نکاح دې حلت ته ضرر رسونکی نه دی﴿۲﴾. وهو الموفق

## د ښځې په موجودګۍ کښې د ښځې د خور سره نکاح باطله او د ښځې نکاح ته ضرررسونکې نه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی د خپلې ښځې خور ؤتښتوله، نکاح ئې ورسره کړې ده او که نه؟ ددې شهادت فی الحال موجود نه دې، البته که شهادت وکړې شی، نو آیا د مشرې خور نکاح به باطله وی، او که د دویمې، که نکاح شوې نه وی، نو د مشرې خور په نکاح باندې د اثر غورزیدلو څه مسئله ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالحق امام مسجد نیلان مانسهره

**الجواب:** د ښځې خورسره نکاح کول باطل او کالعدم ده، (که ښځه طلاقه کړې شوې، یا مړه شوې نه وی) او د دې دویمې خور سره جماع کول حرام او زنا ده، البته په هرحال کښې ددې مشرې خور (ښځې) په نکاح او حلت باندې ددې

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: وبنات الاعمام والعمات والاخوال والخالات لم یذکرن فی المحرمات فکن مما وراء ذلک فکن محللات، وکذا عمومات النکاح لا توجب الفصل، ثم خص عنها المحرمات المذکورات فی آیة التحریم فبقی غیرهن تحت العموم وقد ورد نص خاص فی الباب. (البدائع الصنائع ۲: ۵۳۱ المحرمات بالقرابة)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: واما بنت زوجة ابیه او ابنه فحلال.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۲ فصل فی المحرمات)

﴿۳﴾ قال العلامة الموصلی: ولایجوز الجمع بین الاختین نکاحا...... لقوله تعالیٰ وان تجمعوا بین الاختین الا ما قد سلف، وقال علیه السلام: من کان یؤمن بالله والیوم الآخر فلا یجمعن ماءه فی رحم اختین...... ولو تزوج اختین فی عقدتین ولا یدری ایتهما اولیٰ فرق بینه وبینهما لان نکاح احداهما باطل بیقین الخ.
(الاختیار لتعلیل المختار ۲: ۱۱۴ فصل فی المحرمات)



دویمې نکاح یا جماع هیڅ اثر نه غورزیږی.

**یدل علی الاول ما فی الهندیة (۱: ۲۹۵) وان تزوجهما فی عقدتین فنکاح الاخیرة فاسد ﴿۱﴾ وفی شرح التنویر علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۸۶ وفی الخلاصة وطئ اخت امرأته لا تحرم علیه امرأته ﴿۲﴾. وهو الموفق**

## د علاتی ورور د پاره د اخیافی خور سره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د یو سړی دوه ښځې وې، هغه سړې مړ شو، او د دواړو ښځو دهغه سړې نه اولاد دې، په هغوی کښې یوې ښځې دویم وادۀ وکړو، او اولاد ئې پیدا شو. اوس ددې دویم خاوند او ښځې د اولاد نکاح د دې دویمې ښځې د اولاد سره جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد نور عدم پټه. ۹ ذی قعده ۱۳۹۲ھ

**الجواب:** د علاتی ورور د اخیافی خورسره نکاح جائزده. کما فی شرح التنویر وکذا نسبا بان یکون لاخیه لابیه اخت لام (هامش ردالمحتار ۲: ۵٦۱)﴿۳﴾ وهوالموفق

## که پلار کنډې سره او ځامن ئې د کنډې لونړو سره نکاح وکړی نو جائزه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیوې کنډې دوه لونړه وې، دغه شان دیو سړې دوه ځامن وو، هغه سړې ددې کنډې سره نکاح وکړه،

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۷ القسم الرابع المحرمات بالجمع)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۰۵ وحرم بالصهریة فصل فی المحرمات)

﴿۳﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۴۳ باب الرضاع)

آیا اوس ددې لونړو او ځامنو په مینځ کښې نکاح جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد خلیل الله تهائي لینډ ۱۲/۸/۱۹۷۷

**الجواب:** ددې سړې نکاح د کنډې سره او ددۀ د ځامنو نکاح د کنډې لونړو سره جائز ده، په دې کښې دچا هم اختلاف نشته، قران وحدیث او فقه کښې چه څومره محرمات مذکور دی، په هغې کښې دا صورت داخل نه دې.《۱》وفی شرح التنویر واما بنت زوجة ابیه او ابنه فحلال، هامش ردالمحتار ۲:۳۸۳ وفی ردالمحتار ولا ام زوجة الابن《۲》. وهو الموفق

## د ښینې لور په نکاح کښې اخستلو دپاره مختلف صورتونه

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلو باره کښې:

۱) د ښځې په ژوند کښې ښینې حرامه ده، لیکن د ښینې د لور څه حکم دې؟

۲) دښځې دوفات نه پس ښینې نامحرمه ده، لیکن دښینې دلور څه حکم دې؟

۳) د ښځې په ژوند کښې که دښینې انتقال وشی، نو دښینې دلور څه حکم دې؟

۴) د ښځې په ژوند کښې د اوښی لور محرمه ده او که غیر محرمه؟

《۱》قال العلامة فخر الدین الزیلعی: ان المحرمات انواع الاول المحرمات بالنسب وهن انواع فروعه واصوله وفروع ابویه وان نزلوا وفروع اجداده وجداته اذا انفصلوا ببطن واحد، والنوع الثانی المحرمات بالمصاهرة وهن انواع اربعة...... والنوع الثالث المحرمات بالرضاع وانواعهن کالنسب والنوع الرابع حرمة الجمع...... والنوع الخامس المحرمة لحق الغیر کمنکوحة الغیر ومعتدته والحامل بثابت النسب والنوع السادس المحرمة لعدم دین سماوی...... والنوع السابع المحرمة للتنافی کنکاح السیدة مملوکها.

(تبیین الحقائق شرح کنز الدقائق ۲:۱۰۱ فصل فی المحرمات)

《۲》(الدر المختار مع ردالمحتار ۲:۳۰۲،۳۰۳ فصل فی المحرمات)



۵) دښځې دمرګ نه پس داوښی لور محرمه ده او که غیرمحرمه؟ بینوا توجروا

المستفتی: راشد محمود ملتان. یکم صفر ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** ۱) د ښینې (د ښځې د خور) او د ښینې د لور یو حکم دې، چه حرامه ده. (شامی)

۲) دواړه حلالې دی، لان الممنوع هو الجمع (شامی)

۳) د ښځې په ژوند د ښینې د لور سره نکاح کول حرام دی، که ښینې ژوندې وی او که وفات شوې وی. (شامی)

٤) حرامه ده، د ترور او وریرې په مینځ کښې جمع حرام ده. (شامی)

٥) حلاله ده. (شامی)《۱》وهو الموفق

## ترور او وریرې لره په نکاح کښې جمع کول.
## او د هدایې د عبارت وضاحت

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه قوله:........

**قوله:** ولا علی ابن اخیها الخ ذکر النهی من الجانبین للمبالغة فی التحریم او لازالة الاشکال، فربما یظن ان نکاح ابنة الاخ علی العمة لا یجوز ونکاح العمة علی بنت الاخ یجوز لفضل العمة کما لا یجوز نکاح الامة علی الحرة ویجوز نکاح الحرة علی الامة کذا فی الکافی،

آیا ددې حکم لاندې د وریرې په موجودګۍ کښې د ښځې وریرې سره نکاح جائز ده؟ او که ترور له طلاق ورکولو نه پس وریرې سره نکاح کولې شی؟ او

《۱》قال العلامة الحصکفی: وحرم الجمع بین المحارم نکاحا ای عقدا صحیحا وعدة ولو من طلاق بائن وحرم الجمع وطأ بملک یمین بین امرأتین ایتهما فرضت ذکرا لم تحل للاخری ابدا لحدیث مسلم لا تنکح المرأة علی عمتها وهو مشهور یصلح مخصصا للکتاب الخ.

(الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۰۹ فصل فی المحرمات)

بیا دوباره د وریرې په موجودګۍ کښې دهغې دغې ترور سره نکاح کولې شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عبدالخالق کوهاله راولپنډی. ۱۴/۹/۱۹۷۰

**الجواب:** د ترور او وریرې په مینځ کښې جمع حرامه ده، که اول وریرې سره نکاح شوې وی او که ترور سره.

قال رسول الله ﷺ لا یجمع بین المرأة وعمتها، (متفق علیه) ﴿۱﴾ نهی رسول الله ﷺ ان تنکح المرأة علی عمتها اوالعمة علی بنت اخیها، (رواه الترمذی ﴿۲﴾ وابوداؤد) ﴿۳﴾، وصرح به فی الهندیة (۱: ۲۹۵) ﴿۴﴾ وغیر واحد من کتب الفروع، او کوم عبارت چه تا نقل کړې دې، دهغې مقصد جواز نه دې، بلکه صاحب د هدائي سر او حکمت ذکر کوی. وهو الموفق

## د جینۍ سره عمه (د مور دطرفه ترور) یا خاله (د پلار د طرفه ترور) په یو نکاح کښې جمع کول حرام دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه الف یو سړې دې، چه دهغه منکوحه با موجوده ده. د با خور جیم ده. او څوی ئې دال دې، د دال لور ها ده، آیا د با په موجودګۍ کښې الف یعنی خاوند ها لره په نکاح کښې

﴿۱﴾ عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ قال لا یجمع بین المرأة وعمتها ولابین المرأة وخالتها. (رواه البخاری ۷/ ۱۵ ومسلم ۴: ۳۳)

﴿۲﴾ (سنن الترمذی ۱: ۱۳۴ باب لا تنکح المرأة علی عمتها ولا علی خالتها)

﴿۳﴾ (سنن ابی داؤد ۱: ۲۸۹ باب ما یکره ان یجمع بینهن من النساء)

﴿۴﴾ وفی الهندیة: ولا یجوز الجمع بین امرأتین کل منهما عمة للاخرىٰ ولا بین امرأتین کل منهما خالة للاخرىٰ وصورة ذلک ان یتزوج کل من رجلین ام الآخر ویولدها بنتا فیکون کل واحدة من البنتین عمة للاخرىٰ ولو تزوج کل من رجلین بنت الآخر واولدها کانت بنت کل واحد منهما خالة للاخرىٰ کذا فی الهدایة.

(فتاوىٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۹ قبیل القسم الخامس الاماء المنکوحة الخ)



راوستلې شی، یعنی با او ها لره په یو نکاح کښې جمع کول څنګه دی؟ بینواتوجروا

المستفتی: مولانا سراج الدین ملازئي ډی آئي خان.

**الجواب:** د باء او هاء په یو نکاح کښې جمع کول حرام دی.

قال رسول الله ﷺ لا یجمع بین المرأة وعمتها ولا بین المرأة وخالتها (متفق علیه) ﴿۱﴾ قلت استنبط منه الفقهاء، لا یجمع بین امرأتین لو کانت احداهما رجلا لم یجز له ان یتزوج باخرىٰ (هدایة ۲۸۹) ﴿۲﴾. وهوالموفق

## د ترور او خورزې په یو نکاح کښې جمع کول حرام دی.

## اګر که ترور ئې اعیانیه وی او که غیر اعیانیه

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې دخپلې لورنکاح د هغه سړې سره وکړه، چه دهغه په نکاح کښې ددې سړې د لور لور موجوده ده، دا دواړه ښځې په خپلو کښې ترور خورزې جوړېږی، او ددې سړې په نکاح کښې دوه ښځې دی، ددې وجه نه بعضې جاهلان وائي، چه میاندې جدا جدا دی، ددې وجه نه دا نکاح صحیح ده، او په حقیقت کښې دا رشته په سوره کښې ورکړې شوې ده، او هغوی په دې باندې په ضد دی، اوس مونږ دهغوی سره څه طریقه وکړو؟ او دهغې نکاح خوان او ګواهانو وغیره سره څه طریقه کول پکار ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولانا محمد عثمان مدرسه قاسم العلوم ضلع سکهر ۱۹۷۲|۱۲|۷

**الجواب:** ددې جینۍ نکاح (یعنی د ښځې د ترور) باطله ده، که اعیانی وی یا غیر اعیانی، په ټولو مسلمانانو خاصکر په حاکمانو باندې ضروری ده، چه

﴿۱﴾ (مشکواة المصابیح ۱: ۲۷۳ باب المحرمات الفصل الاول)

﴿۲﴾ (هدایة ۲: ۳۰۹ فصل فی بیان المحرمات)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: فلایجوز الجمع بین امرأة وعمتها نسبا او رضاعا وخالتها کذلک. (فتاوىٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۷ القسم الرابع المحرمات بالجمع)

دا آخرنی ښځه ددې سرې نه جدا کړئ.

لما روی عن ابی هریرة رضی الله عنه ان رسول الله ﷺ نهی ان تنکح المرأة علی عمتها والعمة علی بنت اخیها والمرأة علی خالتها او الخالة علی بنت اختها (رواه الترمذی) ﴿۱﴾

دا سړې واجب القتل دې، (لو کان مستحیلا (سیف) لیکن قتل کول زمونږ په طاقت کښې نشته﴿۳﴾. لهذا کم از کم دهغه سره تعلق ختمول خو زمونږ د طاقت نه خارج نه دی﴿۴﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ (سنن الترمذی ۱: ۱۳۴ باب لا تنکح المرأه علی عمتها ولا علی خالتها)

﴿۲﴾ وعن البراء بن عازب قال مربی خالی ابوبردة بن نیار ومعه لواء فقلت این تذهب قال بعثنی النبی ﷺ الی رجل تزوج امرأة ابیه آتیه برأسه، رواه الترمذی وابوداؤد وفی روایة له وللنسائی وابن ماجه والدارمی ان اضرب عنقه وآخذماله، ذهب اکثر اهل العلم الی ان المتزوج کان مستحلا له علی ما یعتقده اهل الجاهلیة فصار بذلک مرتدا محاربالله ولرسوله فلذلک امر بقتله واخذماله وکان ذلک الرجل یعتقد حل هذا النکاح فمن اعتقد حل شیئ محرم کفر وجاز قتله واخذماله ومن جهل تحریم نکاح واحدة من محارمه فتزوجها لم یکفر ومن علم تحریمها واعتقدالحرمة فسق وفرق بینهما وعزر هذا اذا لم یجربینهما دخول والا فان علم تحریمها فهو زان...... وان قال علمت انها علی حرام ولکن یجب المهر ویعاقب عقوبة هی اشد ما یکون من التعزیر سیاسة لا حدا مقدرا شرعا...... قالا والشافعی ومالک واحمد یجب حده اذا کان عالما قال ابن الهمام وفی مسئلة المحارم روایة عن جابر انه یضرب عنقه الخ. (مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۶: ۲۲۷، ۲۲۸ التعزیر علی النکاح بالمحارم)

﴿۳﴾ وفی الهندیة: وینقسم الی ماهو حق الله وحق العبد والاول یجب علی الامام لکل مسلم اقامة التعزیر حال مباشرة المعصیة واما بعد المباشرة فلیس ذلک لغیر الحاکم ...... قالوا الخ. (فتاویٰ عالمگیریه ۲: ۱۶۷ فصل فی التعزیر)

﴿۴﴾ قال الحافظ ابن الحجر العسقلانی: (قوله باب مایجوز من الهجران لمن عصی) اراد بهذه الترجمة بیان الهجران الجائز لان عموم النهی...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## ترور او خورزه په یو نکاح کښې جمع کول حرام دی. اګر که علاتی وی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه حبیبه او صائمه علاتی خویندې دی، یعنی پلارئې یو دې، او میاندې ئې جدا جدا دی، اوس د حبیبې خاوند غواړی، چه د صائمې لور زینب سره نکاح وکړی. اوس د اعیانی په صورت کښې خو مطلقا ناجائز ده، لیکن په علاتی کیدو کښې او اخیافی کیدو کښې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: میر شهزاد خارداګئي ملاکنډ ایجنسی.

**الجواب:** د ترور او بنت الاخت په نکاح کښې جمع کول مطلقا ناجائز دی، هیڅا هم په تخصیص باندې قول نه دې کړې.

فی الهدایة: لا یجمع بین المرأة وعمتها او خالتها او ابنة اخیها او ابنة اختها، لقوله علیه السلام لا تنکح المرأة الحدیث (۲: ۵)﴿۱﴾ وفی الهندیة: فلا یجوز الجمع بین امرأة وعمتها نسبا او رضاعا وخالتها کذلک الخ (۱: ۲۹۵)﴿۲﴾. وهوالموفق

## ښځې لره او د هغې خورزې لره نکاحا جمع کول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړې د خپلې ښځې

---

(بقیه حاشیه) مخصوص بمن لم یکن لهجرة سبب مشروع فتبین هنا السبب المسوغ للهجر وهو لمن صدرت منه معصیة فیسوغ لمن اطلع علیها منه هجره علیها لیکف عنها...... قال المهلب غرض البخاری فی هذا الباب ان یبین صفة الهجران الجائز وانه یتنوع بقدر الجرم...... الهجران علی مرتبتین الهجران بالقلب والهجران باللسان فهجران الکافر بالقلب وبترک التودد والتعاون والتناصر لا سیما اذا کان حربیا الخ. (فتح الباری شرح البخاری ۱۳: ۵۹۷ باب مایجوز من الهجران لمن عصی)

﴿۱﴾ (هدایة ۲: ۳۰۸ کتاب النکاح فصل فی المحرمات)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۷ القسم الرابع المحرمات بالجمع ای الجمع بین ذوات الارحام)

یعنی منکوحې خورزې سره نکاح کول غواړی، آیا دې دواړو لره په یو نکاح کښې جمع کول جائز دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: مفقود الخبر ۱۱/۱۱/۱۹۷۲

**الجواب:** ښځه او دهغې د خورزې په مینځ کښې جمع کول حرام دی، البته انفراد جائز دې، یعنی منکوحې ته طلاق ورکولو نه پس دهغې خورزې سره نکاح کول، یا صرف ښځې لره په خپل حال آبادول. لان المحرم هو الجمع دون غیره﴿۱﴾ قال الله تعالی واحل لکم ماوراء ذالکم﴿۲﴾. وهو الموفق

## که مور او لور د دوؤ رونړو په نکاح کښې وی،

## د هغوی د اولاد په مینځ کښې د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دوه سکه رونړه دی، په هغوی کښې یو وورور د یوې ښځې سره نکاح وکړه، او دویم وورور ددې ښځې لور سره نکاح وکړه، اوس د دواړو نه اولاد پیدا شو، بیا دهغوی د اولاد اولاد پیدا شو، اوس ددې لور د لونړو د لونړو نکاح د مور ځامنو سره جائز ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مرزا جان ټیکسلا

**الجواب:** داجینکی او د جینکو لونړه دهغې هلکانو خورزې او د خورزو لونړه

﴿۱﴾ وفی الهندیة: وان اراد ان یتزوج احداهما بعد التفریق فله ذلک ان کان التفریق قبل الدخول وان کان بعد الدخول فلیس له ذلک حتی تنقضی عدتهما وان انقضت عدة احداهما دون الاخریٰ فله ان یتزوج المعتدة دون الاخریٰ مالم تنقض عدتها وان دخل باحداهما فله ان یتزوجها دون الاخریٰ مالم تنقض عدتها.
(فتاویٰ عالمگیریه ۱ :۲۷۸ القسم الرابع المحرمات بالجمع)

﴿۲﴾ ( سورة النساء پاره: ۴ آیت: ۲۳)



دی، چه محرمات دی﴿۱﴾. قال الله تعالی وبنات الاخت (الآیة)﴿ ۲﴾ وهو الموفق

## د یوې ښځې نه لور او د بلې ښځې نه نوسی

## په یو نکاح کښې جمع کول جائز نه دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زمونږ د علم مطابق خو داصورت جائز نه دې،لیکن ستاسو دعلم مطابق رائې حاصلول هم لازمی دی هغه داچه دیو سړې دوه ښځې وې،اود هرې یوې ښځې نه یوه یوه لور وه،او د یوې لور ئې یوه لور ده،په هغو کښې دیوې لور نکاح د یو سړې سره وشوه،څه موده پس ددې دویمې جینۍ د لور یعنی د نوسې نکاح هم هغه سړې سره وشوه، په دې صورت کښې ددې دویمې نکاح څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی ولی محمد بابر مدرسه شمس المدارس ژوب شهر ۳/۹/۱۹۹۰

**الجواب:** په دې صورت کښې اوله نکاح (د لور سره) صحیح ده، او دویمه نکاح کالعدم او قطعا حرامه ده. للاصل الشهیر: حرم الجمع بین المحارم نکاحا ووطا بملک یمین بین امرءتین ایتهما فرضت ذکرا لم تحل للاخری ابدا﴿۳﴾. پس په دې خاوند ضروری ده، چه د دویمې ښځې نه قبضه اوچته کړی، په علماؤ او ټول قوم او ټول اهل اسلام باندې ضروری ده، که دا خاوند دې لره حلال ګڼړی، نو ددې مرتد سره دې مقابله وکړی﴿۴﴾. وهو الموفق

﴿۱﴾ قال العلامة ابن الشحنة: ویحرم علی الرجل نکاح اصوله...... وفروعه...... وفروع اصوله ای الاخوة والاخوات واولادهم واولاداولادهم وان نزلوا.
(لسان الحکام یلی معین الحکام ۱ :۳۱۷ الفصل الثالث عشر فی النکاح)

﴿۲﴾ (سورة النساء پاره: ۴ آیت: ۲۳)

﴿۳﴾ (الدر المختار علی هامش ردالمحتار ۲ :۳۰۸ فصل فی المحرمات)

﴿۴﴾ قال العلامة علی بن سلطان محمد: ذهب..... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## علاتي نيا او نوسۍ په يو نكاح كښ جمع كول جائز نه دي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره كښ چه د نيكه علاتي خور ده، او د يو سړي په نكاح كښ ده، اوس هغه سړي د نيكه نوسۍ لره په نكاح كښ راوستل غواړي، آيا ددې دواړو جمع كول جائز دی؟ بينوا توجروا

المستفتي: سراج الدين كانګړه چارسده

**الجواب:** ددې دواړو په مينځ كښ جمع ناجائز ده.

**وفي الهندية: والاصل ان كل امرأتين لو صورنا احداهما من اى جانب ذكرا لم يجز النكاح بينهما برضاع او نسب لم يجز الجمع بينهما (١: ٢٩٥)﴿١﴾. وهوالموفق**

## د عدت په دوران كښ نكاح كالعدم ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره كښ چه ديوې ښځې خاوند وفات شو، د خاوند ورور ددې ښځې سره د عدت تيريدو نه مخكښ نكاح وكړه، آيا دا نكاح جائز ده؟ بينوا توجروا

المستفتي: محمد قدير سواتی ١٢/٣/١٩٧٤

---

(بقيه حاشيه) اكثر اهل العلم الى ان المتزوج كان مستحلا له على ما يعتقده اهل الجاهلية فصار بذلك مرتدا محاربالله ولرسوله فلذلك امر بقتله واخذ ماله وكان ذلك الرجل يعتقد حل هذا النكاح فمن اعتقد حل شئ محرم كفر وجاز قتله واخذماله ومن جهل تحريم نكاح واحدة من محارمه فتزوجها لم يكفرو من علم تحريمها واعتقد الحرمة فسق وفرق بينهما وعزر هذا اذا لم يجر بينهما دخول الخ.

(مرقاة المفاتيح شرح المشكواة ٦: ٢٢٨ باب المحرمات الفصل الثانى)

﴿١﴾ (فتاوئ عالمگيريه ١: ٢٧٧ القسم الرابع المحرمات بالجمع)



**الجواب:** د معتدې نكاح ناجائز او كالعدم دې.

**لما في الهندية ١: ٢٩٨ لايجوز للرجل ان يتزوج زوجة غيره وكذلك المعتدة كذا في السراج الوهاج سواء كانت العدة عن طلاق او وفاة او دخول في نكاح فاسد﴿١﴾. وهوالموفق**

## د وفات عدت تيرونكي حاملې ښځې سره د نكاح كونكي حكم

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره كښ كه يو سړي د وفات عدت تيرونكي حاملې ښځې سره چه ثابت النسب وي، نكاح وكړي، آيا دا جائز ده؟ كه جائز نه وي، نو ددې حلال ګڼرونكي څه حكم دې؟ او چه هغه ته معلومه هم وي چه دا حامله ده، كه هغه ددې نكاح په وجه وطی وكړي، نو آيا په هغه به حد جاري كولې شي، يعني تعزير به ورته وركولې شي؟ بينوا توجروا

المستفتي: ضياء المرسلين دارالعلوم ربانيه هری پور هزاره ٢١ذی قعده ١٣٨٩ھ

**الجواب:** د عدت تيريدو نه مخكښ دا نكاح حرامه ده.

**قال الله تعالى: ولا تعزموا عقدة النكاح حتى يبلغ الكتاب اجله (الآية)﴿٢﴾ وقال تعالى: واولات الاحمال اجلهن ان يضعن حملهن (الآية)﴿٣﴾ فالناكح ان كان جاهلا فلا يكفر وان كان عالما بالحرمة فعند الاستحلال يكفر والافيفسق﴿٤﴾ ولا سبيل لنا الى الجزم. وهوالموفق**

---

﴿١﴾ (فتاوئ عالمگيريه ١: ٢٨٠ القسم السادس المحرمات التى يتعلق بها حق الغير)

﴿٢﴾ (سورة البقرة پاره: ٢ آيت: ٢٣٥)

﴿٣﴾ (سورة الطلاق پاره: ٢٨ ايت: ٤)

﴿٤﴾ قال الملا على بن سلطان محمد: فمن اعتقد حل شئ محرم كفر وجاز قتله واخذماله ومن جهل تحريم نكاح واحدة من محارمه فتزوجها لم يكفر ومن علم تحريمها واعتقد الحرمة فسق وفرق بينهما وعزر هذا اذا لم يجر بينهما دخول.

(مرقاة المفاتيح شرح مشكوة المصابيح ٦: ٢٢٨ التعزير على النكاح بالمحارم)

## د عدت دوران کښې نکاح کونکې د طلاق ثلاثه ورکولو نه پس دوباره د نکاح مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه د عدت دوران کښې يو کس ښځې ته طلاق ثلاثه ورکړل، د طلاق په وخت کښې د حمل پته نه وه، د ظاهرې عدت نه پس دويم سړې دې سره نکاح وکړه، د نکاح نه پس معلومه شوه، چه ددې ښځې د اول خاوند نه حمل دې، د وضع حمل نه پس دويم خاوند هم طلاق ثلاثه ورکړل، اوس دا دويم خاوند ئې بيا غواړي، چه دې ښځې سره نکاح وکړي، آيا دا نکاح صحيح کيدې شي؟ بينوا توجروا

المستفتى: تقدير الله جهانګيره نوښاره ۲۱/۲/۱۹۸۴

**الجواب:** ددې دويم سړې سره نکاح نه وه شوې﴿۱﴾، او دهغه طلاق ثلاثه ورکول هم کالعدم وو﴿۲﴾، پس دا دويم خاوند دهغې ښځې سره نکاح کولې شي، اګر که هغه د وضع حمل نه پس جماع کړې وی﴿۳﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ وفى الهندية: لا يجوز للرجل ان يتزوج زوجة غيره و كذلک المعتدة سواء كانت العدة عن طلاق او وفاة او دخول فى نكاح فاسد الخ.
(فتاوىٰ عالمګيريه ۱ :۲۸۰ القسم السادس المحرمات التى يتعلق بها حق الغير)

﴿۲﴾ وقال العلامة النظام: واما شرط (الطلاق) فشيآن احدهما قيام القيد فى المرأة نكاح او عدة والثانى قيام حل محل النكاح حتى لو حرمت بالمصاهرة بعد الدخول بها حتى وجبت العدة فطلقها فى العدة الخ. (فتاوىٰ عالمګيريه ۱ :۳۴۸ كتاب الطلاق الباب الاول)

﴿۳﴾ وفى الهندية: ولو تزوج بمنكوحة الغير وهو لا يعلم انها منكوحة الغير فوطئها تجب العدة وان كان يعلم انها منكوحة الغير لا تجب حتى لا يحرم على الزوج وطؤها ويجوز لصاحب العدة ان يتزوجها كذا فى المحيط للسرخسى.
(فتاوىٰ عالمګيريه ۱ :۲۸۰ القسم السادس المحرمات لحق الغير)



## په طلاق معلق سره طلاقه کړې شوې ښځه د باقاعده نکاح، جماع او طلاق نه پس د اول خاوند سره نکاح کولې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه يو سړې خپلې ښځې ته درې طلاقه ورکړل، چه د اتو بچو مور ده، عدت ختميدو نه پس دې ښځې د بل سړې سره نکاح شرعى وکړه. او خلوت صحيحه هم وشو، مهر هم ورکړې شو، دې دويم خاوند د څه مصلحت په وجه دې ښځې ته درې طلاقه ورکړل، او عدت ئې تير کړو، اوس ددې ښځې نکاح د مخکښني خاوند سره کيدې شي؟ بينوا توجروا

المستفتى: محمد اسحاق عرشى مسجد راولپنډى ۳/۶/۱۹۷۵

**الجواب:** که دې دويم خاوند يو ځل جماع ددې ښځې سره کړې وی، نو دا ښځه د اول خاوند سره نکاح کولې شي. لوجود التحليل هو وطى الزوج الثانى﴿۱﴾. والمسئلة من الواضحات فلا حاجة الى نقل العبارات. وهو الموفق

## د خاوند د پاره عدت وفات نشته. د ښځې خور سره يو دوه ورځې پس نکاح کولې شي

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه کله د يو سړې ښځه وفات شي، نو آيا د خاوند دپاره دا جائز ده، چه يو يا دوه ورځې پس د ښځې خور سره نکاح وکړي؟ بينوا توجروا

المستفتى: محمد شاهد لوند خوړ ۲۹/۸/۱۹۸۵

---

﴿۱﴾ وفى الهندية: واذا كان الطلاق ثلاثا فى الحرة وثنتين فى الامة لم تحل له حتى تنكح زوجا غيره نكاحا صحيحا ويدخل بها ثم يطلقها او يموت عنها كذا فى الهداية.
(فتاوىٰ عالمګيريه ۱ :۴۷۳ فصل فيما تحل به المطلقة وما يتصل به)

**الجواب:** په خاوند باندې نه ماتم کول شته، او نه عدت تیرول، ددې وجه نه د ښځې دوفات نه پس هر وخت نکاح کولې شی﴿۱﴾ وفي الهندية ويجوز لـزوج المرتدة اذا لحقت بدارالحرب تزوج قبل انقضاء عدتها كما اذا ماتت﴿۲﴾ وهوالموفق

## د حرامی نکاح او نور احکام

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسائیلو باره کښې چه:

۱) د حرامی او حلالی ماشومانو جینکو او هلکانو په مراتبو کښې به د قیامت په ورځ څه فرق وی او که نه، هرکله چه د دواړو نیکی برابر وی؟

۲) د حرامی جینۍ سره د حلالی هلک نکاح صحیح ده.؟ دغه رنګ د حرامی هلک سره د حلالی جینۍ نکاح صحیح ده؟

۳) آیا په حرامی به شرعی لحاظ سره د حقیقی والدینو شان حقوق وی.؟ هرکله چه دې حرام کار والدینو دوی لره پاللې وی، او تعلیم ئې پرې کړې وی، وغیره.

۴) حرامی هلک به خومره مودې پورې د پلار فرمانبردار وی، او خومره مودې پورې دمور؟

۵) که دا حرامی د بلوغ نه پس د والدینو نه جدائي اختیار کړی، نو ددې به حشر کښې څه کیږی؟

المستفتی: زرولی خان تربیلا ډیم

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: ماتت امراته له التزوج باختها بعد يوم من موتها كما في الخلاصة...... واما ما عزى الى النتف من وجوب العدة فلا يعتمد عليه.
(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲: ۳۰۸ فصل في المحرمات وحرم الجمع نكاحا)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۷۹ القسم الرابع المحرمات بالجمع)



**الجواب:** ۱) د حلالی او حرامی فرق دنیا پورې محدود دې﴿۱﴾، په آخرت کښې به دارومدار په ایمان او عمل صالح وی.

۲) د دې ټولو ښځو سره نکاح صحیح ده﴿۲﴾.

۳) د مور حق او احترام بې شک او شبهې ثابت دې، البته پلار په حقیقت کښې پلار نه دې، دهغه هیڅ د پلارولۍ حق نشته، البته د تربیت حق ئې شته.

۴) په جائز امورو کښې به د مور همیشه دپاره فرمانبردار وی، او د زانی پلار دپاره څه خاص فرمانبرداری نشته.

۵) د بلوغ نه پس جدا کیدلو کښې هر حلالی او حرامی معاف شرعی دې.
وهو الموفق

## ولد الزنا مسلمان هلک او جینۍ سره نکاح صحیح ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه روخانی د دلبر ښځه ؤتښتوله، او لرې ئې چرته بوتله، او ډیرې مودې پورې ئې د ښځې په حیثیت سره ساتله، دې ښځې د روخانی نه څو اولاده پیدا کړل، اوس هغه هلکان او

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدين: والولد له ان جاءت بعد النكاح لستة اشهر فلو لاقل من ستة اشهر من وقت النكاح لا يثبت النسب ولا يرث منه الا ان يقول هذا الولد مني ولا يقول من الزنا، والظاهر ان هذا من حيث القضاء اما من حيث الديانة فلا يجوز له ان يدعيه لان الشرع قطع نسبه منه فلا يحل له استلحاقه به ولذا لو صرح بانه من الزنا لا يثبت قضاء ايضا وانما يثبت لولم يصرح لاحتمال كونه بعقد سابق الخ.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۳۱۷ قبيل مطلب فيما لو زوج المولیٰ امته)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصكفي: حل استمتاع الرجل من امرأة لم يمنع من نكاحها مانع شرعي فخرج الذكر والخنثیٰ مشكل والوثنية والمحارم والجنية وانسان الماء.
(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۲۸۰ كتاب النكاح)

جینکي ځواني شوي دی، آیا دهغوی سره نکاح جائز ده. او ددې ښځې دواړه خاوندان ژوندی دی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد کمال اتمان زئي چارسده. ۹/۳/۱۹۷۹

**الجواب:** چونکه دا هلکان او جینکۍ انسانان او مسلمانان دی، لهذا ددوی سره نکاح صحیح ده، ځکه چه فقهاؤ د مسلمان نکاح د غیر انسان او غیر مسلم سره (علی التفصیل المشهور) ناجائز ګرزولې ده. فلیراجع الی الهندیة﴿۱﴾ والدرالمختار﴿۲﴾. وهو الموفق

## د مزنیې سره د زاني نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو وادۀ کړی سړې د یوې کنډې سره په پټه مهر مقرر کړو، او خپل وجود ئې یو بل ته ؤبخښلو، او ددې نه پس دواړو هم بستری هم کوله، دوه میاشتې پس هغه سړې دې کنډې ښځې سره نکاح کول غواړي، آیا دا نکاح به جائز وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: حکم دار خان کوه مری راولپنډی ۵/۳/۱۹۷۳

**الجواب:** د مزنیې سره د زاني نکاح جائز ده، او د نکاح نه پس جماع هم جائز ده. فی الدر المختار ولو نکحها الزانی حل له وطئها اتفاقا (هامش ردالمحتار ۲:٤٠١)﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ وفی الهندیة: ومن شروطها المحل القابل وهی المرأة التی احلها الشرع بالنکاح کذا فی النهایة. (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲٦۷ کتاب النکاح الباب الاول)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: النکاح عقد یفید ملک المتعة ای حل استمتاع الرجل من امرأة لم یمنع من نکاحها مانع شرعی فخرج الذکر والخنثیٰ المشکل والوثنیة لجواز ذکورته والمحارم والجنیة وانسان الماء لاختلاف الجنس. (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۲۸۱ کتاب النکاح)

﴿۳﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۱۷ قبیل مطلب فیما لو زوج المولیٰ امته)



## د مزنیې لور سره د زاني نکاح حرامه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه په زید د یوې ښځې سره د ناجائز تعلقاتو تهمت ؤلګیدو او حمل هم ښکاره شو، لیکن زید انکارکوی. روستو بیا زید ددې ښځې د لور سره نکاح هم وکړه، آیا دا نکاح صحیح ده؟ نکاح خوان ګناه ګار دې؟ او کوم خلق چه په دغې مجلس کښې ناست وو، دهغوی څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد ادریس مسجد کیملپور ۵/٤/۱۹۷۲

**الجواب:** که په اقرار یا شهادت سره زنا ثابته شی، نو د زید دپاره ددې ښځې لور سره نکاح حرامه ده، او په هغې کښې تعاون هم حرام دې، او د ثبوت نه مخکښې نه حرمت د نکاح موجود دې، او نه حرمت د تعاون.

وفی الهندیة: فمن زنی بامرأة حرمت علیه امها وان علت وابنتها وان سفلت. (۱:۲۹۱)﴿۱﴾. وقال الله تعالیٰ: ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان (المائدة ﴿۲﴾). وهوالموفق

## د زاني د ورور د مزنیئ د لور سره نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو سړی د یوې ښځې سره چه وادۀ کړې وه، زنا وکړه، اوس ددې مزنیئ لور ددې زاني د رور دپاره جائز ده او که نه؟ او په دې مسئله کښې اختلاف د مذاهبو شته او که نه؟ پوره تفصیلاتو نه خبرولو باندې به بنده شکر ګزار وی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد یوسف شریک دوره حدیث. ۵/٤/۱۹۷۲

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱:۲۷٤ القسم الثانی المحرمات بالصهریة)

﴿۲﴾ (سورة المائدة پاره: ٦ آیت: ۲)

**الجواب:** څنګه چه د زانی ورور دپاره د زانی د ښځې لور چه د بل خاوند نه وی، جائز ده، دغه رنګې د مزنئي لور هم جائز ده.

**لان حكم الحلال والحرام واحد من الحديث ويحل لاصول الزانى وفروعه اصول المزنى بها وفروعها، (ردالمحتار ٢: ٣٨٤)﴿١﴾ قلت فالجواز للاخوة يكون باولیٰ. وهو الموفق**

## د زانی او مزنيئ د خوی او لور په خپلو کښ د نکاح مسئله

**سوال:** محترم المقام شيخ الحديث مولانا عبد الحق صاحب دار العلوم حقانيه!

السلام عليكم ورحمة الله وبركاتة!

څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښ چه يو سړې د يوې منکوحې ښځې سره زنا وکړه، بيا د منکوحې زانيئ ښځې لور پيدا شوه، او د زانی ځوی پيدا شو، اوس زانی وائي چه دا جينۍ زما نه ده، ددې هلک او جينۍ په خپلو کښ نکاح جائز ده او که نه؟ په دې مسئله کښ پريشانه يم، زمونږ په علاقه کښ يو مولوی صاحب هم داسې استفتاء مولانارسول خان صاحب ته ؤليکله مولانا رسول خان صاحب دا جواب راؤليږو، الولد من النكاح لا من السفاح (شرح وقايه باب النسب ١٥٠) او په فتاوی عبد الحئي باب ثبوت النسب کښ ئې ليکلې دی، که يو سړې دعوی وکړی، چه دا ماشوم زما د زنا د نطفې نه پيدا شوې دې، نو نسب به ثابت وی او که نه؟ په جواب کښ ليکی، ثابت به نه وی. عالمګيری کښ دی، قال انه منى من الزنا لا يثبت نسبه ولا يرث منه كذا فى الينابيع، که وې وئيل چه دا زما د زنا د نطفې نه دې، نو نسب به ثابت نه وی، او وارث به نه وی، لکه چه په ينابيع کښ دی. اوس مسئله داده، چه د ينابيع د عبارت نه دا معلوميږی، چه کله ددهٔ نسب

﴿١﴾ قال العلامة ابن عابدين: قال فى البحر اراد بحرمة المصاهرة الحرمات الاربع حرمة المرأة على اصول الزانى وفروعه نسبا ورضاعا وحرمة اصولها وفروعها على الزانى نسبا ورضاعا كما الوطء الحلال ويحل لاصول الزانى وفروعه اصول المزنى بها وفروعها. (ردالمحتار هامش الدر المختار ٢: ٣٠٣ فصل فى المحرمات)



ثابت نه شو، نو ددې زانی د مزنيئ لور سره خپله هم نکاح کيدې شی، او د خپل ځوی دپاره هم کولې شی، ځکه چه دا جينۍ ددې زانی هيڅ نه کيږی، اوس که مسئله داسې ده، نو په فقه احناف کښ چه فقهاؤ ليکلې دی، چه که چا يوه ښځه ښکل کړه، يعنی قبلها نو په دې سره حرمت مصاهرت ثابتيږی، که ديوې ښځې فرج داخل ته ئې ؤکتل او خوند ئې حاصل کړوو يا ئې زنا وکړه، نو حرمت مصاهرت ثابتيږی، او د مزنيئ اولاد سره نکاح کول حرام او ناجائز ګرزی، او ددې دواړو په اولاد کښ هم نکاح جائز نه ده، اوس په دې عباراتو کښ تناقض معلوميږی، د مسئلې صحيح صورت واضح کړئ او دا پريشانۍ لرې کړئ؟ بينوا توجروا

المستفتی: مولوی حفظ الرحمٰن خده بانډه تخت نصرتی کرک ٢٣/٣/١٩٦٩

**الجواب:** ددې زانی ځوی اود زانيئ لور خپلو کښ نکاح کولې شی، اګرچه احتياط په نه کولو کښ دې، ځکه چه فقهاء کرامو ليکلې دی، حرم اصله وفروعه وبنت اخيه واخته وبنتها ولو من زنا (در مختار) ليکن په دې صورت کښ دا متعين نه ده، چه دا جينۍ د زانی نه پيدا شوې ده، ممکن ده چه دې ښځې د بل سړی سره هم زنا کړې وی، او دهغه نه حامله شوې وی، قال العلامه الشامى (قوله ولو من الزنا) بان يزنى الزانى ببكر ويمسكها حتى تلد بنتا بحر عن الفتح، قال الحانوتى، ولا يتصور كونها ابنته من الزنا الا بذالک﴿١﴾. پس که زانی داسې طريقه اختيار کړې وی، لکه چه شامی ذکر کړې ده، بيا حرمت د نکاح بغير د شک او شبهې نه ثابت دی، ګنی احتياط دادې، چه نکاح اونه کړی، لوجود الشبهة فليراجع الى حديث ابن زمعة﴿٢﴾ دلته د حرمت

﴿١﴾ (الدر المختار مع ردالمحتار ٢: ٣٠١ فصل فى المحرمات)

﴿٢﴾ عن عائشة قالت كان عتبة بن ابى وقاص عهد الى اخيه سعد بن ابى وقاص ان ابن وليدة زمعة منى فاقبضه اليک فلما كان عام الفتح اخذه سعد فقال انه ابن اخى وقال عبد بن زمعة اخى فتساوقا الى رسول الله ﷺ فقال سعد يا رسول الله ان اخى كان عهد الى فيه وقال عبد بن زمعة اخى وابن وليدة ابى ولد على فراشه ...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)

مصاهرت په وجه حرمت متصور نه دي، ځکه چه د زانی د فروعو دپاره د زانیئ فروع حرام نه دی.《۱》وهو الموفق ......... (محمد فرید عفی عنه)

## حبلی من الزنا سره نکاح صحیح ده. او د غیر زانی په صورت کښ وضع حمل پورې جماع حرامه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه یوې پیغلې جینۍ سره یو سړې هم بستری وکړه، چه دهغې په وجه دهغې حمل پیدا شو، والدینو د غیرت بچ کولو دپاره دیو سړې هغې سره نکاح وکړه، څلور میاشتې پس ماشوم پیدا شو، او څه وخت پس مړ شو، آیا ددې حبلی من الزنا سره دا نکاح جائز وه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد آفتاب بتالین. ۱۸/۷/۱۹۷۴

**الجواب:** ددې جینۍ سره ددې هلک نکاح صحیح ده، لیکن وضع دحمل نه مخکښ چه کومه جماع ئې کړې ده، هغه حرامه ده، په شرط ددې چه دا حمل ددغې هلک نه نه وی،

کما فی الدرالمختار: وصح نکاح حبلی من زناً لا من غیره وان حرم وطؤها ودواعیه حتی تضع لئلا یسقی مائه زرع غیره(فروع) لونکحها الزانی حل له وطؤها اتفاقا (بحذف یسیر)(هامش ردالمحتار ۲:۱ ۳۰ قبیل الولی)《۲》. وهو الموفق

(بقیه حاشیه) فقال رسول الله ﷺ هو لک یاعبد بن زمعة الولد للفراش وللعاهر الحجر ثم قال لسودة بنت زمعة احتجبی منه لما رأی من شبهه بعتبة فما راها حتی لقی الله، وفی روایة قال هو اخوک یا عبد بن زمعة من اجل انه ولد علی فراش ابیه، متفق علیه. (مشکواة المصابیح ۲:۲۸۷ باب اللعان الفصل الاول)

《۱》قال العلامة الافندی: ویحل لاصول الزانی وفروعه اصول المزنی بها وفروعها. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۰۳ فصل فی المحرمات)

《۲》(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲:۳۱۶ قبیل مطلب فیما لو زوج المولیٰ امته)



## د زانیې د ترور (د پلار خور) سره نکاح جائز ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه یو سړې دیوې رشته دارې پیغلې ښځې سره زنا کوله، درې کالو پورې دهغوی مینځ کښ د ښځې او خاوند تعلقات قائم وو، په آخر کښ حمل ؤشو او ساقط کړې شو، او په ناپوهۍ کښ ئې د دې زانیئ ترور سره نکاح وکړه، چه کله دا راز ښکاره شو، نو ددې جینۍ خپلوانو ددې خبرې ډیر زیات بد ؤګڼړل، چه داسې ګناه ګار ته مونږ هیچرې هم جینۍ ورکولو ته تیار نه یو، او بیا د سورة النور ددې تشریعی حکم په وجه هم په دې اطلاق کیږی، حرام دی د ایمان والو دپاره چه هغوی سره د پوهې خپلې لونړو داسې ګناهګارو (عام زنا کارو) ته ورکړی. او الزانی لا ینکح الا زانیة او مشرکة والزانیة لا ینکحها الا زان او مشرک و حرم ذالک علی المؤمنین. او بله داچه هم د زانی سره د نکاح حرام کیدلو مطلب امام محمد رحمه الله دا بیان کړې دې، چه د سرنه نکاح نه منعقد کیږی، اوس د اسلامی قوانینو مطابق آیا ددې مظلومې منکوحې نکاح ددې سړی سره ختمه شوې ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد بشیر حلیم کیملپور

**الجواب:** دادویمه نکاح صحیح ده، ځکه چه د زانیئ ترور د محرماتو نه نه ده،

قال الله تعالیٰ: واحل لکم ما وراء ذلکم (الآیة)《۱》، واما قوله تعالیٰ: الزانی لا ینکح(الآیة) فقیل منسوخ وقیل المقصود نفی اللیاقة الابه فافهم《۲》. وللتفصیل موضع آخر. وهو الموفق

《۱》(سورة النساء پاره: ۵ آیت: ۲۴)

《۲》قال العلامة علاؤالدین علی بن محمد: وقال سعید بن المسیب وجماعة ان حکم الایة منسوخ وکان نکاح الزانیة حراما بهذه الآیة ثم نسخت بقوله تعالیٰ (وانکحوا الایامیٰ منکم) فدخلت الزانیة فی هذا العموم واحتج من جوز نکاح الزانیة بما روی عن جابر ...... وقیل فی معنی الآیة ان الفاجر الخبیث لا یرغب فی نکاح الصالحة ...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## د حاملې مزنیې سره نکاح او په هغه سړي د جرمانې لازمولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو ځوانه عاقله بالغه جینۍ په هوش او حواس کښې په خپله رضامندۍ سره دیو ځوان سړي سره د واده کولو په غرض په عدالت کښې بیان ورکړی او دهغه سره واده وکړی. په کلی کښې ډله بازی شروع شوې ده، او زمونږ امام صاحب چه مستند عالم نه دې، بلکه ریټائرډ فوجی دې. او اوس امام جوړ شوې دې، هغه ددې جینۍ خلاف حکم شرعی صادر کړې دې. او امام خپله هم د پنځه ځلویښتو کالو باوجود ناواده کړې دې. امام صاحب ته ؤوئیلې شو چه جینۍ حامله ده، لیکن د حامله کیدو هیڅ ثبوت چاسره هم نشته. امام صاحب په دې بنیاد په واده کونکی سړې د یو سلو او شلو کسانو ډوډۍ بطور جرمانه لازم کړه، او دهغه سره ئې سلام او کلام بند کړو. سوال دادې، چه دا نکاح صحیح ده او که نه؟ او په واده والا باندې جرمانه لازمیږی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: نورالحق کوهاله مری براسته آزاد کشمیر

**الجواب:** که دا جینۍ حامله وی نو بیا هم نکاح صحیح ده، لیکن د وضع حمل نه مخکښې دهغې سره جماع نشی کولې، هرکله چه حمل ددغې سړي نه نه وی. او که حمل ددې سړي نه وی،نو بیا جماع جائزده. فی الدرالمختار وصح نکاح حبلی من الزنا وان حرم وطؤها حتی تضع (فروع) لو نکحها الزانی حل له

(بقیه حاشیه)من النساء وانما یرغب فی نکاح فاجرة خبیثة مثله او مشرکة والفاسقة الخبیثة لا ترغب فی نکاح الصلحاء من الرجال وانما ترغب فی نکاح فاسق خبیث مثلها او مشرک وحرم ذلک علی المؤمنین ای صرف الرغبة بالکلیة الی نکاح الزوانی وترک الرغبة فی الصالحات العفائف محرم علی المؤمنین ولا یلزم من حرمة هذا حرمة التزوج بالزانیة.

(تفسیر خازن ۳: ۲۸۰ سورة النور آیت: ۲)



وطؤها اتفاقا والولد له انتهی باختصار یسیر﴿۱﴾.

**ملاحظه:** دغیر کفو سره نکاح نامنظور ده﴿۲﴾ او جرمانه د جاهلیت رسم دې. وهوالموفق

## د مسلمانې ښځې د غیر مسلم سره نکاح کالعدم ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوه ښځه مسلمانه شوه، او نیکه په زور زبردستۍ یو غیر مسلم ته په نکاح ورکړه، آیا دا نکاح صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عصمت بیگم زیده مردان ۱۴صفر المظفر ۱۴۰۱ھ

**الجواب:** د مسلمانې ښځې او غیر مسلم سړي په مینځ کښې نکاح نامنظور او کالعدم ده، که دا نکاح په خوښه وی او که په ناخوښه. او که دا غیر مسلم اهل کتاب وی او که غیر اهل کتاب.

**کما فی البدائع (۲: ۲۷۱) ومنها اسلام الرجل اذا کانت المرأة مسلمة فلا یجوز النکاح المؤمنة الکافر لقوله تعالیٰ: ولا تنکحوا المشرکین حتی یؤمنوا (الآیة) ...... والنص وان ورد فی المشرکین لکن العلة وهی الدعاء الی النار یعم الکفرة اجمع فیتعمم الحکم بعموم العلة فلا یجوز انکاح المسلمة الکتابی کما لا یجوز انکاحها الوثنی والمجوسی لان الشرع قطع ولایة الکافرین عن المؤمنین بقوله تعالیٰ: ولن یجعل الله للکافرین علی المؤمنین سبیلا (الآیة) ﴿۳﴾. وهوالموفق**

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۱۶، ۳۱۷ قبیل مطلب فی ما لوزوج المولیٰ امته)

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: نفذ نکاح حرة مکلفة بلا رضاولی ...... وله ای للولی اذا کان عصبة ...... الاعتراض فی غیر الکف فیفسخه القاضی ویتجدد بتجدد النکاح مالم تلدمنه ویفتی فی غیر الکف بعدم جوازه اصلا وهو المختار للفتویٰ لفساد الزمان.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۳۲۲ باب الولی)

﴿۳﴾ (بدائع الصنائع ۲: ۵۵۴ من شروط صحة النکاح ان لا تکون مشرکة)

## د عیسائۍ ښځې سره د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د عیسائۍ ښځې سره د نکاح څه حکم دې؟ چه هغه په خپل مذهب وی، که یو مسلمان د عیسائۍ ښځې سره په دې امید نکاح وکړی، چه هغه مسلمان جوړیدل ظاهر کړی، چه د نکاح په وجه به مسلمانه شی، نو په دې صورت کښې ددې عیسائۍ ښځې سره نکاح کولو کښې زیات ثواب دې، یا د مسلمانې ښځې سره نکاح کولو کښې زیات ثواب دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: سید رحیم الله شاه اضاخیل بالا نوښار ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د موجوده زمانې عیسایان د مسئله نبوت، قیامت او جنت دوزخ نه منکردی، لهذا دهغوی سره نکاح جائز نه ده، ﴿۱﴾ البته که په هغوی کښې یوه

﴿۱﴾قال الشاه اشرف علی التهانوی رحمه الله: لیکن په دې زمانه کښې چه کومو ته نصاری وئیلې کیږی، هغوی اکثر په قومی حیثیت سره نصاری دی، مذهبی حیثیت سره صرف دهریان او سائنس پرست دی، د داسې خلقو دپاره دا حکم د جواز د نکاح نه دې. (امداد الفتاوی ۲:۲۱۳ کتاب النکاح وتفسیر بیان القرآن ۳:۹)

په فتاوٰی دارالعلوم دیوبند کښې دی: نن صبا چه کومو خلقو ته نصاری وئیلې کیږی، په هغوی کښې ډیر داسې خلق هم شته، چه دهریان دی، یو مذهب لره هم نه منی، بلکه د الله تعالی د وجود هم قائله نه دی، دا خلق اګر چه د مردم شماری په وجه نصاری ګڼړلې شی، لیکن د شریعت په حکم کښې داسې خلق اهل کتاب نشی ګڼړلې. (فتاوی دارالعلوم قدیم. ۲، ۱ : ۱۶۰)

وقال العلامه شبیراحمد عثمانی: زمونږ د زمانې نصاری عموما صرف په نوم نصاری دی، په دوی کښې په کثرت سره هغه خلق دی، چه نه د یو اسمانی کتاب قائل دی، نه د مذهب او نه د خدائې، په دوی د اهل کتاب اطلاق نشی کیدې، لهذا ددوی د ذبیحې او د ښځو حکم به د اهل کتابو پشان نه وی...... په موجوده زمانه کښې د نصاراؤسره خوراک څکاک، بې ضرورته اختلاط کول، دهغوی د ښځو په عشق کښې انختل، دا څیزونه چه خطرناکې نتیجې پیدا کوی، پټې نه دی. (فوائد عثمانیه علی تفسیر عثمانی ۷۹۶ سورة المائده پاره ٦)



ښځه ددې امورو قائله وی، نو دهغې سره نکاح صحیح ده، کما فی الهندیـــة ویجوز للمسلم نکاح الکتابیة الحربیة. والاولی ان لا یفعل﴿۱﴾. او بعضې وخت کښې یو غیر افضل کار د عوارض خارجیه په وجه افضل کیږی، پس که ددې کتابیئ ښځې اسلام قبلول متیقّن یا مظنون وی، نو دا نکاح مصلحتا افضله ده، او ذاتا افضله نه ده، لیکن واقعات داسې دی، چه دهغوی اسلام قبلول یقینی نه وی، او د خاوند د اسلام نه خلاف کارونو سره محبت پیدا کیدل مظنون دی، پس دا حیله او بهانه فائده منده نه ده﴿۲﴾. وهو الموفق

## د عیسائي ښځې سره نکاح او د مور پلار سره د معاملاتو جدا جدا احکام

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو مسلمان ځوان د اووه کالونه اعلی تعلیم دپاره یو عیسائي ملک ته تلې دې، دهغې وطن د قوانینو مطابق هلته کښې د ؤسیدلودپاره د یو عیسائۍ جینۍ سره وادهٔ کول غواړی، د شریعت مطابق والدین په لاندینو کارونو کښې رهنمائي حاصلول غواړی:

۱، آیا د موجوده زمانې عیسایان په کتاب او سنت کښې مذکور عیسایانو پشان اهل کتاب ګڼړلې شی؟

۲، کوم چه اهل کتاب ګڼړلې شی، په هغوی کښې تثلیث پرست شامل دی او که نه؟ .........

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۸۱ القسم السابع المحرمات بالشرک)

﴿۲﴾ قال العلامة عبد الرحمن الجزیری: الحنفیة قالوا یحرم تزوج الکتابیة اذا کانت فی دارالحرب غیر خاضعة لاحکام المسلمین لان ذلک فتح لباب الفتنة فقد ترغمه علی التخلق باخلاقها التی یأباها الاسلام ویعرض ابنه للتدین بدین غیر دینه ویزج بنفسه فیما لا قبل له به من ضیاع سلطته التی یحفظ بها عرضها وغیرذلک من المفاسد فالعقد وان کان یصح الا ان الاقدام علیه مکروه تحریما لما یترتب علیه من المفاسد اما اذا کانت ذمیة ویمکن اخضاعها للقوانین الاسلامیة فانه یکره نکاحها تنزیها.
(الفقه علی المذاهب الاربعة ۴: ۷۴ مبحث المحرمات لاختلاف الدین)

۳، او که جینۍ عیسائیه وی نو دهغې سره نکاح جائز ده؟

۴، د نکاح کولو نه مخکښ یا روستو که دا جینۍ د سخر سره خط وکتابت شروع کړی، نو دهغې جواب ورکول پکار دی؟

۵، د وادهٔ نه پس هغه اینګور هر د مسلمانانو یا کافرانو په معاشره کښې د خاوند سره یا د خاوند نه بغیر شرکت کوی، په دې صورت کښې که انګور عیسائیه وی، او که مسلمانه شی، نو سخر لره د اینګور سره خط او کتابت او جینۍ ته تلې راتلې شی؟

۶، که څوی عیسائي مذهب اختیار کړی، نو په دې صورت کښې د څوی او اینګور سره د کومو تعلقاتو ممانعت دې؟

**نوټ:** هلک والدینو ته داسې یو خط لیکلې دې، ددې څه حکم دې؟

"زهٔ جینۍ ته د یوانسان په حیثیت سره ګورم، دهغې ذات پات، رنګ، مذهب او ملکیت ته نه ګورم، او نه ماته دهغې حق شته، کومې خبرې چه په پاکستان کښې ضروری ګڼړلې شی، دهغې دلته کښې شمار نشته، د مشرق او مغرب یو ځائې والې نه شوې دې او نه به ؤشی، د وادهٔ نه پس به هم زما د تاسو سره هم هغه رشته وی"

المستفتی: غلام نبی مدرسه عربیه عیدګاه طوغی روډ کوئټه ۱۹۷۲/۳/ ۱۲

**الجواب:** (۱) د نن زمانې عیسایان اکثر دهریان شوې دی، لهذا په هغوی به بغیر د تحقیق نه د اهل کتاب احکام نشی جاری کولې، په هغوی کښې چه څوک الله تعالی نه منی، یا د نبوت او ارسال کتب نه منکر دی، یا د قیامت او جنت دوزخ نه منکر دی، هغوی اهل کتاب نه دی. ﴿۱﴾

﴿۱﴾ قال الشیخ العلامة الحافظ محمد ادریس الکاندهلوی: د اهل کتابو نه هغه خلق مراد دی چه هغوی مذهباً اهل کتاب وی دا نه چه هغوی صرف د قومیت په لحاظ سره یهودی یا نصرانی وی.........(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



۲، اعتقاد د تثلیث او بنوت د عیسی علیه السلام لره د الله تعالی څوی ګڼړل په اهل کتاب کیدلو کښې مانع نه دی، لانهم کانوا یعتقدون بهما فی زمنه وهو ظاهر المذهب﴿۱﴾.

۳، که دا جینۍ اهل کتاب وی، یعنی پیغمبر او نازل شوې کتاب منی، نو ددې سره نکاح جائز ده.

۴، په خط او کتابت کښې هیڅ ګناه نشته.

۵، په نقل وحرکت او شرکت کولو کښې د مسلمې او غیرمسلمې څه خاص فرق نشته، خط وکتابت او تلل راتلل جائز دی، هرکله چه د فتنې ویره نه وی.

۶، په دهٔ به د مرتد احکام جاری کیږی.

**نوټ** : دا د زندقې الفاظ دی. وهو الموفق

## د شیعه سره د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د یوې سنې ښځې د

(بقیه حاشیه) اګر که عقیدةً دهریه وی. ددې زمانې نصاری عموما صرف په نوم نصاری دی، په هغوی کښې په کثرت سره داسی دی، چه نه دخدائي قائل دی، او نه د مذهب قائل دی، اونه د اسمانی کتاب قائل دی، په داسې خلقو داهل کتاب اطلاق نه کیږی، لهذا دهغوی د ذبیحې او دهغوی د ښځو حکم به د اهل کتاب پشان نه وی.

(تفسیر معارف القرآن ۲: ۲۴۶ سورة المائدة آیت: ۵ پاره: ۶)

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: قال فی البحر وحاصله ان المذهب الاطلاق لما ذکره شمس الائمة فی المبسوط من ان ذبیحة النصرانی حلال مطلقا سواء قال بثالث ثلاثة اولا لاطلاق الکتاب هنا والدلیل ورجحه فی فتح القدیر بان القائل بذلک طائفتان من الیهود والنصاریٰ انقرضوا لاکلهم مع ان مطلق لفظ الشرک اذا ذکر فی لسان الشرع لا ینصرف الی اهل الکتاب الخ.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۳۱۴ قوله وصح نکاح کتابیة باب المحرمات)

شیعه سړي سره نکاح جائز ده او که نه؟ چه د ښځې رضا نه وی او والدینو د پیسو په لالچ کښ ورکړې وی، بیا دا جینۍ د هغه نه اؤتښتیده، او د بل سړي سره ئې نکاح وکړه، آیا دا دویمه نکاح هم جائز ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: حافظ محمد اکرم مین بازار سرګودها. ۲۵/۴/۱۹۷۲

**الجواب:** که والدینو دې جینۍ لره بغیر د دې د مرضی نه په نکاح سره ورکړې وی، نو دا نکاح نامنظوره او کالعدم ده، په شرط ددې چه جینۍ بالغه وی، او د نکاح خبر موندلو سره ئې رد کړې وی، فی الهندیة ۱: ۳۰۵ لا یجوز نکاح احد علی بالغة صحیحة العقل من اب او سلطان بغیر اذنها(۱). او که نکاح د نابالغ والی په حالت کښ شوې وی، او دا شیعه کافر وی، یعنی د حضرت علی رضی الله عنه د نبوت قائل وی، یا د حضرت عائشې رضی الله عنها باندې تهمت لګونکې وی، وهکذا، نو دا نکاح کالعدم او نامنظوره ده، او دویمه نکاح د سنی مسلمان سره صحیح ده، لانه کافر صرح به فی ردالمحتار ۳: ۴۲۸(۲) ونکاح المسلمة من الکافر لا یصح اجماعا(۳). وهو الموفق

﴿۱﴾(فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۸۷ الباب الرابع فی الاولیاء)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: لا شک فی تکفیر من قذف السیدة عائشة رضی الله عنها او انکر صحبة الصدیق او اعتقد الالوهیة فی علی او ان جبرئیل غلط فی الوحی او نحو ذلک من الکفر الصریح المخالف للقرآن.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۳۲۱ مطلب فی حکم سب الشیخین)

﴿۳﴾ قال العلامة عبد الرحمن الجزیری: ولا یحل للمسلمة ان تتزوج الکتابی، کما لایحل لها ان تتزوج غیره(ای غیر الکتابی من الکافر)فالشرط فی صحة نکاح المسلمة ان یکون الزوج مسلماً ودلیل ذلک قوله تعالیٰ: ولا تنکحوا المشرکٰت حتی یؤمن، (البقرة) وقوله مخاطباً للرجال: ولا تنکحوا المشرکین حتی......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د شیعه ښځې یا سړي سره د سنی مسلمان نکاح جائز نه ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه د شیعه ګانو سره د نکاح څه حکم دې؟ آیا عدم جواز په دې صورت کښ دې، چه ښځه شیعه وی، او سړې سنی وی، یا ښځه سنی او سړې شیعه وی، په تفصیل سره مو خبر کړئ؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد سردار کوهاټ. ۵/۱۰/۱۹۷۸

**الجواب:** پاکستانی او ایرانی شیعه د اسلام نه خارج دی، ځکه چه دا خلق د ضروریات دین نه منکر دی.

کما یدل علیه مافی ردالمحتار ۳: ۴۲۸ وکذا قال فی شرح منیة المصلی ان ساب الشیخین ومنکر خلافتهما ممن بناه علی شبهة له لا یکفر بخلاف من ادعی ان علیا اله وان جبرئیل غلط (الی ان قال الشامی) وکذا یکفر قاذف عائشة ومنکر صحبة ابیها لان ذلک تکذیب صریح القرآن کما مر فی الباب السابق(۱).

لهذا د شیعه ښځې یا سړي سره نکاح دهغوی د کفر په وجه جائز نه ده(۲).

ای لکفرهم بعد ادعاء اسلامهم وهو ارتداد ...........

(بقیه حاشیه) یؤمنوا، (البقرة) فهاتان الآیتان تدلان علی انه لا یحل للرجل ان ینکح المشرکة علی ای حال کما لایحل للمرأة ان تنکح المشرک علی ای حال الابعد ایمانهم ودخولهم فی المسلمین. (الفقه علی المذاهب الاربعة ۴: ۷۳ مبحث المحرمات لاختلاف الدین)

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۳: ۳۳۹ قبیل مطلب الامام یصیر اماما بالمبایعة)

﴿۲﴾ قال العلامة علاء الدین السمرقندی: لا یحل وطْ المشرکات بنکاح ولا بملک یمین لقوله تعالیٰ: ولا تنکحوا المشرکات حتی یؤمن، (الآیة)...... واما المرتدة فلا یجوز لمسلم ولا لکافر ولا لمرتد نکاحها لانه لاملة لها للحال لانها ترکت ملة الاسلام فلا تقر علی ما صارت الیه من الملة.

(تحفة الفقهاء ۲: ۱۹۲، ۱۹۳ بحث التحریم بسبب الشرک)

فی الحقیقة﴿۱﴾.فافهم، وهوالموفق

## د رافضی اوشیعی سره نکاح باطل او کالعدم ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښې چه زما ترۀ د اهل سنت والجماعت قريشی هاشمی فرقه حنفی سره تعلق ساتی، بدقسمتۍ سره زما مشر ترۀ نهه لس کاله په تير شوې جنګ عظيم کښې په ايران کښې تير کړل، چه کله پاکستان ته واپس راغلو، نو کټر رافضی او شيعه جوړ شوې وو، او ننه پورې په دې مسلک قائم دې. بدقسمتۍ نه زماکشر ترۀ خپل ځوارۀ ته صرف د لور ورکولو وعده کړې ده، او هغه ځوم هم د خپل پلار په مسلک باندې مضبوطيا سره قائم دې. مونږ ټول خاندان والو دهغوی سره قطع تعلق کړې دې، اوس ددې رشتې څه حکم دې؟ بينوا توجروا

المستفتی: نورمحمد قريشی راولپنډی. ۷ رمضان ۱۳۹۵ھ

**الجواب:** داخبره د واضحه وی، چه د پاکستان او ايران شيعه ګان د اسلام نه خارج دی، دهغوی سره د مسلمانانو نکاح باطل او کالعدم ده.

اما خروجهم عن الاسلام فلانهم يعتقدون بتحريف القرآن سراً ويتهمون بالافک على الصديقة وينكرون صحبة ابيها، وفى ردالمحتار ۲:۳۹۸ وبهذا ظهر ان الرافضى ان كان ممن يعتقد الالوهية فى على (رضى الله عنه) او ان جبرئيل غلط فى الوحى او كان ينكر صحبة الصديق او يقذف السيدة الصديقة ............

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى: (المرتد) شرعا الراجع عن دين الاسلام وركنها اجراء كلمة الكفر على اللسان بعد الايمان، قال ابن عابدين: هذا بالنسبة الى الظاهر الذى يحكم به الحاكم والا فقد تكون بدونه كما لو عرض له اعتقاد باطل او نوى ان يكفر بعد حين. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۳: ۳۰۹ باب المرتد)



فهو كافر لمخالفته القواطع المعلومة من الدين بالضرورة﴿۱﴾، انتهىٰ بقدر الضرورة. واما عدم صحة النكاح فلقوله تعالىٰ: فان علمتموهن مؤمنات (الآية) (ممتحنة)﴿۲﴾

قلت: انهم ادعو الاسلام اجمالا فى بدء الامر ثم خرجوا منه فى العاقبة فيكونون مرتدين ولا يكونون مثل اهل الكتاب لانهم يدعوالاسلام فافهم، فانه من مزال الاقدام﴿۳﴾

اوكه دا ثابته شی چه دا رافضی (ناکح) د اسلام نه خارج نه دې، د دين ضروری احکامو لره منی﴿۴﴾، نو په دې کښې به د عدم کفاءت احکام جاری کيږی﴿۵﴾، پس بهرحال ددې نکاح نه بچ کيدل ضروری دی. وهوالموفق

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۱۴ فصل فى المحرمات كتاب النكاح)

﴿۲﴾ (سورة الممتحنة پاره:۲۸ آيت:۱۰)

﴿۳﴾ قال العلامه محمد امين افندى: ويجب اكفار الروافض بقولهم برجعة الاموات الى الدنيا وتناسخ الارواح وانتقال روح الالٰه الى الائمة وان الائمة آلهة وبقولهم بخروج امام ناطق بالحق وانقطاع الامر والنهى الى ان يخرج وبقولهم ان جبريل عليه السلام غلط فى الوحى الى محمد ﷺ دون على كرم الله وجهه واحكام هؤلاء احكام المرتدين...... اعلم ان المفهوم من هذه النقول المنقولة عن علماء مذهبنا وغيرهم ان المحكوم عليه بالكفر فى هذه المسائل حكمه حكم المرتد.

(رسائل ابن عابدين ۱: ۳۵۹ تنبيه الولاة والحكام على احكام شاتم خير الانام)

﴿۴﴾ قال العلامة الآفندى: واما المعتزلة فمقتضى الوجه حل مناكحتهم لان الحق عدم تكفير اهل القبلة وان وقع الزاما فى المباحث بخلاف من خالف القواطع المعلومة بالضرورة من الدين. (فتاوىٰ الشامية ۲:۳۱۴ تحت قوله وصح نكاح كتابية فصل فى المحرمات)

﴿۵﴾ وفى الهندية: تعتبر الكفاءة فى الديانة...... فلا يكون الفاسق كفأ للصالحة سواء كان معلن الفسق اولم يكن. (فتاوىٰ عالمگيريه ۱: ۲۹۱ الباب الخامس فى الاكفاء)

## د شیعه او سنی په نکاح کښې د اهل سنت مولوی کښیناستلو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوه نکاح منعقده شوه، چه په هغې کښې د جینۍ پلار شیعه وو، په دې مجلس کښې یو مولوی صاحب هم ناست وو، چه د اهل سنت نه وو، دهغه متعلق اوس بعضې خلق پروپیګنډه کوی، چه دا نکاح اګر چه د اهل سنت وه، لیکن د جینۍ پلار شیعه وو، ددې وجه نه دا مولوی صاحب چه کوم ناست وو، مجرم دې، شرعا ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: انسپکټر غلام رسول ۱۹۷۸/۷/۲۹

**الجواب:** په داسې مجلس کښې د شاملیدو د حرمت هیڅ وجه نشته، البته په حرام نکاح کښې شاملیدل حرام دی. لکونه تعاونا علی المعصیة﴿۱﴾ وتقریرا للمنکر﴿۲﴾. وهو الموفق

## د سنی شیعه نکاح کولو والا او په دې مجلس کښې د شرکت کونکو حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زید سنی المذهب دې، اوصالح غالی شیعه دې، اوس زید د خپلې سنی لور نکاح د صالح ځوی سره کړې ده، چه د پلار په شان غالی شیعه ده، په دې مجلس نکاح کښې عام مسلمانانو هم شرکت وکړو، اوس سوال دادې، چه دې شرکت کونکو دپاره د تجدید نکاح ضرورت شته او که نه؟ دې شریکانو لره د اختر په مونځ کښې، دجمعې اوجنازې وغیره په مونځ کښې شریکیدلو اجازت ورکول پکار دی که

﴿۱﴾ قال الله تعالیٰ: ولا تعاونوا علی الاثم والعدوان(الآية). (سورة المائدة پاره:۶ آیت:۲)

﴿۲﴾ عن جریر بن عبد الله قال سمعت رسول الله ﷺ یقول ما من رجل یکون فی قوم یعمل فیهم بالمعاصی یقدرون علی ان یغیروا علیه ولا یغیرون الا اصابهم الله منه بعقاب قبل ان یموتوا، رواه ابوداؤد وابن ماجة. (مشکواة المصابیح ۲:۴۳۷ باب الامر بالمعروف الفصل الثانی)



نه؟ اودجینۍ نکاح بغیر د طلاق نه بل ځائې کیدې شی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی عطاء الله چکړالوی میانوالی. ۱۹۷۶/۲/۵

**الجواب:** دا نکاح باطل او کالعدم ده.

لکون الزوج کافراً کما فی ردالمحتار ۲:۳۹۸ وبهذا ظهر ان الرافضی ان کان ممن یعتقد الالوهیة فی علی او ان جبرئیل غلط فی الوحی او کان ینکر صحبة الصدیق او یقذف السیدة الصدیقة فهو کافر لمخالفته القواطع المعلومة من الدین بالضرورة﴿۱﴾ دا جینۍ د طلاق نه بغیر بل ځائې کښې نکاح کولې شی، او دا ناکح او ګواهان او نکاح خوان که دې لره حلاله ګڼړی، نو په هغوی توبه﴿۲﴾ او تجدید نکاح ضروری ده﴿۳﴾، ګنی ضروری نه ده، او د مونځ او عبادت نه دهغوی منع کول حرام دی. وهو الموفق

## د قادیانی سره نکاح باطل او کالعدم ده

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه درې کاله مخکښې د یوې ښځې نکاح د یو سړې سره شوې وه، اوس معلومه شوه چه هغه قادیانی دې، دهغوی دوه بچی هم شوې دی، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: اختر ۱۹۷۷/۱۰/۳۰

﴿۱﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۱۴ فصل فی المحرمات کتاب النکاح)

﴿۲﴾ قال الملا علی قاری: اذا اعتقد الحرام حلالا فان کان حرمته لعینه وقد ثبت بدلیل قطعی یکفر والا فلابان تکون حرمته لغیره اوثبت بدلیل ظنی، وبعضهم لم یفرق بین الحرام لعینه ولغیره فقال من استحل حراما وقد علم فی دین النبی ﷺ تحریمه کنکاح ذوی المحارم او شرب الخمر اواکل میتة او دم اولحم خنزیر من غیر ضرورة فکافر. (شرح فقه الاکبر ۱۵۲ ومنها استحلال المعصیة)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: ما یکون کفرا اتفاقا......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**الجواب:** قادیانان د ضروریات دین نه د انکار او زندقیت په وجه کافران دی﴿۱﴾،لهذادا نکاح باطل او کالعدم ده،او ښځې لره زر ترزره جدا کیدل پکار دی﴿۲﴾.اوپه اهل اسلام ددې امداد کول ضروری دې﴿۳﴾. وهو الموفق

(بقیه حاشیه) **یبطل العمل والنکاح.**

**(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۳۲۸ باب المرتد)**

﴿۱﴾ قال العلامة مفتی کفایت الله الدهلوی: مرزا قادیانی په خپلو تصنیفاتو کښ د نبوت، مجددیت، محدثیت، مسیحیت او د مهدویت دومره صفا او کثرت سره دعوی کړې ده، چه دهغې نه انکار یا په هغې کښ تاویل ناممکن دې، د خاتم المرسلین نه پس د نبوت دعوی کول کفر دې، ملت اسلامیه د نبی کریم ﷺ نه پس یو د نبوت دعوی کونکې لره په اسلام کښ داخلولو دپاره بالکل تیار نه دی. اګر که هغه د نبوت ظلیه، بروزیه جزئیه تاویلاتو پناه واخلی، یا ښکاره د نبوت تشریعیه مدعی وی،د مرزا قادیانی د کفرنورې هم وجه دی،مثلاد عیسیٰ علیه السلام سپکوالې،د قرآن مجید د معجزو نه انکار،او په ناقابل اعتبار تاویلونو سره هغه رد کول،یا توقې کول،او چونکه دا کارونه د مرزا صاحب په کتابونو کښ د نیمې وُرځې د نمرشان روښانه اوښکاره دی،ددې وجه نه د لاهوری ډلې انکار او تاویلونه هم لاهوری ډلې لره د کفر نه بچ نه کړل، اګر چه دا دواړه ډلې د اسلام دعوی کونکی دی.لیکن د عالم اسلام معتمد علماؤ دې دواړو لره د ملت اسلامیه نه خارج کړې دی. (کفایة المفتی ۱: ۳۲۳ فصل چهارم فرقه قادیانی)

﴿۲﴾**قال العلامة ابن عابدین: (وحرم نکاح الوثنیة) ...... ویدخل فی عبد الاوثان عبدة الشمس والنجوم والصور التی استحسنوها والمعطلة والزنادقة والباطنیة والاباحیة وفی شرح الوجیز وکل مذهب یکفر به معتقده قلت وشمل ذلک الدروز والنصیریة والتیامنة فلا تحل مناکحتهم الخ.**

**(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۳۱۴ فصل فی المحرمات)**

﴿۳﴾ **قال الله تعالیٰ: وتعاونوا علی البر والتقویٰ.**

**(سورة المائدة پاره:۶ آیت:۲)**



## د مرزایانو په نکاح کښ د رجسټرار د تعاون حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه یو مرزائي سړې د خپلې لور وادهٔ د یو مرزائي سړې سره وکړو، چه دهغې نکاح یو مرزائي نکاح خوان وُتړله،اود نکاح نامې ئې ځلور فهرستونه ټیپ کړل، اود متعلقه وارډ دنکاح رجسټرارته ئې وُلیږل، یعنی د ټاؤن کمیټۍ دفتر ته ئې فارمونه وُلیږل، نکاح رجسټراردې فارمونو لره لوستلې هم نه دی،اوس صرف فارمونه د نکاح رجسټرار په ذریعې ټاؤن کمیټۍ ته لیږل دی،آیاپه دې لیږلو کښ به شرعی ګناه وی؟ ځکه چه داخو دمالایطاق ترک موالات صورت دې؟ بینوا توجروا

المستفتی : فضل کریم کهوټه راولپنډی.

**الجواب:** اګر چه په دې کښ څه ګناه نشته، لیکن ستا دپاره ضروری ده، چه د داسې عمل نه هم د بچ کیدلو څه تدبیر وکړې﴿۱﴾. وهو الموفق

## قادیانئ ښځه که مسلمانه شی نو دوباره ئې قادیانی ته حواله کول حرام دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه یوه ښځه وادهٔ کړې، چه مرزائي عقیده ئې لرله، د قادیانی خاوند او دهغې په مینځ کښ په بعضو معاملاتو اختلاف پیدا شو، د ذهنی تضاد په وجه هغې د خاوند نه قانونی طور باندې جدا والې اختیار کړو، او اتهٔ میاشتې د یو سنی العقیده سړې په پرورش کښ وه، په دې دوران کښ دهغې خاوند په یو ځائې کیدلو او خرچه ورکولو کښ ناکامه وو، ښځې د دوؤ ګواهانو په مخکښ په عدالت کښ د مرزاغلام احمد د نبوت نه انکار وکړو، او د یو ممتاز عالم دین په لاس

**﴿۱﴾ قال العلامة عمادا لدین ابن کثیر: یامر الله تعالیٰ عباده المؤمنین بالمعاونة علی فعل الخیرات وهو البر، وترک المنکرات وهو التقویٰ وینهاهم عن التناصر علی الباطل والتعاون علی المآثم والمحارم.**

**(تفسیر ابن کثیر ۲:۱۰ سوره المائدة آیت:۲)**

مبارک ئې اسلام قبول کړو، علماء دین فتوی جاری کړه، چه که د عدت دوران کښې خاوند هم اسلام قبول کړو، نو صحیح ګڼی د عدت نه پس به دا دهغه د نکاح نه خارجه شی. لیکن حاکمانو دې فتوې لره د منلو نه انکار وکړو، او د ملکی عائلی قوانینو د لاندې دا ئې د قادیانی ښځه مقرر کړه، او دهغه سره د تللو حکم ئې ورته وکړو، آیا شرعا دا دهغه قادیانی ښځه کیدې شی؟ او مونږ ددې حاکمانو خلاف دعوې کولو حقدار یو، چه یوه مسلمانه ښځه د مرزائي په زوجیت کښې ورکوی، او په زنا کارۍ ئې مجبوروی، او د اسلام سپکاوې کوی؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عجائب ګوندل تهرپارکر ۹/۱۰/۱۹۶۹

**الجواب:** که دې ښځې د مرزا غلام احمد د نبوت او مجددیت دواړو نه انکار کړې وی، او د مرزایانو د ټول عقیدو نه ئې جدا والې اختیار کړې وی، نو دې ښځې لره قادیانی ته حواله کول حرام دی﴿۱﴾، او همیشه دپاره په زنا باندې مجبوره کول دی، چه د مسلمان حاکم او محکوم ټولو دپاره یو بدرنګه داغ دې. وهو الموفق

## د قادیانی سره نکاح کالعدم او حرام ده. او اولاد به صرف د مور نه ثابت النسب وی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه د یوې مسلمانې جینۍ نکاح د قادیانی (لاهوری) سره ؤشوه، او اولاد ئې هم پیدا شو، بیا نوسې هم پیدا شوې، اوس چه هرکله هغوی غیر مسلم ګرزولې شوې دی، نو ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: ملازم حسین راولپنډی. ۱۷ جولائي ۱۹۷۹ء

**الجواب:** دانکاح حرام او کالعدم ده، اود اولاد نسب صرف د مور نه ثابت دې، او ددې مرزائي نه ثابت نه دې، کما فی الدر المختار۳:۵۵۵ وفی مجمع الفتاوی

﴿۱﴾ قال العلامة الحصکفی: واذا اسلم احد الزوجین...... عرض الاسلام علی الآخر فان اسلم فبها والا بان ابی اوسکت فرق بینهما.
(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۴۲۲ باب نکاح الکافر)



نکح کافر مسلمة فولدت منه لا یثبت النسب منه ولا تجب العدة لانــه نکــاح باطل﴿۱﴾. وهو الموفق

## د ناپوهۍ په وجه د قادیانئ سره د نکاح کونکی او نکاح تړونکی حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه زهٔ د ګجرات ؤسیدونکې یم، ما په جنوری ۱۹۷۵ء کښې شهبازیه نوښار صدر کښې د اسلامی فقه مطابق نکاح وکړه، نکاح مولانا..... خطیب مسجد درزیان ؤتړله، دې دوران کښې جینۍ خپل ځان مسلمان حنفی مذهب والا ظاهر کړو، دري نیم کاله په جده کښې ماسره آباده وه، ما دې جینۍ ته د حج د ادا کولو ؤوئیل نو هغې ناخوښه الفاظ استعمال کړل، او وې وئیل چه ما حج اکبر په دسمبر کښې په ربوه کښې کیږی، ما هغې ته د اسلام دعوت ورکړو، لیکن د انکار نه پس ما درې طلاقه ورکړل، او پاکستان ته مې راؤلیږله، پوښتنه داده:

۱) چه د ناپوهۍ په وجه ددې نکاح دوران کښې د جماع څه حکم دې؟ آیا شرعا څه تعزیر شته؟

۲) روستو بیا سول جج په اختیاراتو د فیملی حج ګجرات دې نکاح لره غیر شرعی اوګرزؤله، دهغې قادیانیت ثابت شو. بیا هم په دې نکاح کونکې مولوی صاحب باندې څه ګناه وی؟ یا ګواهان ګناه ګار دی؟

۳) د نکاح په وخت کښې مهر پنځه زره معجل او پنځه زره مؤجل ایښودلې شوې وو، هغه مې د نکاح په دویمه ؤرځ ورکړې وو، اوس ترې انکارې هم ده، او عدالت ته ئې رجوع کړې ده، ددې مهر څه حکم دې؟

۴) د خپل سامان سره تقریبا د پنځویشتو زرو زما سامان ئې هم ؤړولې دې، هغې لره واپس اخستلې شم، یا هغه به دهغې وی؟

۵) د ربوه عقیده لرونکې یا غلام احمد ته نبی ویونکې که د مسلمان سره دهوکه وکړی، یا د مذهبی سپکوالی ارتکاب وکړی، نود وخت حاکم به دهغه محاسبه کوی او که نه؟ او حکومت دوی لره غیر مسلم ګڼړلې دی، لیکن دا

﴿۱﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۲: ۶۸۷ قبیل باب الحضانة)

خلق شناختی کارډ، پاسپورټ او مسلم فیملی لاء ۱۹۷۸ء عدالتونو ته دهوکه ورکولو دپاره د اسلام نوم استعمالوی، آیا دا خلق د مسلم فیملی لاء ۱۹۶۹ء د لاندې د مسلمان خلاف دعوی کولې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد اورنگزیب خان لودهی کنجاه گجرات ۱۲ محرم ۱۴۰۳ھ

**الجواب:** ۱) قادیانیه ښځه مرتده ده، او د مرتدې سره نکاح ناجائز ده، (شامی،﴿۱﴾ بحر)﴿۲﴾ او د ناپوهۍ په وجه په دې خاوند هیڅ حد یا تعزیر نشته، خاصکر چه د عقد شبه موجوده ده. (شامی)﴿۳﴾

۲) ناکح، خطیب (نکاح خوان) او گواهانو د ناپوهۍ په وجه دا کار کړې دې، لهذا په دوی کښې یو هم مجرم او گناه گار نه دې، لحديث ورد بذالک﴿٤﴾.

---

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى: ويبطل من النكاح والذبيحة والصيد والشهادة والارث، قال ابن عابدين: النكاح اى ولو لمرتدةمثله.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳: ۳۳۰ باب المرتد)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن نجيم: فلا يتزوج المرتد مسلمة ولا كتابية ولا مرتدة ولا يتزوج المرتدة مسلم ولا كافر ولا مرتد.

(البحر الرائق ۳: ۲۰۹ باب نكاح الكافر)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصكفى: ولا حد ايضا بشبهة العقد اى عقد النكاح، قال ابن عابدين: اى ما وجد فيه العقد صورة لاحقيقة...... او لكون اختها مثلا فى نكاحه او هى مجوسية او مرتدة فلا حد عليه وان علم الحرمة.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۳: ۱۶۸ مطلب فى بيان شبهة العقد كتاب الحدود)

﴿۴﴾ عن ابن عباس ان رسول الله ﷺ قال ان الله تجاوز عن امتى الخطأ والنسيان وما استكرهوا عليه رواه ابن ماجة والبيهقى وفى الجامع رواه ابن ماجة عن ابى ذر والطبرانى والحاكم فى مستدركه عن ابن عباس وفى...... (بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



۳) په دې صورت کښې د عقد د شبهې په وجه حد ساقط دې او د جماع په وجه مهر لازم دې. (شامی)﴿۱﴾

٤) ته د خپل سامان یا دهغې دقیمت اخستلو حقدار ئې.

۵) مرتد خلق ددې دعوی حقدار نه دی، بلکه د دهوکې وغیره جرمونو سزا ملاویدو حقدار دی، وهو الموفق

## د مشرکې ښځې سره د دیوبندی عقیدې لرونکې سړي نکاح

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو صحیح العقیده دیوبندی مسلک والا مسلمان ځوان سړي نکاح د یو بریلوی عقیدې والا ښځې سره، چه دهغې عقیده داوی، چه نبی کریم ﷺ د الله تعالی ذاتی نور دې، عالم الغیب حاضر ناظر او کارساز هم دې، د بشریت نه منکره ده، ټول انبیاء او اولیاء حاجت روا، مشکل کشا، عالم الغیب او حاضر ناظر دی، سره نکاح کیدې شی او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: سیف الدین اټک ښار ۷/۸/۱۹۸۳

---

(بقيه حاشيه) رواية للطبرانى عن ثوبان. (مرقاة المفاتيح ۱۱: ۲۷۴ باب ثواب هذه الامة)وفى انجاح الحاجة هامش ابن ماجة: ان الله تعالىٰ رفع عن امتى الخ (ابن ماجة ۱: ۶۵)

وقال العلامة ابن عابدين: (رفع عن امتى الخطأ) قال فى الفتح ولم يوجد بهذا اللفظ فى شيئ من كتب الحديث بل الموجود فيها ان الله وضع عن امتى الخطأ والنسيان وما استكرهوا عليه رواه ابن ماجة وابن حبان والحاكم وقال صحيح على شرطهما.

(ردالمحتار ۱: ۴۵۴ مطلب فى الفرق بين السهو والنسيان)

﴿۱﴾ قال العلامة الحصكفى: وفى مسئلة النسيان اذالحكم فى تزوجهما معا البطلان وعدم وجوب المهر الا بالوطأ كما فى عامة الكتب الخ.

(الدرالمختار على هامش ردالمحتار ۲: ۳۱۰ باب المحرمات)

**الجواب:** د داسې ښځې سره د مسلمان نکاح صحیح نه ده، داسې ښځه مرتده ده، او د اهل کتاب نه هم بدتره ده﴿۱﴾ لقوله تعالی : ولا تنکحوا المشرکات حتی یؤمن (الآیة)﴿۲﴾ وهو الموفق

### د قبر پرست او د غیر الله په نوم منخته کولو والا سره د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یو قبر پرست، پیر پرست، او د غیرالله په نوم منخته کونکې او نور شرکیه عقیدې لرونکې سړې سره نکاح شرعا جائز ده او که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: صوفی محمد شریف کیملپور ۱۰/۲/۱۹۷۵

**الجواب:** بشرط صدق و ثبوت د داسې سړې سره د مسلمانې جینۍ نکاح صحیح نه ده.

**کما فی الهندیة ۱:۲۹۹ ویدخل فی عبدة الاوثان عبدة الشمس والنجوم والصور التی استحسنوها والمعطلة والزنادقة والباطنیة والاباحیة وکل مذهب یکفر به معتقده کذا فی فتح القدیر﴿۳﴾. وهوالموفق**

### د پرچمي او خلقي پارټۍ والو سره د نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه کوم خلق په افغانستان

﴿۱﴾ وفی الهندیة: لا یجوز نکاح المجوسیات ولا الوثنیات...... ویدخل فی عبدة الاوثان عبدة الشمس والنجوم والصور التی استحسنوها والمعطلة والزنادقة والباطنیة والاباحیة وکل مذهب یکفر به معتقده کذا فی فتح القدیر.

(فتاوئ عالمگیریه ۱:۲۸۱ القسم السابع المحرمات بالشرک

﴿۲﴾ (سورة البقرة پاره:۲ آیت:۲۲۱)

﴿۳﴾ (فتاوئ عالمگیریه ۱:۲۸۱ القسم السابع المحرمات بالشرک



کښې پرچمي او خلقي دي، او د مجاهدینو په مقابله کښې جنګیږي، دهغې خلقو سره د نکاح څه حکم دي؟ او دهغوی نکاح ختمې شوې دی که نه؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمود حقانی ۱۴/۲/۱۹۸۷

**الجواب:** هرهغه سړې چه دهغه عقیده د کمیونزم وی، او کمیونزم لره د ترقی او اسلام لره د تنزل باعث ګڼړی، هغه مرتد دې﴿۱﴾، دهغه سره نکاح جائز نه ده، او دهغوی ښځو سره د عدت نه پس نکاح کیدې شی﴿۲﴾. وهو الموفق

### د فسخ نکاح دپاره ارتداد د فسخ باعث نه دې. او نه د دویمې نکاح د پاره جائز کونکې دې

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوه ښځه چه دیو سړې منکوحه وی، اوصرف په دې ارادې چه زما نکاح ختمه شی، ارتداد اختیار

﴿۱﴾ قال العلامة الافندی: ذکر فی المسایرة ان ماینفی الاستسلام او یوجب التکذیب فهو کفر، وقال الحصکفی: من هزل بلفظ کفر ارتد وان لم یعتقده للاستخفاف فهو ککفر العناد والکفر شرعا تکذیبه ﷺ فی شیئ مماجاء به من الدین ضرورة.

(الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۳:۳۱۱ باب المرتد

وفی الهندیة: وبتحسین امر الکفار اتفاقا. (فتاوئ عالمگیریة ۲:۲۷۷ کتاب الارتداد

﴿۲﴾ قال العلامة الحصکفی: لم تبن حتی تحیض ثلاثا او تمضی ثلاثة اشهر قبل اسلام الآخر اقامة لشرط الفرقة مقام السبب، قال ابن عابدین: وهل تجب العدة بعد مضی هذه المدة فان کانت المرأة حربیة فلا لانه لا عدة علی الحربیة وان کانت هی المسلمة فخرجت الینا فتمت الحیض هنا فکذلک عند ابی حنیفة خلافا لهما لان المهاجرة لاعدة علیها عنده خلافا لهما کما سیأتی بدائع وهدایة وجزم الطحاوی بوجوبها قال البحر وینبغی حمله علی اختیار قولهما.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۲۴ باب نکاح الکافر

کړی، او بل سړي سره نکاح وکړي. نو آیا دا اوله نکاح ختمیږي، او چه کله اسلام قبول کړی، نو دا دویمه نکاح ددویم سړي سره منعقد کیږي؟ بینوا توجروا

المستفتی: متعلم جامعه حقانیه. ۱۴۰۴/۴/۴ھ

**الجواب:** د ښځي ارتداد چه کله د خاوند نه د جدایئ دپاره وی، نو د فسخ نکاح دپاره باعث نه دي، او د دویم خاوند دپاره نکاح جائز کونکي نه دي. والتفصیل فی ردالمحتار ۲: ٥٤٠)(۱) وهو الموفق

## شیعه جوړیدلو سره د مخکښني نکاح حکم

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلي باره کښ چه دیو سړي د یوي جیني سره په وړوکوالی کښ نکاح وشوه، د نکاح په وخت کښ دواړه مسلمانان وو. بیا روستو سړي د شیعه ښځي سره نکاح وکړه. د واقعاتو نه دا معلومیږي چه هغه سړي هم شیعه شوي دي، لیکن سړي خپله انکاری دي، چه زهٔ شیعه نه یم، په دي صورت کښ دهغه سړي د اولي ښځي سره نکاح باقی ده او که ختمه شوي ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: عبد الحمید ټانک ډی آئي خان. ۱۲/۱/۱۹۷۹

(۱) قال العلامة الحصكفی: لو ارتدت لمجئ الفرقة منها ...... تجبر علی الاسلام وعلی تجدید النكاح زجرا لها بمهر یسیر كدینار وعلیه الفتوٰی ولو الجیة وافتی مشائخ بلخ بعدم الفرقة بردتها زجرا وتیسیرا لا سیما التی تقع فی المكفر ثم تنكر قال فی النهر والافتاء بهذا اولیٰ من الافتاء بما فی النوادر لكن قال المصنف ومن تصفح احوال نساء زماننا وما یقع منهن من موجبات الردة مكررا فی كل یوم لم یتوقف فی الافتاء بروایة النوادر قال ابن عابدین: (قوله زجرا لها) عبارة البحر حسما لباب المعصیة والحیلة للخلاص منه ولا یلزم من هذا ان یكون الجبر علی تجدید النكاح مقصورا علی ما اذا ارتدت لاجل الخلاص منه بل قالوا ذلك سدا لهذا الباب من اصله سواء تعمدت الحیلة ام لا كی لاتجعل ذلك حیلة...... ولا یخفیٰ ان الافتاء بما اختاره بعض ائمة بلخ اولیٰ من الافتاء بما فی النوادر الخ. (الدرالمختار مع ردالمحتار ۲: ۴۲۶ باب نكاح الكافر)



**الجواب:** تر کوم وخته پوري چه دا ثابته شوي نه وی، چه دا سړي د شیعه ګانو هغي ډلي کښ داخل شوي دي، کوم چه کافران دی، تر هغي وخته پوري اوله نکاح باقی ده(۱). وهو الموفق

## د مهر معجل نه ورکولو سره نکاح ته نقصان نه رسیږی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دي مسئلي باره کښ چه زید دخپل ځوی بکر د رشتي دپاره دخالد کورته جرګه ؤلیږله، خالد انکار وکړو، لیکن زید اود خالد سخرګنی خالد لره مجبوره کړو، په آخر کښ خالد یو شرط ؤلګولو، چه زید به د بکر د طرف نه جینی ته لس زره روپی نقد یا دومره قیمت زمکه په مهر کښ ورکوی، دي شرط منلو نه پس دخالد سخرګنی یعنی د زینب جدفاسد نکاح ورکړه، او زینب هغه وخت کښ نابالغه وه، بالغ کیدلو نه پس زینب انکار وکړو او خالد ډیر ځله بکر ته د جرګي په ذریعي ؤوئیل، چه شرط پوره کړه نو رشته اوچته کړه ګنی رشته نه درکوم، په دي خبره د زینب جدفاسد خپل جائیداد په بکر خرڅ کړو، چه تهٔ شرط پوره کړه، بکر انتقال ؤلیکلو، او د انتقال د تصدیق په وخت کښ بکر دي شرط وفاء لره فسخ کړو، او پټ شو، او لیکلي شوي د انتقال کاغذونه د محکمه مال نه خارجیږی، اوس سوال دادي، چه که بکر دا شرط پوره کړی، نو د زینب نکاح چه جدفاسد کړي ده، صحیح ده او که نه؟ او که دا شرط پوره نه کړی، نو بیا هم دا نکاح صحیح ده او که نه؟ او زینب په دي صورت کښ بل ځائي کښ نکاح کولي شی؟ بینوا توجروا

المستفتی: عظیم الله خان چتهه بتهه هزاره.

(۱) قال العلامة ابن عابدین: وبهذا ظهر ان الرافضی ان كان ممن یعتقد الالوهیة فی علی او ان جبریل غلط فی الوحی او كان ینكر صحبة الصدیق او یقذف السیدة الصدیقة فهو كافر لمخالفة القواطع المعلومة من الدین بالضرورة بخلاف ما اذا كان یفضل علیا او یسب الصحابة فانه مبتدع لا كافر.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۳۱۴ فصل فی المحرمات قوله وصح نكاح كتابیة)

**الجواب:** د زینب چه د خالد لور ده، دهغې نکاح اوسه پورې د بکرسره موجود ده. لهذا بل ځائي کښې نکاح صحیح نه ده، ځکه چه د مهرمعجل په نه ورکولو سره په نکاح کښې څه نقصان نه راځی، او د خیار بلوغ په صورت کښې د قاضی د فیصلې نه بغیر نکاح نه فسخ کیږی.

لان الحکم عند عدم قبض المعجل المنع الوطی وغیره فی الدر المختار: ولها منعه من الوطی ودواعیه لاخذ ما بین تعجیله انتهیٰ مختصرا، قال العلامة الشامی ۲: ۳۶۷ وکذا لولی الصغیرة المنع المذکور﴿۱﴾ وفی الهندیة ۱: ۳۰۴ ویشترط فیه القضاء بخلاف خیار العتق کذا فی الهدایة فان اختار الصغیر او الصغیرة الفرقة بعد البلوغ فلم یفرق القاضی بینهما حتی مات احدهما توارثا ویحل للزوج ان یطأها مالم یفرق القاضی بینهما﴿۲﴾. وهو الموفق

## ښځې ته د تحقیق نه بغیر خنثی وئیل او د پلار په کور کښېنول ظلم دی

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه یوې ښځه بلوغ ته رسیدلو نه پس حیض راځی، سینې ئې د ښځو پشان دی، ددې نه علاوه دائي هم ددې د ښځې کیدلو اعتراف کوی، ددې ښځې وادهٔ وشو، او درې میاشتې د خاوند سره وه، اوس خاوند ښځې ته ؤوئیل چه د خپل پلار په کور کښېنه، ځکه چه زما سره ستا اوسیدل ګناه ده، ته ښځه نه ئې بلکه خنثی (هیجړا) ئې، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

المستفتی: محمد عمر متعلم حقانیه. ۱۴۰۱/۱/۱۲ هـ

**الجواب:** که عقد نکاح ددې علاماتو د ظاهریدو نه پس شوې وی، نو دا عقد لازم

﴿۱﴾ (الدر المختار مع ردالمحتار ۲: ۳۸۸، ۳۸۹ مطلب فی منع الزوجة نفسها لقبض المهر)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۸۵ الباب الرابع فی الاولیاء)



دې، او دا ښځه منکوحه ده،﴿۱﴾ د طلاق نه بغیر ازادیدې نه نشی، او دا خاوند په دې کار کښې ظالم دې. یدل علی اصل المسئلة مافی الهندیة: ولو ظهر له ثدی کثدی المرءة او نزل له لبن فی ثدیه او حاض. فهو امرءة﴿۲﴾. وهو الموفق

## د جینۍ په نکاح کښې د فریقینو دعوی او د فیصلې صورت

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښې چه دیوې جینۍ طلاقه کړې شوې نکاح د زید سره په ۱۳ جون د عامو خلقو په مخکښې وشوه، روستو بیا اکرم اغوا کړه، او دعوی ئې وکړه چه ما په ۲۳ مئی دې سره نکاح کړې ده، او اکرم په دې تاریخ په جیل کښې قید وو، دهغه د ترهٔ بیان دې، چه ما دهغه نه په جیل کښې وکالت اخستلې وو، او د جینۍ ماما وائي، چه ما د جینۍ نه وکالت اخستلې وو، او دا دواړه ګواهان هم پیش کوی، او زید دعوی کوی چه د ۱۳ جون نه علاوه په ۲۲ اپریل هم ما د غنمو د لو کولو دوران کښې د دوؤ ګواهانو په مخکښې نکاح کړې ده، او اوس متواتر دوؤ جرګو د جینۍ نکاح د زید سره ثابت کړې ده، ددې نه علاوه د جمات د امام بیان دې، چه زهٔ د ۱۳ جون نه یو هفته مخکښې دې جینۍ لره د خپل ؤرارهٔ په نکاح کښې راوستلو دپاره ددوی کور ته لاړم، لیکن په مهر باندې د نه راضی کیدلو په وجه واپس راغلم، اوس ددې جینۍ نکاح د چا سره صحیح ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: مولوی نور حسین شاه ډم کله کرک. ۲/۱/۱۹۶۹

﴿۱﴾ قال العلامة الافندی: لو زوجه ابوه او مولاه امرأة او رجلا لا یحکم بصحته حتی یتبین حاله انه رجل او امرأة فاذا ظهر انه خلاف مازوج به تبین ان العقد کان صحیحا والافباطل لعدم مصادفة المحل.

(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۲۸۱ کتاب النکاح)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۶: ۴۵۷ الباب التاسع فی میراث الخنثیٰ)

**الجواب:** که زید د ۲۲ اپریل د عقد نکاح ګواهان د فیصله کونکي یا حاکم مخکښ پیش کړل، نو د مخکښ والی په وجه به ددهٔ دعوی ثابته شی، او د فریقینو دپاره د شهادت پیش کولو نه مخکښ به ښځه دهغه چا وی، د چا دپاره چه ښځه اقرار وکړی.

صرح به فی جمیع معتبرات الفقه، قال صاحب الهدایة ۳:۲۱۶ ویرجع الی تصدیق المرأة لاحدهما وهذا اذالم یوقت البینتان فاما اذا وقتا فصاحب الوقت الاول اولیٰ (یعنی اذا لم یکن الدعویٰ بعد الطلاق) وان اقرت لاحدهما قبل اقامة البینة فهی امرأته لتصادقهما وان اقام الآخر البینة قضیٰ بها لان البینة اقویٰ من الاقرار انتهیٰ باختصار یسیر﴿۱﴾. وهوالموفق

## د وینځې سره د جماع کولو او نکاح نه کولو مسئله

**سوال:** څه فرمائي علماء دین دې مسئلې باره کښ چه آیا دا رشتیا دی، چه یو مسلمان ثلورښځې ساتلو سره بې شمیره وینځې هم ساتلې شی، آیادا صحیح دی؟ او کوم کتاب چه زهٔ مطالعه کوم، په هغې کښ د وینځو سره د نکاح نه کولو حکم لیکلې شوې دې، صحیح مسئله څه ده؟ بینوا توجروا

المستفتی: قاضی غلام نبی مردان. ۱۹ ربیع الاول ۱۴۰۲ھ

**الجواب:** د مسلمانې وینځې سره مالک د نکاح نه بغیرجماع کولې شی، لقوله تعالی،الاعلی ازواجهم او ما ملکت ایمانهم﴿۲﴾.لیکن په شرط ددې چه داوینځه مسلمانه وی،یا اهل کتابه وی، لان محل الجماع هو هذا کما فی ردالمحتار﴿۳﴾

﴿۱﴾(هدایة ۳:۲۱۸ باب مایدعیه الرجلان)

﴿۲﴾(سورة المؤمنون آیت:۶ پاره:۱۸)(وسورة المعارج آیت:۳۰ پاره:۲۹)

﴿۳﴾ قال العلامة الحصکفی: وحرم نکاح المولیٰ امته والعبد سیدته لان المملوکیة تنافی المالکیة...... وحرم نکاح الوثنیة بالاجماع قال ابن عابدین:..(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



والبدائع﴿۱﴾. د خپلې وینځې سره نکاح نه کیږی، لانه کاستیجار مملوکة﴿۲﴾ وایضا لقوله تعالی: کما مر. وهو الموفق

(بقیه حاشیه) وافاد بحرمة النکاح حرمة الوطٔ بملک الیمین کما یأتی...... قوله کتابیة اطلقه فشمل الحربیة والذمیة والحرة والامة الخ.

(الدرالمختار مع ردالمحتار ۲:۳۱۴ قبیل مطلب فیما لو زوج المولیٰ امته)

﴿۱﴾ قال العلامة الکاسانی: والاصل ان لا یحل وطء کافرة بنکاح ولا بملک یمین الا الکتابیات خاصة.

(البدائع الصنائع ۲:۵۵۴ مبحث عدم نکاح المشرکة)

﴿۲﴾ قال العلامة المرغینانی: ولا یتزوج المولیٰ امته ولا المرأة عبدها لان النکاح ما شرع الامثمراً بثمرات مشترکة بین المتناکحین والمملوکیة تنافی المالکیة فیمتنع وقوع الثمرة علی الشرکة. (هدایة ۲:۳۱۰ فصل فی بیان المحرمات)

..........

# فتاوی دیوبند پاکستان المعروف به

**فتاوی فریدیه څلورم جلد**

# مسائل شتی



.............



بسم الله الرحمن الرحيم

....قال الله تعالى:.....

## وانزل من السمآء مآء، فاخرجنا به ازواجا من نبات شتى.

....[طه: ٣٥]....

...........

# مسائل شتیٰ [1]

ددې عنوان لاندې هغه مسائل جمع کړې شوې دی، چه حضرت مفتی صاحب دامت برکاتهم د بیمارۍ په حالت کښې لیکلې دی، اوپه سه ماهی الفرید کښې د دارالافتاء په عنوان سره شائع کیدلې، سه ماهی الفرید جلد ۷ شماره ۱، نه جلد ۸ شماره ۴ پورې دامسائل راجمع کړې شوې دی، اود مسائل شتی په عنوان سره د عامې فائدې دپاره په فتاوی کښې شاملولې شی. از مرتب

## د سلام په الفاظو کښې د زیاتې کلماتو مقدار

**سوال:** که یوسړې السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ؤوئیل نوجواب ورکونکې به په دې زیاتې کلمات وائې او که نه؟ مثلا و مغفرته وغیره؟

**الجواب:** افضل دادی، چه سلام کونکې او جواب ورکونکې دواړه "وبرکاته" پورې الفاظ ؤوائې.

**کما فی الهندیة ۵: ۳۲۵ والافضل للمسلم ان یقول السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته والمجیب کذلک یرد، ولا ینبغی ان یزاد علی البرکات شیئ قال ابن عباس رضی الله عنهما لکل شیئ منتهیٰ ومنتهی السلام البرکات کذا فی المحیط﴿۱﴾.**

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۵: ۳۲۵ الباب السابع فی السلام وتشمیت العاطس)

......



البته ابوداؤد ۲: ۳۵۹ باب کیف السلام کښې ومغفرته لفظ راغلې دې﴿۱﴾ وهوالموفق

## د زلزلې په وخت کښې د کور نه بهر راوتل مستحب دی

**سوال:** د زلزلې په وخت کښې د کور نه بهر فضا ته وتل جائز دی او که مکروه؟

**الجواب:** د زلزلې په وخت کښې د کور او د چت د راغورزیدلو خطره وی، ددې وجه نه فضا ته وتل مستحب دی.

**کما فی الهندیة ۵: ۳۷۹ رجل کان فی البیت اخذته الزلزلة لا یکره له الفرار الی الفضاء بل یستحب لما روی عن النبی ﷺ انه مر بحائط مائل فاسرع فی المشی فقیل له أتفر من قضاء الله قال أفر من قضاء الله الی قضاء الله الخ﴿۲﴾ وهکذا فی البزازیة علی هامش الهندیة ۶: ۳۷۱﴿۳﴾. وهوالموفق**

﴿۱﴾ عن سهل بن معاذ بن انس عن ابیه عن النبی ﷺ بمعناه زاد ثم اتی آخر فقال السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته ومغفرته فقال اربعون قال هکذا تکون الفضائل.

(سنن ابی داؤد ۲: ۳۵۹ باب کیف السلام)

وقال الشیخ محمد زکریا الکاندهلوی: وفی الدرالمختار لا یستحب ان یزید علی وبرکاته وقد ورد فی ذلک روایات مرفوعة فی مجمع الزوائد وفی جمع الفوائد عن ابن عباس ان السلام قد انتهی الی البرکة وکذا عن ابن عمر انه کره الزیادة وفی الدرالمنثور حکی الانتهاء الی البرکة عن عروة بن الزبیر وهکذا فی العالمگیریة عن علی وابن عباس واورد الحافظ الآثار فی ذلک فی الفتح.

(التعلیق علی بذل المجهود فی حل ابی داؤد ۵: ۳۲۲ باب کیف السلام)

وقال فی اوجز المسالک بعد ما نقل کلام الحافظ: فغایة ما یثبت به الجواز والسنة ما علیها الروایات المعروفة. (هامش عمل الیوم واللیلة للدینوری ۱۹۳ باب ثواب السلام)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۵: ۳۷۹ الباب الثلاثون فی المتفرقات)

﴿۳﴾ قال العلامة ابن البزاز الکردری: واذا تزلزلت...... (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

## حدیث: من بشرنی بخروج صفر بشرته بالجنة" ثابت نه دي

**سوال:** آیا دا حدیث ثابت دي، من بشرنی بخروج صفر بشرته بالجنة"

**الجواب:** ملاعلی قاری وئیلي دی.

لا اصل لـه كـمـا فی الـمـوضـوعـات الكبریٰ صفحـه:۲۲۵ ﴿۱﴾، وفی الهندية ص۵:۳۸۰ امـا مـا يقـولـون فی حق صـفـر فـذلک شیئ كـانت العرب يقولونه (واماالخبرالمذكورة) فهو كذب محض كذا فی جواهر الفتاویٰ ﴿۲﴾.وهوالموفق

## د گردوغبار (دوړي) ختمولو د پاره په لاروکښ د حاجت مطابق اوبه اچول

**سوال:** د باران نه کیدلو په وجه د دوړي ختمولو دپاره په سړکونو او لارو کښ اوبه اچول جائز دی؟ بینوا توجروا

**الجواب:** د حاجت مطابق جائز دي.

كـمـافی الـمـلتقط(۲۱) لا بأس برش الماء فی الطريق لتسكين الغبار فالزيادة علی الحاجة لا تحل ﴿۳﴾، وهكذا فی ..........

---

(بقيـه حـاشيه) الارض وهو فی بيته له الفرار الی الصحراء لقوله تعالیٰ ولا تلقوا بايديكم الی التهلكة وفيه قيل الفرار مما لا يطاق من سنن المرسلين.

(فتاویٰ بزازية علی هامش الهندية ۶: ۳۷۱ كتاب الكراهية التاسع فی المتفرقات)

﴿۱﴾ قال العلامة نورالدين ملا علی قاری الهروی: حديث "من بشرنی بخروج صفر بشرته بالجنة" لا اصل له، وعلی هامشه ذكره تذكرة الموضوعات ۱۱۶ وكشف الخفاء ۲:۳۲۷.

(الموضوعات الكبریٰ للقاری ۲۲۵ رقم حديث: ۸۸۶)

﴿۲﴾(فتاویٰ عالمگيريه ۵: ۳۸۰ الباب الثلاثون فی المتفرقات)

﴿۳﴾( الملتقط فی الفتاویٰ الحنفية ۲۱ كتاب الطهارات)



الهندية ۵:۳۸۱ ﴿۱﴾. وهوالموفق

## په نوافلو کښ د یو آیت تکرار مکروه نه دي

**سوال:** په بعضو کتابونو کښ ئې د نمازحاجت مختلفي طریقې ښودلې دی، مثلا په اول رکعت کښ حسبنا الله ونعم الوکیل سل ځله وئیل، او په دویم رکعت کښ وافوض امری الی الله سل ځله وئیل، یا سورة اخلاص دومره ځله وئیل وغیره، آیا د یو آیت تکرار په یو رکعت کښ جائز دي؟.

**الجواب:** په نفلی مونځ کښ دا تکرار مکروه نه دي، او په فرض مونځ کښ بغیر د عذر او هیرې نه مکروه دي.

كـمـافی الهـنـدية ۱:۱۰۷ واذاكـرر آية واحـدة مراراً فان كان فی التطوع الذی يصلی وحـده فـذلک غيرمكروه،وان كان فی الصلوٰة المفروضة فهومكروه فی حالة الاختيار واما فی حالة العذر والنسيان فلا بأس هكذا فی المحيط﴿۲﴾.وهوالموفق

## په روضه رسول الله ﷺ باندې حاضریدل او د نوروسلام رسول جائزدی

**سوال:** څه فرمائي علماء دين دې مسئلې باره کښ چه بعضې خلق په روضه رسول الله ﷺ باندې حاضر شی، او د نورو خلقو سلام رسوی، آیا دا جائز دی، هلته کښ بعضې خلق دې ته بدعت وائي؟

**الجواب:** دا سلام رسول جائز دی،

كـمـا فی الهندية ۱:۲۶۵ ويبلغه سلام من اوصاه فيقول السلام عليک يا رسول الله من فلان بن فلان يستشفع بک الی ربک فاشفع له ولجميع المسلمين﴿۳﴾ او دا د سلف صالحینو معمول دې. کما فی الملتقط ۹۴..........

---

﴿۱﴾وفی الهـنـدية: لا بـأس بـرش الـماء فی الطريق لتسكين الغبار والزيادة علی الحاجة لا تحل. (فتاویٰ عالمگيريه ۵: ۳۸۱ قبيل كتاب التحری)

﴿۲﴾ (فتاویٰ عالمگيريه ۱:۱۰۷ الفصل الثانی فيما يكره فی الصلاة ومالايكره)

﴿۳﴾(فتاویٰ عالمگيريه ۱:۲۶۵ خاتمة فی زيارة قبر النبی ﷺ)

قال عمربن عبدالعزیز لرجل اذا قدمت المدینة واتیت قبر النبی ﷺ فاقرأه منی السلام ﴿۱﴾، د نجدی خلقو نه علاوه بل چا په دې نکیرنه دې کړې.

## که نابالغ یا کافر د سجدې آیت ولوستو نو په مکلف اوریدونکې باندې سجده واجب ده

**سوال:** یو کافر یا نابالغه د سجدې آیت ولوستو. دا دواړه چونکه اهل نه دی، نو دې سره په اوریدونکې باندې سجده واجب ده او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب:** په نابالغه اوکافرسجده نشته. البته که اوریدونکې اهل اومکلف دې نو په هغه واجب ده. کما فی الملتقط ۵۲ الصبی اذا تلا آیة السجدة لا یجب علیه السجدة وتجب علی من سمع ذالک وکذالک الکافر والحائض﴿۲﴾. وهوالموفق

---

﴿۱﴾ (الملتقط فی الفتاوی الحنفیة ۴۹ مطلب فی الحاج عن الغیر)

وقال الشاه اشرف علی تهانوی : حضرت عمر بن عبدالعزیز چه جلیل القدر تابعی دې، دهغوی نه ثابت دی، چه روضه اقدس ته د سلام رسولو دپاره به ئې قصدا قاصد لیږلو، او د چا نه هم نکیر منقول نه دې، نو دا یو قسم له اجماع شوه. اوهرکله چه د بل چا د سلام رسولو دپاره سفر جائزدې. لانه اقرب الی الضرورة لکونه عملاً لنفسه، او هغه روایت دادې:

فی خلاصة الوفاء ۴۷ للسمهودی المتوفی ۱۰۱۱ ه وقد استفاض عن عمر بن عبد العزیز انه کان یبرد البرید من الشام یقول سلم لی علی رسول الله ﷺ، وقال الامام ابوبکر بن عمر بن ابی عاصم النبیل من المتقدمین فی مناسک له التزم فیها الثبوت (لعل المراد انه لا یروی فیها الا الروایات الثابتة المقبولة عند اهل الفن) وکان عمر بن عبد العزیز یبعث بالرسول قاصدا من الشام الی المدینة لیقرئ النبی ﷺ السلام ثم یرجع. (کذا کتب الی المولوی محمد شفیع من الدیوبند).

(بوادر النوادر ۴۰۳ تحقیق اعراس وزیارت روضه مقدسه)

﴿۲﴾ (الملتقط فی الفتاویٰ الحنفیة ۵۲ مطلب فی زیارة القبور)



## د روټۍ خوړلو نه پس په ټشو پیپر لاسونه صفا کول

**سوال:** آیا روټۍ خوړلو نه پس په ټشو پیپر لاسونه صفا کول جائز دی، آیا دا د کاغذ بې عزتی نه ده؟ بینوا توجروا

**الجواب:** روټۍ خوړلو نه پس په کاغذ لاسونه پاکول مکروه دی.

کما فی الهندیة ۵: ۳۲۲ حکی الحاکم عن الامام انه کان یکره استعمال الکواغذ فی ولیمة لیمسح بها الاصابع وکان یشدد فیه ویزجر عنه زجراً بلیغاً کذا فی المحیط﴿۱﴾،

البته په دې مخصوص قسم کاغذ چه د صفایئ دپاره تیار کړې شوې دې، مکروه نه دی. لانه لا قیمة له بعد القطع وکذا لیس هذا للکتابة فافهم﴿۲﴾.

البته ګوتو لره د صفا کولو نه مخکښ ستل سنت دی. کمافی الهندیة ۵: ۳۳۷ السنة لعق الاصابع قبل المسح بالمندیل کذا فی الوجیز للکردری﴿۳﴾. وهو الموفق

## امام مالک رحمه الله تابعی دې او که تبع تابعی؟

**سوال:** امام مالک رحمه الله تابعی دې او که تبع تابعی؟

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۵: ۳۲۲ الباب الخامس فی اداب المسجد والقبلة والمصحف الخ)

﴿۲﴾ قال العلامة ابن عابدین: واذا کانت العلة فی الابیض کونه آلة للکتابة کما ذکرناه یؤخذ منها عدم الکراهة فیما لا یصلح لها اذا کان قالعا للنجاسة غیر متقوم کما قدمناه من جوازه بالخرق البوالی وهل اذا کان متقوما ثم قطع منه قطعة لا قیمة لها بعد القطع یکره الاستنجاء بها ام لا الظاهر الثانی لانه لم یستنج بمتقوم نعم قطعه لذلک الظاهر کراهته لو بلا عذر بان وجد غیره لان نفس القطع اتلاف.

(ردالمحتار هامش الدرالمختار ۱: ۲۵۰ فصل فی الاستجاء)

﴿۳﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۵: ۳۳۷ الفصل الحادی عشر فی الکراهة فی الاکل وما یتصل به)

**الجواب:** په تبع تابعی کیدلو کښې څه شک نشته، البته دوی لره تابعی شمارلې شی، ځکه چه د عائشه بنت سعد بن ابی وقاص صحابیت او د امام مالک رحمه الله دهغې نه روایت ثابت دې. ذکره فی المرقاة ١: ١٨ وقیل من التابعین اذ روی عن عائشة بنت سعد بن ابی وقاص وصحبتها ثابتة﴿١﴾. وهو الموفق

## په موبائل کښې د ټلی په ځائي د قرآن مجید آیت یا د ذکرالله آواز اچول

**سوال:** په موبائل کښې د ګنټی په ځائي د قرآن مجید آیت یا د بل ذکر آواز وغیره اچولې کیږی، آیا دا جائز دی؟ بینوا توجروا

**الجواب:** چونکه په دې سره مقصود اخبار او خبرداریٔ دې، او فقهاؤ ذکر وغیره لره د اخبار او خبرداریٔ آله جوړولو ته مکروه وئیلې دی.

**کما فی الدرالمختار: وقد کرهوا والله اعلم ونحوه لإعلام ختم الدرس حین یقرر، وقال الشامی: فإنه استعمله آلة للإعلام ونحوه إذا قال الداخل یا الله مثلاً لیعلم الجلاس بمجیئه لیهیئوا له محلاً ویوقروه. (٥: ٣٠٦ قبیل کتاب احیاء الموات)﴿٢﴾**

البته په دې کښې ساز او ټنګ ټکور اچول هم جائز نه دی، عامه ټلی چه بغیر د ساز نه وی، د اچولو اجازت دې. وهو الموفق

## د خاص قسم سپو په ذریعه د قاتل او غل پته لګول

**سوال:** فوجیان خاص قسم سپې د بهر ملکونو نه راولی، او دهغې په ذریعه د قاتل او غل وغیره پته لګوی، آیا دا جائز دی؟ بینوا توجروا

---

﴿١﴾ (مرقاة المفاتیح شرح المشکوٰة ١: ١٨ تذکرة الامام مالک رحمه الله تعالیٰ)

﴿٢﴾ (الدرالمختار مع ردالمحتار ٥: ٣٠٦ قبیل کتاب احیاء الموات کتاب الحظر والاباحة)



**الجواب:** دا یقینی نه دی بلکه ظنی کار دې، او د تجربې نه دا غلطه هم ثابته شوې ده، لهذا په پاک سړې باندې د تهمت لګیدلو د خطرې په وجه دا عمل ناجائز دې، ﴿١﴾ که تابعداری په قرائنو سره متعبره ؤمنلې شی، نو د قرآن مجید آیت ته کتل پکاردی. قال الله تعالیٰ ولا تقف مالیس لک به علم (الآیة) وهو الموفق

---

﴿١﴾ په هر یو ملزم باندې جرم ثابتولو دپاره شریعت مقدسه په ظاهر بنا کړې ده، چه یا شهادت شرعیه موجود شي، یا په اقرار باندې ثابت شی، بیا به یو ملزم مجرم ثابت کیدې شی.

**قال العلامة عبد الله الموصلی: وتثبت السرقة بما یثبت به القذف یعنی بالاقرار مرة وبشهادة شاهدین کسائر الحقوق...... وینبغی ان یلقن المقرالرجوع احتیالا للدرء فقد روی: انه علیه الصلاة والسلام اتی بسارق فقال له: اسرقت؟ ما اخاله سرق؟...... ویسأل الشهود عن کیفیتها وزمانها ومکانها وما هیتها...... ولا بد من حضور المسروق منه عند الاقرار والشهادة والقطع الخ (الاختیار لتعلیل المختار ٢: ٣٥٧ کتاب السرقه)**

ددې نه علاوه د سپو په ذریعه معلومول یا د عملیات په ذریعه یو غل وغیره یا جادو کونکې معلومول د شبه دپاره فائده مند دی، لیکن د غالب ګمان او یقین دپاره فائده مند هرګز نه دی. او د شبه یا ګمان په بنا چالره مجرم ګڼړل بالکل په شریعت کښې جائز نه دی، او د سپوباره کښې خو عام قومی اخبارونو کښې هم دا بیان راغلې وو، چه په ضلع کرک کښې د سپو په ذریعې د یو قاتل پته لګولې شوې وه، بیا یو میاشت پس هغه غلطه ؤخته، او اصل قاتل بل څوک وو، او امام شاه ولی الله الدهلوی رحمه الله په القول الجمیل کښې د غل معلومولو دپاره یو عمل لیکلې دې، او دهغې نه پس ئې خپله فرمائیلې دی:

**قلت ویجب علی من اطلع علی السارق بامثال هذه ان لا یجزم بسرقته ولا یشیع فاحشته بل یتبع القرائن فانما هی طریق اتباع القرائن قال الله تعالیٰ ولا تقف ما لیس لک به علم (القول الجمیل ١٧٢).**

او حضرت مولانا اشرف علی تهانوی رحمه الله په امداد الفتاوی کښې د حضرت شاه صاحب ددې عمل باره کښې د پوښتنې په جواب کښې فرمائیلې دی. چه د چا دې طریقې سره پته ؤلګی، دهغه تفحص په شرعی طریقې سره وکړئ، لیکن عوام ددې حد نه ؤړاندې ځی، او بیا ددې سوال په جواب کښې چه دا عمل څنګه دې؟ فرمائي: زما په نزد بالکل ناجائز دې، ځکه چه عوام د حد تفحص نه ؤړاندې ځی.

(امداد الفتاوی ٤: ٨٨ تعویزات و اعمال).... (از مرتب).

﴿٢﴾ (سورة بنی اسرائیل پاره: ١٥، آیت: ٣٦).

## د سرو د پاره سرې جامې اغوستل جائز نه دی

**سوال:** بعضې خلق قومی یا طبقاتی تعصب په وجه سرې جامې اغوندی، آیا دا جائز دی؟

**الجواب:** د سرو د پاره سرې جامې اغوستل جائز نه دی، کما فی ردالمحتار﴿۱﴾ وایضا رجح الحرمة فی تنقیح الفتاوی الحامدیه﴿۲﴾، قلت ویؤید الحرمة الروایات الحدیثیة ایضا﴿۳﴾. وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: (قوله فا فادانها تحریمیة الخ) هذا مسلم لو لم یعارضه تصریح غیره بخلافه ففی جامع الفتاویٰ قال ابوحنیفة والشافعی ومالک یجوز لبس المعصفر وقال جماعة من العلماء مکروه بکراهة التنزیه وفی منتخب الفتاوی قال صاحب الروضة یجوز للرجال والنساء لبس الثوب الاحمر والاخضر بلا کراهة وفی الحاوی الزاهدی یکره للرجال لبس المعصفر والمزعفر والمورس والمحمر ای الاحمر حریرا کان او غیره اذا کان فی صبغه دم والا فلا ونقله عن عدة کتب وفی مجمع الفتاویٰ لبس الاحمر مکروه ...... اقول ولکن جل الکتب علی الکراهة کالسراج والمحیط والاختیار والمنتقی والذخیرة وغیرها وبه افتی العلامة قاسم. (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۵: ۲۵۲ فصل فی اللبس کتاب الحظر والاباحة)

﴿۲﴾ قال العلامة محمد امین: وما فی المجتبیٰ وشرح النقایة لابی المکارم الحنفی لابأس بلبس الثوب الاحمر یفید کراهة التنزیه لکن صرح صاحب تحفة الملوک بالحرمة فافادان المراد کراهة التحریم وهو المحمل عند الاطلاق...... ومثله فی معین المفتی وفی الاختیار شرح المختار ویکره الاحمر والمعصفر لانه علیه السلام نهی عن لبس المعصفر، وفی المحیط ویکره لبس الثوب الاحمر والمعصفر قال علیه الصلاة والسلام ایاکم والحمرة فانها زی الشیطان ولانها کسوة النساء ویکره التشبیه بهن وللعلامة قاسم فتوی مفصلة طویلة فی حرمة لبس الاحمر کمافی فتاویٰ الکازرونی الخ.
(تنقیح الفتاویٰ الحامدیة ۲: ۳۵۵ تحریر مسئلة لبس الاحمر)

﴿۳﴾ عن عبد الله بن عمر وقال مر رجل وعلیه ثوبان احمران. (بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## خرابه هګۍ اخستلو نه پس دکاندار ته د واپس کولو مسئله

**سوال:** یو کس هګۍ واخستلې. ماتولونه پس معلومه شوه، چه هغه سخا او بې کاره وې، آیا دکاندارته واپس کول او پیسې واپس اخستل جائزدی که نه؟

**الجواب:** دکاندار ته واپس کولې او قیمت واپس اخستلې شی.

کما فی الهدایة من اشتری بیضاً او بطیخاً او قثاءً او خیاراً او جوزاً فکسره فوجده فاسداً فان لم ینتفع به رجع بالثمن (باب خیار العیب ۳: ۲۷)﴿۱﴾. وهوالموفق

## کویژدن نه پس د یو بل کور ته عیدی (د اختر برخه) وغیره لیږل

**سوال:** دلته چه کله کویژدن ؤشی، نو دواړه طرفه د یو بل کور ته د اختر په موقع د اختر برخه لیږی؟ په شریعت کښ ددې څه حکم دې؟

**الجواب:** نه مطلوب دې نه ممنوع بلکه مباح دې.

## د بې وارثه مړی د حقوق مالی ادا کولو طریقه

**سوال:** دیو سړې ماسره څه پیسې وې، ما انکار کولو، اوس دهغه څوک وارث نشته، دهغې د ادا کولو څه طریقه اختیارکړم؟

**الجواب:** ددې بې وارثه مړی د طرف نه هغه مال صدقه کړه.فی شرح فقه الاکبر:

---

(بقیه حاشیه) فسلم علی النبی ﷺ فلم یرد علیه رواه الترمذی وابوداؤد، وعن عمران بن حصین ان نبی الله ﷺ قال لا ارکب الارجو ان الخ رواه ابوداؤد.

(مشکواة المصابیح ۲: ۳۷۵ کتاب اللباس)

﴿۱﴾ (هدایة علی صدر فتح القدیر ۶: ۱۸ باب خیار العیب)

رجل له حق على خصم فمات ولا وارث له تصدق عن صاحب الحق بقدر ماله عليه ليكون وديعة عند الله، يوصلها الى خصمائه يوم القيامة (۱۵۸) ﴿۱﴾.وهو الموفق

## په اودس کښې د څټ مسح مشروع او ثابت ده

**سوال:** دلته کښې یو مولوی صاحب په لاؤډ سپیکر ترجمه کوی، وائي، چه د څټ مسح د حدیث نه ثابت نه ده، لهذا دا بدعت دي، آیا دا صحیح ده؟

**الجواب:** د څټ مسح مشروع او مستحب ده.عندنا وعند احمد وعند الشافعي فی روایة، او د روایاتو نه ثابته ده.

رواه ابوعبيد والديلمي وتاريخ اصفهان عن ابن عمر مرفوعاً وموقوفاً انه امان من الغل ومن توضأ ومسح عنقه وقی الغل يوم القيمة، وكذامارواه ابوداؤد مرفوعاًيمسح راسه حتى بلغ القذال وهواول القفا وجه الدلالة ان بلوغ منتهى اليدالى القذال يستلزم مسح العنق،وقال مسدد مسح رأسه من مقدمته الى مؤخره حتى اخرج يديه تحت اذنيه وهوواضح الدلالة﴿۲﴾.وهوالموفق

---

﴿۱﴾(شرح فقه الاكبر للقارى ۱۵۸ بحث التوبة)

﴿۲﴾وفی المنهاج: اعلم ان مسح العنق مستحب عندنا وعند احمد وقال به الامام الشافعی فی رواية، والحجة على مشروعيته ما رواه ابوعبيد والديلمي وتاريخ اصفهان عن ابن عمر مرفوعا وموقوفا انه امان من الغل ومن توضأ ومسح عنقه وقی الغل يوم القيامة وهكذا ما رواه ابوداؤد مرفوعا يمسح رأسه حتى بلغ القذال وهو اول القفاء، وجه الدلالة ان بلوغ منتهى اليد الى القذال يستلزم مسح العنق، وقال مسدد مسح رأسه من مقدمه الى مؤخره حتى اخرج يديه تحت اذنيه وهو واضح الدلالة، واعلم انه لم يرو ان العنق من الرأس وكذا لم يثبت اخذ الماء الجديد له فالانسب ان يمسح ببلة ظهور الكفين بعد الاذنين.

(بقيه حاشيه په راروانه صفحه)



## په اجتماعی ختم خواجگان باندې(همشه والې) مستحب او التزام مکروه دي

**سوال:** بعضې خلق اجتماعی ختم خواجگان کوی، آیا دادې همیشه کول بدعت نه دي؟

**الجواب:** دمنکراتو (مثلا یاشیخ عبدالقادر جیلانی شیئا لله) نه خالی ختم خواجگان

---

(بقيه حاشيه)(منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۱:۱۲۸ باب ان الاذنين من الرأس)

وقال العلامة عبد الحی اللكهنوی: ما روىٰ ابوداؤد واحمد من حديث طلحة بن مصرف عن ابيه عن جده قال رأيت رسول اللهﷺ يمسح رأسه مرة واحدة حتى بلغ القذال، ووقع فی سنن ابی داؤد هو اول القفا...... ومنها ما روى الطحاوى فی شرح معانی الآثار......عن طلحة بن مصرف عن ابيه عن جده قال رأيت رسول اللهﷺ مسح مقدم رأسه حتى بلغ القذال من مقدم عنقه ومنها ما ذكره ابن السكن فی كتاب الحروف من حديث مصرف بن عمر...... قال رأيت رسول اللهﷺ توضأ فمسح لحيته وقفاه...... ومنها ما رواه ابونعيم فی تاريخ اصبهان من حديث ابن عمر ان النبیﷺ قال من توضأ ومسح عنقه وقی الغل يوم القيامة ومنها ما رواه الديلمی فی مسند الفردوس من حديث ابن عمر مسح الرقبة امان من الغل يوم القيامة...... ومنها ما رواه ابوعبيد فی كتاب الطهور عن عبد الرحمن بن مهدی عن المسعودی عن القاسم بن عبد الرحمن عن موسىٰ بن طلحة انه قال من مسح قفاه مع رأسه وقی الغل يوم القيامة قال العينی فی شرح الهداية هذا وان كان موقوفا لكن له حكم الرفع لانه لا مجال للرأی فيه، ومنها ما حكاه ابن الهمام من حديث وائل فی صفة وضوء رسول اللهﷺ ثم مسح على رأسه ثلاثا وظاهر اذنيه ثلاثا وظاهر رقبته واظنه قال ظاهر لحيته ثم غسل قدمه اليمنىٰ الحديث رواه الترمذی ثم قال ابن الهمام فيه دليل على ان مسح الرقبة ادب الخ.

(مجموعة سبع رسائل ۵،۶،۷ تحفة الطلبة فی تحقيق مسح الرقبة)

د برکت حاصلولو دپاره د علماؤ بزرګانو مجرب عمل دي﴿۱﴾، او په یو مندوب کار باندې دوام مندوب او التزام مکروه وي. والمعروف هو الدوام لا الالتزام فافهم.﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿۱﴾ ......☆قال الشیخ العالم الفاضل محمد مراد القزانی: واما هذه الختمات فالمروی منها من قلماء اکابر النقشبندیة هو ختم خواجکان وکانوا یستعملونه عند ظهور حادثة ووقوع بلیة برعایة شروطه من عدم الزیادة علی الاعداد المعینة والنقص عنها ویصرفون همتهم لدفعها لا انهم کانوا یستعملونه فی جمیع الاوقات وانما کان استعماله واستعمال غیره من الختمات علی سبیل الدوام عند مشائخنا المتأخرین ویمکن اختیارهم ذلک علی الدوام لامرین احدهما کثرة الحوادث والبلیة فی زماننا بحیث لا یخلو منها وقت کما یحکم به المشاهدة والثانی ان لکل مقام مقالا ولکل میدان رجالا فانهم لما رأوعدم تأثر بعض الطالبین من طریق الخفیة واحتظاظهم به اختاروا المداومة علی تلک الختمات من اجلهم وذلک جائز بل مطلوب الخ.

(هامش رشحات عین الحیاة ۲۳۲ بیان الطریقة النقشبندیة)

......☆قال الاستاذ الکامل السید محمد حقی النازلی: اعلم ان الامام جعفر الصادق وابویزید البسطامی وابوالحسن الخرقانی ومن دونهم الی شاه النقشبندیة قدس الله اسراهم انهم اتفقوا فی قضاء الحاجات وحصول المرادات ودفع البلاء وقهر الاعداء والحساد ورفع الدرجات ووصول القربات وظهور التجلیات قد استعملوا هذه الفائدة الجلیلة والاسرار الغریبة وهی الاستغفار مأة مرة والفاتحة سبع مرات الخ.

(خزینة الاسرار الکبریٰ للحقی ۲۲۰ باب خواص ختم خواجکان)

﴿۲﴾ التزام مالا یلزم یعنی د یو شیز دخپل حیثیت نه زیات اهتمام کول بدعت دي، التزام په دوه قسمه دي، یو التزام حقیقی، چه یو شیز لازم او واجب نه وي، او دهغې د لزوم او وجوب عقیده وي، نو دا د نذر په صورت کښې لازم دي، او د نذر نه علاوه مکروه او بدعت دي، او دویم التزام حکمی، چه یو شیز لره لازم او واجب نه ګڼړي، لیکن د خپل حیثیت نه زیات دهغې اهتمام کوي...(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)



## د روټۍ د پاسه د سلاد پاڼړې یا مالګه ایښودل مکروه نه دي

**سوال:** بعضې علماؤ لیکلي دي، چه د روټۍ دپاسه کاسه وغیره ایښودل مکروه دي، لیکن عام طور باندې سلاد او د مالګې لوښې په هغې ایښودلې شي، آیا دا هم مکروه دي؟

(بقیه حاشیه) .... لکه د حضرت عبدالله بن سلام رضی الله عنه ابتلاء او الله تعالی په هغه انکار وکړو، اودا ایت نازل شو، یاایها الذین آمنوا ادخلوا فی السلم کافة ولا تتبعوا خطوات الشیطان (البقرة) او دغه رنګې د انصارو په ابتلاء کښې دا آیت نازل شو، لیس البر بان تاتوا البیوت من ظهورها، او الله تعالی په هغوی انکار وکړو، دغه رنګه عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه انکار وکړو په هغو کسانو چه د مونځ نه پس ښې طرف ته تاویدل ئې لازمی ګڼړل.

حیث قال: لا یجعل احدکم للشیطان شیئا من صلاته یری ان حقا علیه ان لا ینصرف الاعن یمینه (بخاری ۱:۱۱۸) او ملا علی قاری فرمائی: من اصر علی امر مندوب وجعله عزما ولم یعمل بالرخصة فقداصاب منه الشیطان من الاضلال. (مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۲:۵۳)

البته په التزام او دوام کښې فرق ضرور دي، د یو مستحب التزام ممنوع دي، او په هغې باندې دوام مطلوب دي.

قال رسول الله صلی الله علیه وسلم خیر العمل ما دیم علیه وقال رسول الله صلی الله علیه وسلم احب الاعمال الی الله ادومها وان قل، (رواه البخاری ومسلم عن عائشة رضی الله عنها)

پس په امر مندوب او مستحسن باندې دوام مندوب دي:

الا تری الی مداومة المحقق البغدادی علی تلاوة سورة الملک کل لیلة حیث حمد الله بذلک مع ان تلاوة سورة الملک من المستحسنات لامن الواجبات وکذا اهتمام بلال رضی الله عنه لتحیة الوضوء واهتمام الصلحاء القیام للتهجد وغیر ذلک من المستحبات

د التزام او دوام په مینځ کښې دعموم خصوص من وجه نسبت دي، پس کوم سړي چه یو مستحب کارهمیشه دپاره کوي، اوپه التزام سره ئې کوي، نو هغه ددوام او التزام دواړو مرتکب شو، او کوم سړي چه یو مستحب کار کله کله کوي، البته د التزام په عقیدې سره ئې کوي، نو هغه التزام وکړو او دوام ئې نه دي کړې، او کوم سړي چه یو مستحب او مندوب کار همیشه کوي، لیکن نه هغه لازم ګڼړي، او نه په تارک باندې انکار کوي، نو هغه دوام وکړو او ......(بقیه حاشیه په راروانه صفحه)

**الجواب:** دا مکروه نه دی، فی الهندیة ویجوز وضع کاغذ فیها ملح علی الخبز ووضع البقول علیه قال شمس الائمة الحلوانی کل ذلک جائز﴿۱﴾. وهو الموفق

## سنن قبلیه ئي نه دي کړي او امامت کوي

**سوال:** کوم امام چه د ماسپخین اول ځلور رکعته سنت ادا نه کړی، او امامت وکړی، نو جائز ده؟

**الجواب:** جائز ده.

عن عائشة ان النبی ﷺ کان اذا لم یصل اربعاً قبل الظهر صلاهن بعدها (ترمذی ۱:۵۷) قلت ظاهر هذا الحدیث یدل علی جواز امامة الذی لم یصل الراتبة﴿۲﴾ .فافهم

## که دوه سړي یو څائي حلاله کوی نو په دواړو تسمیه وئیل واجب دی

**سوال:** یو سړي ذبح کوی لیکن هغه کښ پوره طاقت نشته، لهذا دویم سړي دهغه سره چاړۀ ؤنیسی او ذبح کوی، نو په دوی کښ په چاباندې تسمیه وئیل واجب دی؟

**الجواب:** په دواړو وئیل واجب دی.

فی الدرالمختار: وضع یده مع ید القصاب فی الذبح واعانه علی الذبح سمی کل وجوباً فلو ترکها احدهما اوظن ان تسمیة احدهما تکفی حرمت (۵:۲۳۵ کتاب الاضحیة)﴿۳﴾. وهوالموفق

---

(بقیه حاشیه).....التزام ئې ؤنکړو، او د بدعت نه بچ شو، د حضرت مفتی صاحب یو مرید مفتی صاحب ته ؤوئیل چه مونږ ته د ختم خواجګان اجازت راکړه، نو حضرت مفتی صاحب ورته ؤفرمائیل: چه دا څه لازمی څیز نه دې، البته مجرب او مستحسن دې، او بیا ئې اجازت ورکړو او وې فرمائیل، چه کله کله ئې پریږدئ، او د طریقې د سبقونو پابندی کوئ. (ماخوذ از مقالات فریدیه).

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۵: ۳۴۱ الباب الحادی عشر فی الکراهة فی الاکل)

﴿۲﴾ (منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذی ۲: ۲۹۴ باب ماجاء فی الرکعتین بعد الظهر)

﴿۳﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۵:۲۳۵ قبیل کتاب الحظر والاباحة)



## اول به سلام کوی یا اجازت به غواړی

**سوال:** یو سړي په کور کښ دننه یا کمره کښ ناست دې، او بل سړي راشی، نو اول به سلام کوی او که اجازت به غواړی؟

**الجواب:** اول به اجازت غواړی بیا به سلام کوی. بخلاف الفضاء چه اول به سلام کوی بیا به کلام کوی.

کما فی الهندیة (۵: ۳۲۴) اذا اتی الرجل باب دار انسان یجب ان یستأذن قبل السلام ثم اذا دخل یسلم اولا ثم یتکلم وان کان فی الفضاء یسلم اولا ثم یتکلم﴿۱﴾. وهوالموفق

## کیک او ډبل روټۍ په چړې سره پریکول جائز دی

**سوال:** بعضې خلق د چړې یا چاقو په ذریعه ډبل روټۍ یا کیک پریکوی، آیا دا بې ادبی نه ده؟

**الجواب:** جائز ده بې ادبی نه ده.

وفی الهندیة (۵: ۳۴۱) وسئل عن (قطع الخبز بالسکین) علی بن احمد فقال ینظر ان کان خبز مکة معجونا بالحلیب فلا یکره ولا باس واما اذا لم یکن کذلک فهو من اخلاق الاعاجم کذا فی التتارخانیة﴿۲﴾.

## د حدیث: کل قرض جر نفعا فهو ربا" ثبوت

**سوال:** آیا دا حدیث: کل قرض جر نفعا فهو ربا" ثابت دې؟

**الجواب:** ثابت دې.

عن علی قال: قال رسول الله ﷺ کل قرض جر منفعة فهو رباً ، قال العسقلانی: رواه الحارث بن ابی اسامة واسناده ساقط وله شاهد ضعیف .........

---

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۵: ۳۲۴ الباب السابع فی السلام وتشمیت العاطس)

﴿۲﴾ (الفتاویٰ الهندیة ۵: ۳۴۱ قبیل الباب الثانی عشر فی الهدایا والضیافات)

عن فضالة بن عبيد عند البيهقى وآخر موقوف عن عبد الله بن سلام عند البخارى، (بلوغ المرام لابن الحجر ٢٨٢ باب الربا)﴿١﴾ قلت وله شواهد كثيرة تثبت صحته ومعناه، مثل مارواه ابن ماجة (١٧٧) باب القرض، عن انس بن مالك قال قال رسول الله ﷺ اذا اقرض احدكم قرضا فاهدى له اوحمله على الدابة فلا يركبها ولا يقبله الا ان يكون جرى بينه وبينه قبل ذلك﴿٢﴾، وهكذا رواه البيهقى فى شعب الايمان كمافى المشكوٰة (١:٢٤٦)باب الربا، وهكذا عن انس عن النبى ﷺ قال اذا اقرض الرجل الرجل فلا ياخذ هدية رواه البخارى فى تاريخه هكذا فى المنتقى (مشكوٰة)﴿٣﴾. وهو الموفق

## د ژوندی سړي د خپل ځان دپاره قبر تيارولو مسئله

**سوال:** بعضې صوفيان خلق د خپل ځان دپاره مخکښې نه قبر تياروی، آيا دا جائز دی؟

**الجواب:** نه مطلوب دی او نه ممنوع دی، بلکه فقهاؤ لاباس به وئيلې دی،

---

﴿١﴾ (بلوغ المرام من ادلة الاحكام ٢٨٢ قبيل باب التفليس والحجر)

﴿٢﴾ سنن ابن ماجه ١٧٧ باب القرض)

﴿٣﴾ (مشكواة المصابيح ١:٢٤٦ باب الربوا الفصل الثالث

وفى المنهاج: قال النبى ﷺ كل قرض جر نفعا فهو ربا اخرجه الحارث بن ابى اسامة عن على امير المؤمنين وله شواهد كثيرة روى ابن ماجه عن انس مرفوعا بمعناه وروٰى عن ابى بن كعب وابن عباس وابن مسعود وفضالة بن عبيد وغيرهم موقوفا او هو محمول على اختلاف الانواع كما قال الطبرى.

(منهاج السنن شرح ترمذى ٥:٢٤ باب ماجاء فى الصرف)



ويحفر قبراً لنفسه اى ولا بأس به وفى التتارخانية لابأس به ويؤجر عليه هكذا عمل عمر بن عبد العزيز والربيع بن خيثم وغيرهما (ردالمحتار كتاب الجنائز ١:٢٠٦)﴿١﴾.

وهو الموفق

## د نبى كريم ﷺ د نوم مبارك سره سيدنا وئيل

**سوال:** بعضې خلق د درود شريف لوستلو په وخت کښې د نبی کريم ﷺ نوم مبارک سره لفظ د سيدنا لوستلو ته بدعت وائي آيا دا صحيح دی؟

**الجواب:** دا بدعت نه دي، بلکه د حديث نه ثابت دي.

مارواه مسلم (٢:٢٤٥) عن ابى هريرة قال: قال رسول الله ﷺ انا سيد ولد آدم يوم القيامة،

او رسول ﷺ په دنيا او آخرت کښې سيد دي.

قال النووى: قوله ﷺ يوم القيامة مع انه سيدهم فى الدنيا والآخرة فسبب التقييد ان فى يوم القيامة يظهر سودده لكل احد ولا يبقى متازع ولا معاند ونحوه بخلاف الدنيا الخ، (نووى على مسلم ٢:٢٤٥)﴿٢﴾.

## په دينی مدرسو کښې د دستار بندو شرعی حيثيت

**سوال:** په دينی مدرسو کښې چه کوم د دستار بندو رسم جاری دي، آيا دا صحيح دي؟

**الجواب:** د دوره حديث د طالبانو دستار بندی د برکت او د اعتماد د اظهار دپاره کولې شی، ددې دپاره اصل موجود دي.

اما التعميم للتبرك فيدل عليه ما رواه ابوداؤد عن عبد الرحمن بن عوف وفى اسناده شيخ مجهول وكذا يدل عليه ما رواه ابونعيم ان رسول الله ﷺ عمم على بن ابى طالب فى غدير خم، وما رواه عن عمار بن ياسر ان ........

---

﴿١﴾ ردالمحتار هامش الدر المختار ١:٦٦٧ بعيد مطلب فى اهداء ثواب القراءة للنبى ﷺ)

﴿٢﴾ (شرح الكامل للنووى على مسلم ٢:٢٤٥ كتاب الفضائل)

رسول الله ﷺ عمم عليا حين بعثه الى خيبر، و كذا التعميم لاظهار الاعتماد جائز ايضا يدل عليه ما رواه البخارى ان النبى ﷺ عند اول الهجرة لم ينكر على تعميمهم عبد الله بن ابى، والتفصيل فى منهاج السنن شرح جامع السنن للترمذى ٢١٢:٥ ﴿١﴾. وهوالموفق

## د ذبح په وخت کښې تسميه کوم وخت وئيل پکار دی؟

**سوال:** د ذبح په وخت کښې تسميه د اول نه شروع کول پکار دی، يا چاړهٔ اينبودلو سره وئيل پکار دی؟ بينوا توجروا

**الجواب:** دا دواړه يو ځائي کول پکار دی. که يو څو سکينډه تقديم ؤشی نو څه حرج په کښې نشته،

**وفى الهنديه: واما وقت التسمية فوقتها على الذكاة الاختيارية وقت الذبح لا يجوز تقديمها عليه الابزمان قليل لا يمكن التحرز عنه واما وقت الاضطرارية فوقتها وقت الرمى والارسال ص: ٢٨٦:٥ ﴿٢﴾. وهوالموفق**

## د حکومت په خرچې حج کولو سره فريضه ساقطيږی

**سوال:** حکومت په خپلو ملازمينو مختلف سکيمونو سره حج کوی، آيا دې طريقې سره به حج فرض شمارلې شی؟ بينوا توجروا

**الجواب:** په دې سره حج فرض ادا کيږی او دهغه ذمه فارغيږی، دا حج کول او پيسې ورکول بطور امداد دی، حج بدل نه دې، فى ردالمحتار بخلاف مالو خرج

---

﴿١﴾ (منهاج السنن شرح جامع السنن ٥: ٢١١، ٢١٢ باب سدل العمامة بين الكتفين)

﴿٢﴾ (فتاوىٰ عالمگيريه ٥: ٢٨٦ كتاب الذبائح الباب الاول)



ليحج عن نفسه وهو فقير فانه وصوله الى الميقات صار قادرا بقدرة نفسه. ص٢: ٤٦٠ كتاب الحج﴿١﴾. وهو الموفق

## د ښځې د پاره د پاکستان نه جدې پورې بغير د محرم نه سفرکول

**سوال:** که يوه ښځه صرف په جهاز کښې د محرم نه بغير سفر وکړی، پيښور ائرپورټ پورې ورسره محرم وی، او بيا په جده کښې هم په هوائي اډې محرم ولاړوی، او بيا د خپل ځوی سره د حج افعال وکړی، آيا دا جائز دی؟

**الجواب:** د پيښور نه جدې پورې بغير د محرم نه سفر جائزنه دې.

**كما فى الصحيحين: لا يحل لامرأة تؤمن بالله واليوم الآخرة تسافر مسيرة يوم وليلة الا مع ذى محرم عليها﴿٢﴾،**

اوحج به ادا شی ليکن مکروه ضرور دې:

**فى الدرالمختار ولو حجت بلا محرم جاز مع الكراهة ص ٤٦٥ :٢ كتاب الحج﴿٣﴾. وهوالموفق**

## د صاحب استطاعت د پاره په تبليغ باندې حج مقدم دې

**سوال:** په يو سړې د استطاعت په وجه حج فرض شوې دې، او هغه په تبليغ کښې د کال لګولو هم اراده لري، اوس کوم يو عبادت مخکښې کړی؟

---

﴿١﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ٢: ٢٦٢ مطلب العمل على القياس دون الاستحسان)

﴿٢﴾ قال ابن الهمام: ما فى الصحيحين عن قزعة عن ابى سعيد الخدرى مرفوعا لا تسافر المرأة يومين الا ومعها زوجها او ذومحرم منها واخرجا عن ابى هريرة مرفوعا لا يحل لامرأة تومن بالله واليوم الآخر ان تسافر مسيرة يوم وليلة الا مع ذى محرم عليها وفى لفظ لمسلم مسيرة ليلة وفى لفظ يوم وفى لفظ لابى داؤد بريد او هو عند ابن حبان فى صحيحه والحاكم وقال صحيح على شرط مسلم وللطبرانى فى معجمه ثلاثة اميال فقيل له ان الناس يقولون ثلاثة ايام فقال وهموا. (فتح القدير ٢: ٣٣١ كتاب الحج)

﴿٣﴾ (الدر المختار هامش على ردالمحتار ٢: ١٥٨ قبيل مطلب فى فروض الحج وواجباته)

**الجواب:** هرکله چه حج فرض شو، نو په ټولو څیزونو دې حج مقدم کړی، په تبلیغ کښې تلل عذر شرعی نه دې، که په یو سفر کښې دواړه کیدې شی نو ډیره ښه ده. وهو الموفق

## په حالت د فقر کښې حج کولو نه پس دوباره حج لازمی نه دې

**سوال:** بعضې غریبانان خلق عمرې له تللو نه پس هلته کښې د حج دپاره ایسار شی، حالانکه په هغوی حج فرض نه وی، دا سړې چه کله غنی شی نو دوباره به حج کوی، یا په دې سره فریضه ختمیږی؟

**الجواب:** د فرض حج ادا کیدلو دپاره غنا شرط نه ده، د بلوغ نه پس حج کولو سره فرضیت ساقطیږی.

**قال ابن عابدین: الفقیر الآفاقی اذا وصل الی میقات فهو کالمکی......ولیفید انه یتعین علیه ان لا ینوی نفلا علی زعم انه لا یجب علیه لفقره لانه ما کان واجبا وهو آفاقی فلما صار کالمکی وجب علیه﴿١﴾، ردالمحتار ص۲:۴۶۰ مطلب فی من حج بمال حرام. وهوالموفق**

## د نکاح خطبه اوریدل واجب او د هغې دوران کښې خبرې کول جائزنه دی

**سوال:** د جمعې په خطبه کښې خلق په آرام سره ناست وی، آیا د نکاح په خطبه کښې هم دا احکام لازم دی؟

**الجواب:** هره خطبه که د اخترونو او د جمعې وی، یا د نکاح، دهغې اوریدل واجب او دهغې دوران کښې خبرې کول او په نورو کارونو کښې مشغولیدل وغیره ناجائز دی. کما فی ردالمحتار: وکذا یجب الاستماع لسائر الخطب کخطبة نکاح وخطبة عید وختم علی المعتمد. ص۲: ۷۶۹)﴿۲﴾ وهو الموفق

﴿١﴾ (ردالمحتار هامش الدرالمختار ۲:۱۵۵ کتاب الحج)

﴿۲﴾ (الدرالمختار علی هامش ردالمحتار ۱:۲۰۶ مطلب فی حکم المرقی بین الخ باب الجمعة)



## په کورونو باندې د هٰذا من فضل ربی لیکلو حکم

**سوال:** بعضې خلق چه نوې کور جوړ کړی، نو په هغې هذا من فضل ربی بورډ لګوی، ددې څه حکم دې؟ بینوا توجروا

**الجواب:** که دا کور په حرام مال سره جوړ کړې شوې وی، نو په هغې دا لیکل جائز نه دی. وهو الموفق

## د روژه ماتې په وخت کښې په دعا کښې "وبک آمنت" وئیلو حکم:

**سوال:** بعضې خلق د روژه ماتی په دعا کښې وبک آمنت وئیل بدعت ګڼړی، آیا دا صحیح دی؟

**الجواب:** دا الفاظ معنیً صحیح دی، البته ماثورنه دی.

**قال الملا علی قاری: وبک امنت لا اصل لها وان کان معناها صحیحا وکذا زیادة علیک توکلت ولصوم غد نویت بل النیة باللسان من البدعة الحسنة، مرقاة شرح مشکواة ص۲۶۸:۴ قبیل تنزیه الصوم﴿١﴾. وهوالموفق**

## د آب زمزم د خرڅولو او اخستلو مسئله

**سوال:** د حج نه واپسی باندې بعضې حاجیان په جده کښې یا کراچۍ کښې آب زمزم اخلی، او راوړی، آیا د آب زمزم خرڅول اخستل جائز دی؟ بینوا توجروا

**﴿١﴾ (مرقاة المفاتیح شرح المشکواة ۴:۲۶۸ قبیل تنزیه الصوم) وقال الشیخ محمد زکریا الکاندهلوی: وفی روضة المحتاجین ما اشتهر علی الالسنة من زیادة (وبک آمنت) کذا زیادة (وعلیک توکلت) لا اصل لها وان کان معناها صحیحا. ویظهر منه ان الزیادة ثابتة فی روایة اخریٰ قلت وزاد فی الاذکار للنووی علی روایة ابی داؤد من روایة ابن عباس فتقبل منا انک انت السمیع العلیم. (هامش بذل المجهود ۳:۳۵۰ کتاب الصوم باب القول عند الافطار)**

**الجواب:** په آب محرز کښ تقوم او ملک صحیح دې، کما صرحوا بــه﴿۱﴾، پس ددې په اخستلو خرڅولو کښ څه امر مانع نشته. واما کونه تبرکا فایـــضا لیس بمانع کبیع المصحف وغیره. وهو الموفق

## ډیرو مړو ته د یو څیز ایصال ثواب. هریو ته پوره پوره ملاویږي

**سوال:** ایصال ثواب مثلا ختم القرآن یا صدقه وغیره ډیرو مړو ته متجزی (حصي حصي) کیدلو سره رسیږي، یا بغیر د تجزی نه پوره پوره ملاویږي؟ بینوا توجروا

**الجواب:** بغیر د تجزی نه هر یو ته پوره پوره ملاویږي. صرح به الفقهاء وقال الحافظ ابن الحجر المکی.وهو اللائق بسعة الفضل (ردالمحتار)﴿۲﴾،﴿۳﴾ وهو الموفق

---

﴿۱﴾ قال العلامة ابن عابدین: المعتمد عندنا ان شراء الشرب لا یصح وقیل ان تعارفوه صح...... نعم لو کان محرزا باناء فانه یملک.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۲: ۵۵ باب العشر)

﴿۲﴾ قال العلامة الشامي: الافضل لمن یتصدق نفلا ان ینوی لجمیع المؤمنین والمؤمنات لانها تصل الیهم ولا ینقص من اجره شیئ...... قلت لکن سئل ابن حجر المکی عما لو قرأ لاهل المقبرة الفاتحة هل یقسم الثواب بینهم او یصل لکل منهم مثل ثواب ذلک کاملا فاجاب بانه افتی جمع بالثانی وهو اللائق بسعة الفضل.
(ردالمحتار هامش الدر المختار ۱: ۶۶۶ مطلب فی القراءة للمیت واهداء ثوابها له)

﴿۳﴾ قال الشاه اشرف علی التهانوی: فی ردالمحتار ویوضحه انه لو اهدی الی اربعة یحصل لکل منهم ربعه فکذا لو اهدی الربع لواحد وابقی الباقی لنفسه ملخصا قلت لکن سئل ابن حجر المکی عما لو قرأ......
لیکن چا په دلیل کښ څه نص نه دې ذکر کړې، او ظاهره ده چه مسئله قیاسی نه ده، ددې وجه نه د نص نه بغیر په دې څه حکم نشی لګولې، البته حدیث د طبرانی، (عن ابی عمرو قال قال رسول الله ﷺ اذا تصدق احدکم صدقة تطوعا فلیجعلها عن ابویه فیکون لهما اجرها ولا ینقص من اجره شیئا) لره د ظاهر الفاظو په اعتبار سره په عدم تجزی باندې دال وئیلې شی.
(بقیه حاشیه په راروانه صفحه



## د جنازې د پاره کړې شوې تیمم باندې د فرض مونځ کولو مسئله

**سوال:** د جنازې دپاره ئې تیمم وکړو، په دې تیمم سره فرض مونځ کولې شی؟

**الجواب:** ادا کولې شی.

کما فی الهندیة ۱: ۲۶ لو تیمم لصلاة الجنازة او لسجدة التلاوة اجزاءه ان یصلی به المکتوبة بلا خلاف کذا فی المحیط﴿۱﴾. وهوالموفق

## د کافرانو ښکار کړې شوې مهیانو حکم

**سوال:** په عرب ملکونو کښ بلکه اوس په پاکستان کښ هم د کافرملکونو نه ډبې بند مهیان راځی، چه د کافرانو ښکارکړې شوې وی، ددې څه حکم دې؟

**الجواب:** د کافرانو ښکار کړې شوې مهیان په شرط ددې چه طافی نه وی﴿۲﴾، خوړل جائز دی. ﴿۳﴾

---

(بقیه حاشیه)... څکه چه دا جرها مرجع صدقه ده، چه دهغې حقیقی مفهوم کل الصدقه دې، نه جزوالصدقه، او د لهما نه متبادر او شائع د اطلاق په وخت کښ کل واحدوی، او مجموعه مرادکیدل د قرینې محتاج وی. اودقرینې نشتوالې ظاهر دې، پس معنی ئې دا شوه، چه دواړو کښ به هر واحد ته د پوره صدقې اجر ملاویږي.
(بوادر النوادر ۳۵۴ اسی ویں حکمت)

﴿۱﴾ (فتاویٰ عالمگیریه ۱: ۲۶ الباب الرابع فی التیمم)

﴿۲﴾ وفی الهندیة: السمک والجراد یؤکلان غیر ان الجراد یوکل مات بعلة او بغیر علة والسمک اذا مات بغیر علة لا یؤکل کذا فی الظهیریة.
(فتاویٰ عالمگیریه ۵: ۳۲۸ الباب السادس فی صید السمک)

﴿۳﴾ قال العلامه عبدالحئی اللکهنوی: محمد بن موسی دمیری رحمه الله په حیاة الحیوان کښ د امام حسن بصری رحمه الله نه نقل کوی، چه هغوی فرمائیلې دی، چه ما اویا صحابؤ لره د مجوسی ښکار خوړلو باندې لیدلې دی. او ابوالمکارم رحمه الله په شرح نقایه کښ لیکلې دی: فی المحیط لاباس باکل سمکة.....
(بقیه حاشیه په راروانه صفحه

لانها تحل بدون التسمية والذبح﴿۱﴾. وهو الموفق

## په سپوږمۍ د مونځ کولو حکم

**سوال:** بعضې خلق پوښتنه کوی، چه اوس سپوږمۍ ته خلق ځی راځی، هلته کښې د مونځ کولو څه حکم دی؟ ځکه چه سجده په زمکه تندی لګولو سره ادا کیږی؟

**الجواب:** په سپوږمۍ مونځ کول جائز دی، په دې کښې هیڅ ممانعت شرعی نشته، او په تحری سره دې قبله معلومه کړی﴿۲﴾. وهو الموفق

---

(بقیه حاشیه)....اصطادها المجوسی لانها تحل بدون التسمية فالمجوسی وغیره فیه سواء.
هغه مهې چه مجوسی ښکار کړې وی، دهغې په خوړلو کښې څه ګناه نشته، ځکه چه مهې بغیرد الله تعالی د نوم اخستلو نه هم حلال دې، پس مجوسیان او نور خلق ټول په دې معامله کښې برابردی. (مجموعة الفتاوی ۲: ۳۰۶ کتاب الاکل والشرب

﴿۱﴾قال العلامة شمس الدین السرخسی: ذکاة السمک والجراد اخذه ومراده بیان ان الذکاة لیست بشرط فیهما بل یثبت الحل فیهما بالاخذ من غیر ذکاة الاتریٰ انه لا تثبت الحرمة بکون الآخذ مجوسیا او وثنیا وما یشترط فیه الذکاة یشترط فیه الاهلیة للمذکی وحیث لم یشترط فی السمک والجراد.

(کتاب المبسوط للسرخسی ۱۱: ۲۲۹ کتاب الصید

﴿۲﴾وفی المنهاج: فان قیل ان السجدة لا بد ان تکون علی الارض او علی ما قام مقام الارض والمعلق فی الجو والفضاء لیس هکذا قلنا: کما ان الماء جسم فاصل بین السفینة والارض لا یعتد بفصله فکذلک الریح جسم فاصل بین الطیارة والارض لا یعتد بفصلها وکما ان السماء جسم لیس بارض ولا قام مقامها وتصح الصلوٰة فیها لقوله تعالیٰ: واوصانی بالصلوٰة والزکوٰة مادمت حیا، ولاستقرار الجبهة علیها، فکذلک یقال فی الصلوٰة فی القمر والمریخ وغیرهما. (منهاج السنن شرح ترمذی ۲: ۲۳۴ باب الصلوٰة علی الدابة)



## د صوفیاؤ د اشغالو او اذکارو حکم

**سوال:** د صوفیاء کرامو اشغال او اذکار مثلا حبس دم وغیره چه د احادیثو نه ثابت نه دی، بدعت دی او که نه؟ بینوا توجروا

**الجواب:** احسان او اخلاص د الله تعالی په نزد محبوب او د بنده نه غوښتلې شی، ددې مدارجو او مبادیو مثال د علم قرآن حاصلولو پشان دې، پس لکه چه د عربۍ په مبادیو کښې مشغولیدل عبادت دې بدعت نه دې، دغه رنګ د احسان حاصلولو په مبادیو کښې مشغولیدل، او مجاهدې کول عبادت دې، بدعت نه دې﴿۱﴾، او په مبادیو کښې دا ضروری نه ده، چه د نص صریح نه ثابت وی، البته دا ضروری ده، چه د نص سره متصادم (مقابل) نه وی. کما اشیر الیه فی حدیث اعرضوا علی رقاکم لاباس بالرقی مالم یکن فیه شرک﴿۲﴾. وهوالموفق

## تالی (تلاوت کونکې) سور دې او سامع (اوریدونکې) پیاده روان دې، د سجده تلاوت د تکرار څه حکم دې؟

**سوال:** یو سړې سور دې، او هغه پسې بل سړې پیاده روان دې، او سور سړې د سجدې آیت څو ځله تلاوت کړو، اوس یوه سجده کافی ده او که ټولې سجدې؟ بینوا توجروا

**الجواب:** د اتحاد مجلس په وجه په تلاوت کونکې یوه سجده واجب ده، او په

---

﴿۱﴾ قال الفقیه العلامة رشید احمد الجنجوهی: د صوفیاؤ اشغال د معالجې په طوردی د ټولو اصل د نصوصو نه ثابت دې لکه څنګه چه اصل علاج ثابت دې خو شربت بنفشه د صریح حدیث نه ثابت نه دې هم دغسې دټولو اذکارو اصل هیئت ثابت دې لکه څنګه چه د توپ ټوپک اصل ثابت دې اګرچه هغه وخت نه وو نودا بدعت نه دې البته دا هیئتونه ضروری سنت ګڼړل بدعت دې اودې لره هم علماؤ بدعت لیکلې دې.

(فتاویٰ رشیدیه ۱۹۴ کتاب الاخلاق والتصوف

﴿۲﴾(صحیح مسلم ۲: ۲۲۴ قبیل باب جواز اخذ الاجرة علی الرقیة

